# حیات افغانی




لومړی ټوک

## لیکوال : محمد حیات خان

ژباړونکي: محقق فرهاد ظریفی او محقق عبداللطیف طالبي
سریزه تحشیه او تعلیقات د اکاډمیسین عبدالشکور رشاد

خپروونکی: د سرحدونو چارو وزارت
د نشراتو او فرهنګي چارو ریاست

۱۳۷۰

دکتاب نوم: حیات افغانی

دچاپ ځای: آریانا مطبعه

دچاپ مهتمم: محمد انور شمس خیلی

دچاپ شمیر: ۵۰۰۰ ،

دچاپ کال: ـ ۱۳۴۰

# دمطالبو فهرست

## (الف)

| عنوان | مـخ |
|---|---|
| دبا جوړ سیمه | ۳٦ |
| دمو مندو سیمه | ۳۷ |
| دکونړ سیمه | ۳۷ |
| دخیبر سیمه | ۳۷ |
| دننگنهار یا ننگر هار سیمه | ۳۸ |
| دتیراه سیمه | ۳۸ |
| دکر می ایجنسی سیمه | ۳۹ |
| دخو ست سیمه | ٤٠ |
| دو زیرو سیمه | ٤٠ |
| دو زیرو په ملك کی ددوړوعلاقه | ٤١ |
| دشیر انیو سیمه | ٤٢ |
| دکاکړ و سیمه | ٤٢ |
| مقد مه | ٤٣ |
| لومړی دکابل ښار | ٤٣ |
| دویم دغزنی ښار | ٤٥ |
| دریم د کندهار ښار | ٤٦ |
| دویم دفادز هرو کان | ٤۷ |
| څلورم د هرات ښار | ٤٨ |

**دافغانستان دځینو نورو مشهورو ځایو نو ذکر**

| | |
|---|---|
| په کابل کی | ٥٠ |
| په غزنی کی | ٥١ |
| په کند هار کی | ٥١ |
| په هرات کی | ٥١ |

**دافغا نستان مشهور سینو نـه**

| | |
|---|---|
| په کابل کی | ٥٢ |
| په غزنی کی | ٥٢ |
| په کندهار کی | ٥٢ |

| عنوان | مــخ |
|---|---|



دو یم فصل

داسلام له ظهور نه ترتن پور ی

| عنوان | مخ |
|---|---|
| خسرو ملك | ۹٦ |
| شهاب الدين محمد غوری | ۹۷ |

دغوری کورنی بیـــان د(۱۱۸۵) ع
کال نه پیل نه تر(۱۲۰۰) عیسوی دل پوری



ab

٩٨

عنوان | مخ

## دویمه برخه

## په افغانستان کی د پښتـــــو او نورو اوسیدو نکو قومونو نسب‌نامه

### لومړی‌څپرکی



### دویم باب

### دقیس عبدالر شید داولا د ی بیا نچـــی له دوی څخه دری لو یی قبیلی منځ ته را غلـــی دی



### لو مړ فصل دسړ بن داولادی‌بیا ن



ad

ae

| عنوان | مخ |
|---|---|
| دملتان دافغانانو حال | ۲۲٤ |
| دنواب محمدخا ن کورنی | ۲۲٦ |
| علی زی ( الیزی) | ۲۲۸ |
| غلام حسن خان علیزی | ۲۲۹ |
| دخود که کورنی | ۲۲۹ |
| خاکوانی | ۲۲۹ |
| پوښاك او د ژو ندا نه دود | ۲۲۹ |
| دترین قبیله | ۲۳۱ |
| تور ترین | ۲۳۱ |
| سپین ترین | ۲۳۲ |
| دشیرانی قبیله | ۲۳۳ |
| دبابړو ښاخ | ۲۳۸ |
| دهر یپال ښاخ | ۲۳۹ |
| دجلوانی ښاخ | ۲۳۹ |
| دمیانه قبیله | ۲٤۰ |
| قرشین | ۲٤۰ |
| دبریڅو قبیله | ۲٤۰ |
| داور مړ قبیله | ۲٤۲ |
| دپیر تاریك کیسه | ۲٤۳ |
| داتمان زی قبیلی په باب یادونه | ۲٤۷ |
| دسدوزی داولاد اتمان د شجر ی په باب یاد ښت | ۲٤۸ |
| دمندړ د توخی قبیلی په بـــا ب یادښت | ۲٤۹ |
| یاد ښت | ۲٤۹ |

## د یو سفزیو او منډړ قبیلی

| | |
|---|---|
| ددغه قبیلو تاریخ | ۲۵۰ |
| دیو سفزیو لوی مړی استو گنځی | ۲۵۲ |
| دوخه بی فرقی یادونه | ۲٦۸ |

af

| عنوان | مخ |
| --- | --- |

# څو خبرې

«حیات افغانی» دپښتنو او افغانستان په باب دنسبي، تاریخي، جغرافیایي او فلکلوري معلوماتو یوه ستره مجموعه ده چې دلوړ درشل معین الدین امیر شیر علیخان د پاچاهۍ په دوهم کال کښل شویده، او دایي (په شمسي حساب) یو سلو پنځه ویشتم کال دی * (۱)

دتواریخ خورشید جهان پښتون مؤلف ددامان دکلاچي او سیدونکي اروا ښاد شیر محمد خان ابراهیمزی گنداپور وایي: ماد پښتنو دنسب او تاریخ په باب یوه درسا له کښلې او پر هغې باندې می د «گلشن افغانستان» نوم ایښی و؛ (۲) دغه رسا له دپنجاب دانگریز والي میر منشي (مدیر تحریرات) پنډت من پهول صاحب

( ۱ ) دحیات افغانی دد یباچې په پای کې می دتاء لیف نیټه د۱۲۸۱ هـ.ق کال دبرات دمیاشتې ځوارلسمه د ۱۸٦٥ ع کال دجنوري له دریمې سره برابره ښوول شوې ده، ما ته صحي نه ښکاري زما په خیال دجنوري دوولسمه یا دیرلسمه باید وي.

(۲) اروا ښاد شیر محمد خان «تواریخ خورشید جهان» هم رسا له بللې ده، او هغه په لویه قطعه ۳۱۹ مخه چاپي کتاب دی، (وگ. دتواریخ خورشید جهان مقدمه)

دکتلو له پاره را خخه واخیستله (۳) اودبنودسیمی اکستراایسستینټ کمشنر محمد حیات خان ته ایی ورکړ له ، نو موږی محمد حیات خان زما رسا له په حیات افغانی کی مدغمه کړ له ، دی ادغام له تاء لیفه زما زړه سوړ کړ، خوزمازوی چی هغه هم محمد حیات خان نو میړی دی ته ټینګ سو چی زه هغی رسالی مطالب بیا سره را ارډم ، ما دده غو ښتنه و منله او داکتاب می تالیف کړ، چی د «تواریخ خورشید جهان» نوم می پر ی ایښی دی.

دغه مطلب اروا ښاد شیر محمد خان ګنداپور په خپلو لفظو نو کی داسی راغلی دی :

« این احقر قبل ازین بچندسال یك رسالهٔ مختصر موسوم به گلشن افغانستان محتوی برذکرمجمل حال نسب وتواریخ طایفهٔ افغان تصنیف نموده . . .خواستم که آنرا لباس طبع پوشانم‌درین اثنا ناګاه پندت من پهول صاحب‌میر منشی گور نمنتی بر ای‌ملاحظه طلب نمود و مستر گریفن صاحب بهادر سکرتری گور نمنتی آنرا ملاحظه فرمود وبعد از آن پندت‌صاحب موصوف آنرا حوالهٔ محمد حیات خانصاحب که آن‌وقت‌اکسترااسسټنټ محکمه بنون ودوست جانی و محرم راز آشکار و نهانی‌او بود نموده ، محمد حیات خان صاحب که از مدت متقاضی این رساله بود آنرا بقبضه‌خود آورده، به تصنیف کتاب تواریخ وانساب[illegible] بنام خو دپرداخته موسوم به حیات افغانی گردانید و به منظور گور نمنټ پنجاب مطبوع ساخته با ضلاع ممالك پنجاب فرستاد ورسالهٔ مؤلف در لاهور معدوم وغایب گشت ... هرگاه انامل بی حاصل بمقتضای عادت جبلی میل مینمود ، این‌در مکنون را که در بحر خاطر مخزون بودرشته بیان‌کشد ، غواص قلم از قبول این صورت ابا فرموده بزبان حال مضمون این‌مقال . بگوش هوش میرسانید،

---

(۳) پندت من پهول هغه څوك دی چی دمحمدحسین آزاد په ملګری دافغانستان له لاری بخارا اودماوراء النهر او نورو ښارو ته ولاړی اود ایسټ انډیا کمپنی له پاره یی‌دماوراء النهر سیاسی ، اجتماعی او جغرافیایی معلومات راغونډکړل . پندت من پهول په سمرقند کی دهندو زرګر په جامه کسی‌څو شپی تیری کړی دی ، سمرقند او تاشکند دغه وخت دروسانو په لاس کی وو.

که عمری مخد رات ضمیررا بخون جگر پرو رد م ومدتی ریا ض آما ل را بآب دیده در بر آوردم و قبل از آنکه دیده ستم کشیده از دیدار آن بتان گلشن عذ ار تمتعی بیندودل محنت کشیده از آن بسا تین حسرت آئین بدست آرزو میوه مرا دچیند آن گلشن بصر صربر بادی رفت اکنون به چه امیدز بان سخن گذاری توان کشود، و به کدام امید زنگ حزن و ملال از آیئنه خاطر توان زدودلاکن برخوردار راحت جان عطاء اللـه محمد حیات خان صا حب نـا ظـم بهاو لپور چو ن هموار ه مستد عی آن ما ندند که احقر بهر حال یک رسا له دیگر در ین باب تاء لیف

نما یید و دست رد بر سینه التماس آن عز یز مشکلی گر ان بود بنا بر قطع نظر از عدم استعـداد وهیچمدا نی خود کرده رسا لـه هذا را متکفل بر بیان احوال حسب و نسب و توا ریخ افغا نان ورد و جو اب اعتراضات و مطا عن طاعنان نسب و حسب این گروه با نضما م نبذی از احوال آفر ینش عا لـم وآدم و افراد شر یفـهٔ بنـی آدم تاء لیف نمودم . » (٤)

توا ریخ خور شید جهان لکه چی په مقدمه کی یی ویل سوی د ی دحیات افغا نی تر چاپ او خپر یدلو وروسته کښل شوی دی ، او بنسا غلی مؤ لف یی زیار ایستلی دی حیا ت افغانی هغه ایراد ونه رد کړی چی دپښتنو دنسب په باب یی کړی دی (٥) ، دتوا ریخ خور شید جهان دمؤلف خیال دحیات افغا نـی د تردید وړی خبری داد ی :

(١) ـ دیهود اا و بنیا مین لــه و لادی څخه هیچا تر بیت المقدس دبا ندی نورو سیمو ته هجر ت نه دی کړی (٦)

(٢) برخیا او ارمیا دطا لــو ت (١٠٩٢ـ١٠٥٦ق.م) زامن نه وو. (٧)

(٣) دسلیما ن ( کیسی ) په غره کی د اوسید لو په سبب عـر ب پښتنو ته سلیما نی وایی. (٨)

(٤) دکیس (عبد الرشید) او ملک طالوت تر منځ د (٣٧) اوودیر شو پښتو کړی دیو زرو شپږ سووکالو له پاره کمه ده. (٩)

---

(٤) وګ. دتوار یخ خور اشیـدجها ن مقد مه ٢ـ٣مخونه

(٥) وګ. دتواریخ خور شیدجهان مقد مه ٥١ـ٥٢ ـ٥٣ـ٥٥ـ ١٧٨ ـ ٢٠٥ مخونه .

(٦) وګ. حیا ت افغا نی اردومتن ٩٧ ـ١١١ مخونه .

(٧) وګ. حیا ت افغانی اردو متن ١٠٤ مخ (په حیات افغا نی کـی د برخیانو م ارخیا کښلی دی . )

(٨) وګ. حیات افغا نی اردومتن ١١١ مخ .

(٩) وګ. حیا ت افغانی اردو متن ١٠٦ مخ .

be

(۵) ستر یانی، مشوا نی، هثی‌اووردگ چی د حضر ت سید محمــد گیسو دراز (۷۲۵ هـ .قمړ) او لاده بلل سویده له عقل او عادته لیر ی دعوه ده .

خو زما په خیال دتواریخ خور شید جها ن دمولف تردید ی استدلا ل کی ددرایت برخه اړه ده او هغه کسا ن نسبی قانع کولای چی د نقل (۱۰) او روایت منلو ته په پتهو ستر گــو غاړه نه‌ږدی .

بل پښتانه مور خ اروابناد عبــدالحکیم خان لودی هم پخپل کتــا ب کــــی د حیا ت افغا نی د هغوخبـــر و ر د ته لیخـــی را غښتی د ی چـــــی د پښتنو پـــه سبب پوری اړه لر ی عبدالحکیم‌خان دحیا ت افغا نی ددغو دوو ایرا دونودرد زیار ایستی دی :

(۱) ملك طالو ت دبنیا مین لــه اولادی څخه و ، دیهود اله اولا دی څخه نه و .

(۲) ارخیا او ارمیاد طالو ت زامـــن‌نه وو .

مگر د اروا ښاد عبدا لحکیم خـان‌لیلو نه هم ددرایت قو ت نـــه لری ، او د پښتنو داسرا ییلیت په ثابتو لو کی کو مك‌نشی کولای .

دا وه دحیا ت افغانی اوتوا ریخ‌خور شید جها ن لانجه ، او س بـیه راسو پخپله دحیا ت افغا نی او دهغه پښتو تر جمی ته .

دحیا ت افغانی او دهغه مو لف‌پښتو ژباړو نکی (ښاغلی فر ها د ظریفی او عبداللطیف طا لــبی )په تفصیل ږغیدلی دی او هـــر اړخیزه خبر ی یی پر کړی دی، خو زما سره چی دمؤلف په با ب څـــه زیا ت معلوما ت وو هغه به کــه خدای کول په تعلیقاتو کی دمؤ لـف دزیاتی پیژ ندگلوی تر عـنـوا ن‌لا ندی ولیکم دحیات افغانی څه کړـ کیچو نه او ځینی تیرو تنی چـــی‌هغه می تر خپله وسه په لمن‌لیکونو کـــی سپړ لی ا و صحـــی کړی دی ، او ځینو چی زیـــا ت تفصیل غو ښتـ دهغو څیړ نـــه دتعلیقاتوپه برخه کی راغلی ده ، دلته به اوس پر ځینو هغـــوعمو میاتو وږ غیږم چی پر هغـــو باند ی ښاغلو ژباړ و نکو بحث‌څه نیمگړ ي غوند ی دی، او هغـــه داد ی . . .

(۱)

حیا ت افغا نی دپښتنو په با بـ‌معلو ما تو یوه غنی مجمو عـــه ده چی ښاغلی مؤلف په څلـــــورو‌کلونو کی دهغه په لیکلو بر یا لی

(۱.) وگ. حیا ت افغانی‌اردو‌متن ٤٢٧ مخ .

شوی دی ، هغه ښاغلی چې غواړ ی دپښتنو د پښت پو هنـــــــــی
Genelogy ) په بـــا ب پلټنه یا څیړنه وکړی په حیـــا ت
افغانی کی ډیر څه مو ندلا ی شی په تیره بیا د منځنی پښتو نستا ن
داو سیدونکو پښتنو دنژاد ی خپلوی ( Ethnjck Kinship ) یامخالفتونو

(تور گو ند یو ، سپین گو ند یو )تا ریخی پیښنو ، ادار ی تشکیلا تـو
حقوقی او جزا یی تعا ملا تـــــو(نرخو نو) او دود دستور په بـا ب
خورا دقیق او مفصل معلو مــــا ت اغونډ شوی دی ، سر بیره پردی
ددغی سیمی د جغرا فیی د طا لـــب العلما نو له پاره هم په حیـــا ت
افغا نی کی ډیر څه سته ، د افغـــانستا ن د نا پښتنو قا مو نو پــه
باب هم په دغه کتا ب کی هغـــه معلوما ت راغلی دی چی دد غــــی
رشتی د محقیقینو په درد خو ر ی .زما په خیال دپښتو لغا تو نـــــو
او اصطلا حاتو ټولو و نکی هم ددی کتا ب له فیضه بی بر خی نـــه
پا تیږی ، په دی کتاب کی د ځینـــو پښتو لغتو نو هغه اصطلا حــــی
او محیطی معناو ی خو ندی ســـوی دی چی په پښتو فر هنگو نو کـــی
دهغو څرك نشو مولا ندی ، لکه :

ویا سته (بیا سته) : ۸×۱۷و نیم گزه پتی یامځکه (۱۱)
خار با نی (خار بون ) : دیده بان ، متر صد (۱۲)
خار با نی : دیده بانی ، تر صد
تپه : دمدعی علیه هغه نازو کړی لورچی ورکړ ه یی مدعی ته منلی
شوی وی (۱۳)
تړاك ( تاړاك ) : هغه غدی د ه چی تر سلو تنو زیا ت پکښی گډون
ولری .

ډډی : حصه (۱٤)
کنډکی : دحصی څلور مه (۱۵)
کهیاړ : دسر ی او سپینی لو ړه قسم) (۱٦)
توده : دا یشیدلو سرو او بـــولوړه
او داسی نور ...

(۱۱) وگ. دحیا ت افغا نی اردومتن ٤۰٦ مخ
(۱۲) وگ. دحیا ت افغا نی اردومتن ۳۷٦ مخ
(۱۳) وگ. دحیا ت افغا نی اردومتن ۳۵۹ مخ
(۱٤) وگ. دحیا ت افغا نی اردومتن ۳٦٦_۳۷۷ مخو نه
(۱۵) وگ . دحیا ت افغا نی اردومتن ۳۷۷ مخ
(۱٦) وگ. دحیا ت افغا نی اردومتن ۳٦٤ مخ

د حیات افغانی ښاغلی مؤلـــف پیښو نیټی زیاتره په عیســو ی سنه ښوولی دی (۱۷) کله کله یی دعیسو ی سنی په څنګ کی هجر ی سنه هم راوړ ی ده ،(۱۸) اوکله یی یواځی هجر ی سنی راوړ ی د ی ، (۱۹) دغه هجر ی سنی ټولی قمری دی ، شمسی هجر ی نسته .

په حیا ت افغانی کی کله کلـه په بکر می ( بکرما جیتی) سنـــه (سمت ) هم دځینو پیښو نیټـــی ښودلی سوی دی ، (۲۰) بکر مـــی یا بکر ما جیتی سنه په افغانستان کی باب نه ده ، دغه سنه تـــر عیسوی سنی اووه پنځوس کا لــه مشره ده ، دد ی سنی مبداداو جین دپا چا مها راجا بکر ما جیـــــت ( Vikrama Aditya ) هغـــه بری دی چی پرسا کانو یی ومو نده داسو به مهارا جا بکر ما جیـــت

(۱۷) وګ. دحیا ت افغانی اردومتن ۹ـ ۴۱ ـ۴۲ ـ۴۳ ـ۴٤ ـ٤۸ـ ٤۹ ـ٥٥ـ ٥٦ـ ٥۷ـ ٦۲ـ ۱٤۲ـ٦۷ـ ۱٤٦ـ ۱۸۷ـ ۱۸۸ـ ۲٦۷ـ ۳۹٥ـ ٦۱٥ـ ٦۱٦ـ ٦۳۳ـ ٦۳٤ـ...مخونه .

(۱۸) وګ. دحیا ت افغا نی اردومتن ٤۱ـ ٤۲ـ ٤٤ـ ٤٥ـ ٤٦ ... مخونه .

په دغو مطابقو کی ځینی تیروتنی هم سته لکه : په ٤۱ مخ کـــی د ۲۷۹ هـ ق کال برابره عیسو ی سنه ۹۲ چاپ سویده اته ســـوه یی پاته دی دغه راز په ٤۲ مخ کی ۳٥۱ هـ ق کال له ۹٦۱ عیســـوی سنی سره برابـــر ښود ل سو ی دی، صحی به یـــی ۹٦۲ وی ځکـه چـــی د ۳٥۱ هـ ق کال لو مړی ور ځ د۹٦۲ عیسو ی کال ددو همی میا شتی (فبروری) له نهمی سره برابره ده.

(۱۹) وګ. حیا ت افغا نی د اردو متن ٤۰ـ ٤٥ـ ٤۷ـ ٥۱ـ ۱۸۳ ... مخونه .

(۲۰) وګ : دحیا ت افغا نـــی اردو متن ۸ـ ۱٤۱ـ ۱٤۲ـ ۲۹۸ـ ٥۰۷ـ ٥۱٤ـ ٥۲۰ـ ٥۲۳ـ ٥۸۱ـ ٥۸۳ـ ٥۹٥ـ ٦۰۳ـ ٦۱٥ـ ٦۳۱ ـ ٦۹۲ مخـــو نه .

ch

و

ته په ۵۷ ق.م په لاس ورغله .(۲۱)

له دغه مبدا څخه را پیل سوی سنه « سنند بکر می» بو لی او په حیات افغا نی کی را غلی تږ لی بکر می سنی سنند بکر مـی دی ، انند بکر می سنه تر سنند بکر می‌سنی یوسل و پنځه دیر ش کا له کشره ده ، انند بکر می سنـــــه دشا کاسنی په نا مه شهرت لر ی او دسالباهن دسنی په نا مه هـم‌یاده سوی ده ، دحیا ت افغا نـــی مؤلف کله کله له سنند بکر می‌سنو سره دهند و ستانی تقو یم میاشتی هم راوړی دی لکه :

۲۲ ما گهـ سمت ۱۶۱۹ ( دحیا ت‌افغانی اردو متن ۸ مخ)

بماه پوه ومانگهـ انگسا ( دحیا ت‌افغانی اردو متن ۵۱٤ مخ)

ماه مگهر سمت ۱۸۸۰ (دحیا ت‌افغانی اردو متن ۵۸۳ مخ)

ماه اسو چ سمت ۱۸۸۵ (دحیا ت افغانی اردو متن ۵۹۵ مخ )

---

(۲۱) په طبقا ت ناصر ی کی‌چی‌دسلطا ن شمس الد ین التمـــش (٦۰۷ ـ ٦۳۳ هـ . ق) لښکر کشـــی‌او سو بی راغلی دی په هغو کـــی یو ځای داسی کښلی دی :

«تمثا ل بکر ما جیت را کـــه پادشاه اجین نکری بوده است ا ز عهد او تا بد ینو قت ( یعنی ٦۳۱ هـ. ق )یکهزارو دو یست سال است وتوار یخ هند وان از عهد او مـــی‌نویسند و چند تمثا ل دیگر که از برنج ریخته بودند با سنگ مهاکال به حضرت دهـــلی آو ردد. » وگ ۱/۵۲۵ مخ دلو ی استاد علا مـــه حبیبی چاپ کړی نسخه دبکر ما ـ جیتی سنی کلو نو ته په‌حا شیـــه کی داسی کښلی دی :

«کذا فی الا صل ، متن مطبـو ع۱۳۱٦ سال حاشیه مطـبو ع ۱۲۰۰ ـ راوړتی ۱۳۱٦ و در بعضی نســـخ..۱۲۰ » په ٦۳۱ هـ ـ ق کال بکر ما جیتی سنه نه ۱۲۰۰ وه نه ۱۳۱٦ـ٦۳۱ هـ ـ ق کال لـــه ۱۲۳٤/۳۳ عیسو ی کلو نو سره برابر دی او وه‌پنځوس چی په دغو عیسوی سنـــو زیا ت کړو ۱۲۹۱/۹۰ بکر می سنی‌لاس ته راځی (؟)

بماه چیت یا بیسا که
ماه هاړ مین
ماه مکهر اورعموماً پوه‌مین

(د حیات افغانی اردو متن ۵۱۵ مخ) (۲۲)

ماه ساو ن مین

اور ماه کاتك مین
ماه پها گن مین

(دحیا ت افغانی اردو متن ۵۲۵ مخ ) (۲۳)

په افغا نستان کی بی لــــــه هغو پښتنو څخه چی د پښتو نخوا په ختیځ بر ید (سرحد) کی میشته دی دنورو سیمو خلك دغه میا شتی نه پیژ نی ، که دحیا ت افغا نــــی‌ځینی درانه لوستو نکی وغوا ړ ی له خپل مرو ج تقو یم سره ددغــوهندو ستانیو میاشتو په مطا بقــه پوه سی نو لا ند ینی جـــدول دی‌وگوری :

---

۲۲-۲۳- دا دکښت او کر بحث‌دی سني وز سره نشته .

| شمیره | دهند وستانی تقویم دمیا شتو نومونه | پیل یی: هجری شمسی | پیل یی: عیسوی | |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ۱ | چیت (چیتر ) | ۲۵ حوت | ۲۵ مارچ | |
| ۲ | ویسا کهـ (بیسا کهـ ) «۲٤» | ۲۵ حمل | ۲٤ اپریل | |
| ۳ | جیتهـ | ۲۵ ثور | ۱۵ می | |
| ٤ | اسېړ ه (ساړ ) | ۲۵ جوزا | ۱۵ جون | |
| ۵ | ساون | ۲٦ سرطان | ۱۷ جولای | |
| ٦ | بهادون (بها درو ) | ۲۵ اسد | ۱۷ اگست | |
| ۷ | سوج (اسو ) «۲۵» | ۲۵ سنبله | ۱۷ سپتمبر | ددغی میاشتی بل نوم گولا دی |
| ۸ | کاتك (کتك) | ۲۵ میزان | ۱۸ـ اکتوبر | |
| ۹ | مکهر (اگهن) | ۲٦ عقرب | ۱۸ نومبر | |
| ۱۰ | پوس (پوه ) | ۲٤ قوس | ۱٦ دسمبر | |
| ۱۱ | ماکهـ (ما نکهـ ) | ۲٤ جدی | ۱٤ جنوری | |
| ۱۲ | پهاگڼ «۲٦» | ۲۵ دلو «۲۷» | ۱۳ فبروری | «۲۸» |

۲٤ـ دکونړ پښتانه د اور ښت اوزرعی حاصلاتو په باب وایی
چیتر چی ور ندی شی په پټوکی نه ځا یږی .
ویسا که چی ور ندی شی په تړا تو کی نه ځا ئیږی

پاتی په «ی» مخ کی

په حیات افغانی کی د څو دولوسنو کارول لو ستونکو ته شه ستونزی ور پیښوی ، په تیره بیاکه په یوه مبحث کی څو دوله سنی -بی تقویمی مطابقی را ورلسی‌سی؛ دغه ستونزی لاپسی‌ډیروی د مثال له پاره په دغه کتاب کسی افغانستان دغز نوی پاچاهسی سنو ته‌ځیر کیږو دلته د غـــــازی‌سلطان محمود رحمة الله علیـه دتخت نشینی اود سلطان مودودمرگ کلو نه په هجری او عیسوی دواړو سنو لیکلی دی د سلطـــان محمود غازی ، لومړی سلطـــان مسعود ، سلطان ابراهیم اوسلطان بهرامشاه دمرگ سنی هم،یوازی عیسوی دی ، او سلطان ابوالحسن‌علی دتخت نشینی اوسلطان فرخزاد دمرگ کلو نه یوازی په هجـری‌سنو لیکلی دی .(۳۰) او سن نـو دحیات افغانی هغو لو ستو نکـوچی غواړی دغز نوی کورنی دټولو پاچاهانو د پاچاهیو مودی ځان ته معلومی کړی لازمه ده دد غو

---

د «ط» مخ پاتی

۲۵ــدکونړ پښتانه دتو د و خی‌دډیر ښت په باب وایی

اسو ودی سوو

۲۶ــددغو میا شتو نومو نه پــه رشید البیان کی را غلی دی.(وگ. دسا یه اصلی بحث دما پښیـــــن‌دلمانځه دوخت په باب کی )

۲۷ــپه هجری شمسی کال کی‌دمیا شتو دور څو شمـــیره دد ی قاعدی له مخی ده :

لا-لا- لب‌لا -لا- لا-لل-کط -کط -لل

په اوسنی تقو یم کی چی «لب»په لا او ښتی دی او دکط -کط پر ځای لل- ل- کط راځی دمطا بقـــی‌تاکلی ورځی یوه ورځ یا کله دو ی ورځی تفاوت پیدا کوی .

۲۸ــپه کبیسه کالونو کی یـوه‌ورځ تیره و بیره راځی تقو یمی محاسب باید د دریو سره سنـــــوکبیسه کلو نه په پام کی ولری .

(۲۹) وگ . دحیات افغـا نـی اردومتن ٤٤ ــ ٤٦ مخو نه

(۳۰) وگ . دحیات افغا نی اردو متن۴۲ـ ٤٣ـ ٤٧ـ ٤٨ـ ٤٩ مخو نـه

سنو تر منځ دمطا بقی په قا عـده وپو هیږی دقمر ی ،هجری اوعیسوی سنو تر منځ دمطا بقـــی یوه سا ده**قا عده دا ده.**

له معلو می هجری سنی شخـــه دمعاد لی عیسوی سنی پیدا کول
معلو مه هجـــری سنـــه × ۳۳ =حاصل + ۶۲۱ = مطلو به عیسوی سنه

۳۴

له معلو می عیسوی ۳۴ سنی شخه دمعادلی هجر ی قمر ی سنی پیـدا کو ل.
معلو مه عیسوی سنه ـ ۶۲۱ =حاصل × ۳۴ مطلو به هجری قمری سنه

۳۳

البـه پـه کل سر او پا ی دیوه کال فرق کوی.

په حیات افغا نی کی دځو ډو لو سنو دګډو لو یل مثال دمهان سنګه تر عنو ان لاندی مبحث دی ، چـــی داردو متن په ۶۱۵ ـ۶۱۶ مخـــو نه ی را غلی دی . په محبث کی پـرمیان والی با ندی دمهان سنګـــه دقبضی کال ۱۸۳۵ بکرمی او پـــر غه سیمه با ندی دپر نګیا نـــو دقبضی کال ۱۸۴۹ عیسوی اودمالیه ګذار ی کال یی ۱۶۲۰ بکر مـــی لیکلی دی ، که چا ته دا نـــه وی معلومه چی بکرمی سنه تر عیسو ی سنی او وه پنځوس کا له مشـر ه . نو د ۱۸۳۵ بکر می سنه لـــه ۱۷۷۸ ع او ۱۹۲۰ بکر می سنه لـــه **۱۸۶۳ عیسوی سره نه شی برابره ولای.**

۳

**دحیات افغا نی مؤ لف چی دکتاب په جغرا فیا یی برخه کی تر بحث لاندی ولا یتو نو پو ری تړ لی ځایو نه ښیی ، سیمی او کلی ګډ لیکـــی او دا زحمت یی نه دی منلی چـــی سیمی جلا ولیکی او کلی جلا (۳۱) رحمان با با ښه ویلی دی :**

**دهر چا حر مت پخپله اندازه دی**
**نه چی هر ښهر ډیلی دی یالا هور**

---

(۳۱ )و ګ. دحیات افغا نی اردو متن ۲۴ ـ۲۵ ـ مخـو نه

دمثال له پاره دکا بل په قصبوکی وکو ری چی پشد ، جلال آباداو چار یکار له ده بو ری ، دهمز نک‌او کنز گاه سره په یوه ردیف کی راوړل سوی دی ، موږ پوهیـــــږوچی پشد ، جلال آباد او چار یکـار دو مره پرا خی او لو یی سیمی دی‌چی اوس هریو د بیل بیل‌ولایت‌حیثیت لری، پشد دکو نړ، جلال آبـــــاددننګر ها راو چار یکار دپـــــروان دولایت په‌نامه بیل بیــــل ادار ی‌تشکیلات مو ندلی دی ، او ده بوری او دهمز نک دګذر ګاه دکا بل پـه‌ښار داسی ګډ سوی دی چی تریوی یوی محلی زیات حیثیت نه لری .

دغه راز دکند هار په مشهور و قصبو کی کلات ( غلـــــزا یـــی)، ګرشك او فراه له ده خواجه ، ده ماسو س ، ذاکر او مزری سره پـــه یوه لړ کی راغلی دی ، مګر او س کلات ، ګرشك او فراه بیل بیل ولا-یتونه دی ، کلات د زابل ،ګر شك‌دهلمند او فراه په خپلـه نا مـــه یادیږی او دده‌خو جی کلی دکندهارپنځمه ناحیه ده.

سر بیره پر دی دغه یادی‌سو ی‌سیمی یا کلی دمو قعیت له مخی‌هم یو منطقی تر تیب نه لری مثلاً په کند هار کی با با ولی دده خوا جـی او ده ما سو س تر منځ ــ سر ده‌دسپیروان او پا شمول تر منځ او مزره د کرزاو ذاکرتر منځ لیکـــل‌سوی ده ، موږ ته معلو مه ده چی با باولی ، مزره او سرده دری سره‌دشنه او سمسور ار غنــداو دری کلی دی او دمو قعیت له مخی بایدپله پسی را غلی وای.

(٤)

« دکرو بستان » دودچی دحیات‌افغا نی داردو متن په ٤٦٢ مخ کی را غلی دی ښا غلو پښتو ژباړونکوهغه نه دی تر جمه کړی او پټـه خو له تری تیر شوی دی ، دغوښاغلو ته به ښا یی ددی میلمه پالنی عنعنی تر جمه بده ښکار یده لــه ،کشکی دوی ته دامعلومه وا ی چـی دهندو ستان تار یخ لیکو نکی پـه‌وازه خو له دا وایی : یو وخت په هندو ستان کی داباب و چی یـوی‌ښځی به څو میړو نه لرل په عر بی دغو کړوته کثرت‌البعول وایی اوانګریزان دغسی ښځه ( Polyandrous ) بولی او دا هم بده‌نه ور تـــــه ایسی چی ووا یی دمیړه کثرا نــو ورو نو به‌په ور ینډار ی کی‌جنسی برخه در لوده یا ذا چی دمها بها ر ت

دجنگ قهرمان ارجن خپله ماینه «درپدی» په قمار کی بایللی وه. (۳۲)
دغه راز دمغولو تاریخ لیکونکی داهم نه پټوی چی په مغولانو کښی
دمیری دمیراث په یو ډول رسم وه مثلاً: فضل الله همدانی
(۷۱۸ ه.ق مړ) په جامع التواریخ (۱ ر ۳٤٤ مخ) کی لیکلی دی!
«مقدم ایشان دختری را آورده بدو داد و چنگیز خان آنرا پسند یده
و عظیم دوست داشته.
نام او موکای خاتون بود چنگیز خان ازو هیچ فرزند نداشته...
بعد از وفات چنگیز خان این خاتون را (فرزند وی) او کتای قاآن
ستده واز دیگر خواتین دوستر داشته (پسر دیگر چنگیز خان)
چغتای نیز موکای خاتون را دوست داشته و پیش از آنکه که او را
معلوم شد که او کتای قاآن ستده، پیغام فرستاد که از ما دران و پدران
یکانان پدر این موکای خاتون را بمن دهید، او کتای قاآن جواب
داد که او رامن ستدم اگر پیش ترپیغام میرسید می فرستادم....
وقاآن نیز از ین خاتون (موکای) فرزند نداشت.» ۳۳
دغه راز مغولی مورخین په دی ویاړی چی چنگیز خان ته «النقوا»
ووایی یعنی هغه شوك یی وبولی چی ستر نیکه یی له یوی بی میړه
کونډی ښځه زیږیدلی دی (۳٤)
ایرانی تاریخ لیکونکی هم ددی حقیقت له ویلو ښځه هیڅ ډډه نه
کوی چی ایرانیانو له خپلو خوندو او خپلو لوڼو سره واده کاوه دا بو-
القاسم فردوسی طوسی (٤۱۰ یا ٤۱٦ ه.ق مړ) په قول همای
چهرزاد له خپل پلار بهمن اردشیر ښځه بر البه سوی وه، اودارا ب
ځینی وزیږیده (۳۵) دغه کیسه دایران اساطیری مورخ ابو القاسم

(۳۲) وگ: تمدن هند ۱۱۰ مخ
(۳۳) چنگیز پخپل ژوندی (٦۲۱ ه.ق کال) اوکتای قاآن ته دمنگولیا
واك وسپاره او چغتای دپلار (ترمرگ وروسته) د ماورا النهر او خوارزم
واکمن شو، چغتای دچنگیز دوهم او اوکتای قاآن یی دریم زوی و
(۳٤) وگ. جامع التواریخ ۱ ر ۳۵٦ مخ
(۳۵) ددغه داراب زوی دریم دارا دی چی په ۳۳۰ ق. م کال له
مقدونی سکندر (۳۳٦ - ۳۲۳ ق.م) سره په جنگ کی ووژل شو.

فردو سی په شهنا مه کی دا سی‌راوړی ده.

چو بهمن به تخت نیا بر نشست
کمر بر میان بست وبکشاد دست

. . .

پسر بودمرا ورا یکی همچوشیر
که ساسان همی خواندی ارد شیر
یکی دختر ش بود نا مش هما ی
هنر منـد و با دانش وپا ک را ی
همی خراند ندی ورا چهـر زاد
ز گیتـی بد یـد ار اوبود شاد
پدر در پذ یر فتـش از نیکو یی
بدا ن دیـن که خوانی ورا پهلوی
هما ی دل افروز تا بنده مـاه
چنان بد که آبستنی آمدز شـاه

. . . . . . . .

چو هنگا م زاد نش آمد فـراز
ز شهر وز لشکر همی دا شت راز

. . . . .

سیم روز دا راب کر دندش نـا م
کز آب روان یافتند ش کنـام

«وګ»ـد بهمن اسفند یار همای چهر زاد قصه

دغه راز ابو القا سم فردو سـی‌وایی: دایـران د پاچا کیکـا وس زوی سیا وش دسودا بی لور چـی‌دده خور کید له دځپلی ما لد ینـی په تو که غوره کړ له ددی کیسی‌لند یز هم پخپله دنا متو شا عـر ابو القا سم فردو سی له خو لـی‌راوړو.

سپهبد سیاو وش را خوا ست‌وګفت: (۳٦)

«که خون ور ګ ومهر نتوان نهفت

---

(۳٦) له سپهبدڅخه مرادکیکاوس‌دی.

یـد

پس پردهٔ من ترا خوا هر اســـت
چوسودا به خود مهربان‌مادر است(۳۷)
ترا پاك یزدا ن چنان آفر یـــد
که مهر آور د بر تو هر کت بدیـــد
بو یژه که پیو سته خون بــود
چو از دور بیند ترا چو ن بود ؟
پس پرده پو شید گان را ببیـــن
زما نــی بمان تا کنند آفــر یـن
سیاوش چو بشنید گفتار شـــا ه
همی کرد خیره بدو در نگـــاه

. . .

سیاو ش چنین گفت کز با مـــداد
بیا یـم کنم هر چـه او کرد یـاد

. . .

چو پر د خته شد هیربدرا بخوانـد
سخن های شا یسته چندی برا نـد
سیا و ش را گفــت : با او بـرو
بیا را ی دل را بد یـدار نـو
بر فتند هر دو بیك جا بهــــم
روان شاد مان وتهی دل زغـــم

. . .

سیاوش چو از پیش پرده بر فــت
فرود آمد از تخت سودا به تفـــت

. . .

بر و خواهرا ن آفر ین خوا نـدند
بکر سی زرینش بنشا نـد نـد
بر خوا هران بـدز ما نــی دراز
خر امان بیا مد سوی تخت بــاز

. . .

چوشب گشت پید او شد روز گـار
شد اند رشبستان شه نا مــدار

(۳۷) سودا به دسیا و ش‌میرەوە. پر سیاو ش یی زره با یللی‌و
دیر زیار یی ویو ست چی سیاو ش‌خپلی مینی ته ویا روی.

چو هنده سودا به راشاه گفت
که این راز ت از من نباید نهفت
.....

بدو گفت سودا به گر گفت من
پذیره شود رای او (۳۸) جفت من
هم از تخم خویشش یکی زن دهم
نه از نا مدا ران برزن دهم
مرا دختر انند مانند تو
ز تخم تو و پاك پیوند تو
سیا وش از آن پس به سودابه گفت
که اندر جهان خود ترا نیست جفت
کنون دختر ت بس که باشد مرا
نباشد بجز او که باشد مرا
بدین باش با شاه ایران بگوی
نگه کن که یابی چه پاسخ از وی
......

چو کاوس کی در شبستا ن رسید
نگه کرد سودابه او را بدید
برشاه شد زان سخن مژده داد
زکار سیاوش ببسی کرد یاد
که آمد نگه کرد ایوان همه
بتان سیه چشم کردم رمه
چرا ز دخترمن پسند ش نبود
زخوبان کسی ار جمند ش نبود
چنان شاد شد زین سخن شهر یار
که ماه آمد ش گفتی اندر کنار

وک : دسیاوش قصه

(۳۸) * د «او» ضمیر سودا بی ته راجع دی.

په ایران نامه کي لیکلی‌دی :

دکور وش کبیر زوی کمبو چیا(۵۲۹ - ۵۲۲ق.م) ، دوهم داریوش (۴۲۴ - ۴۰۴ - ق.م ) او در یـم‌اردشیر (۳۶۰ - ۳۳۸ ق.م )هغه ایرا نی پا چهان دی چی خپلی خوندی یی ماند ینی کړی‌د ی (۳۹) دیو نانیانو په تار یخو نو کی لیکلی دی:دو هم‌ارد شیر (۴۰۴- ۳۶۰ ق.م) لـه خپلی لور سره واده کړی و.

یو نانی مور خین هم دانه پټوی‌چی په دزی کی له خپلی میر ی‌سره مړو بنی باب وه، دوی په ردہ‌لیکلی‌دی :

دسلو کس نیکا تور (۳۱۲ - (۲۸۱ ق.م )یوه ما ندینه دمقد و نی دیمتـــــر یو س‌لوروه، سلـوکس‌زوی انتی خوس (۲۸۱ -۲۶۲ ) پر خپلی دغی‌میری مین سو،سلوکس‌نیکا تور چی دده په مین توب‌خبر سوډ دیمتریو س لور یی دخپل‌زوی‌انتی خوس حرم سرای ته ولیږ له اودی ته یی و نه کتل چی دغه ښځه له ده څخه پخپله پرا لبه ده

دحیات افغا نی دښا غلو پښتـــوژ باړو نکو دغه حذف او پرده پوشی واقعیت نسی پټو لای‌ددغه دو دیادونه (Mount Stwart Alphinston) پخپل مشهور کتاب (An account of the Kingdom of Kobul) کی کړ یده دحیات افغا نی په اردومتن اودهغه په انګر یزی تر جمه کی چی (The history of the Afghanistan) نو میږی هم ددغه دودبیان راغلـی دی (۴۰)

په هر صو رت په پای کی زه‌دالاز مه بولم چی دحیات افغا نـــی

---

(۳۹) ددریم ارد شیر خور «اتو سه»او ددو هـــم دار یو ش خـــو ر «پر یدا تس » نو میدله .

( ۴۰ ) دغه انګر یزی‌ترجمه (Henry Prestly ) کړی او په ۱۸۷۴ ع کال په لاهور کی چاپ سوی‌ده.

ea

پښتو ژباړو نکو ښا غلو فرهادظریفی او عبداللطیف طا لبی ته مبارکی
ووایم او دپښتو او پښتنو دخدمت‌زیات‌تو فیق ور لره و غوا ړم. دغه
راز دسر خداتو وزارت‌هم دستاینی‌وړ بو لـم چی دغه دمعلو ما تـــو
خزانه یی پښتنو ته ددوی پخپلـه ژبه وړا ندی کړ له .

۱۱ جدی ۱۳٦۸

خیرخانه ــ کابل

اکا دیمیسین پوها ند رشاد

# دژباړونکي سريزه

په دغه سريزه کی تر نورو خبرو دمخه غواړم دکتاب دمولف محمدحيات ژوند اود هغه دنسب په باب يوڅه ووايم، ورپسی به دکتاب او دهغه ترجمی په باب څو ټکی محترمـــو لوستونکو ته وړاندی شی .

دمحمد حيات خان په باب ماغوښتل، ډير معلومات راټول او هغه پـــــه مفصل ډول لوستونکو ته ورو پيژنم، خو بايدووايم چی په دغه برخه کی می د ډير کوښښ سره سره ، زيات معلومات دوخت د کموالی له املـــه ترلاسه نکړای شول. دا ځکه چی يو خو کتاب دکستتنر کيدو و خـــــت رالنډ شوی و اوله بلی خوا ، هغه منابع چی ماته معلومی وی په هغو کی زيات معلومات موجود نه وو ،خو سره له دی می هم يو لړ معلومات راټول کړی ، چی گرانو لوستونکوته يی وړاندی کوم .

محمد حیات خان د محمد اکرم خان یا محمد کرم خان * زوی و، دوی د خاص واه اوسیدونکی وو، چی دغه ځای دراو لپنډی په ضلعی پوری مربوط او حسن ابدال ته نږدی موقعیت لری . د کرم خان پلار کمال خان د هغه پلارجلال خان دجلال خان پلا رجمال خان ، دده پلار غیرت خان او د غیرت خان پلار سید احمد نو میده .دوی دکهتر دقوم دفیرو زال د ښاخ پوری اړه لری. ** (۱)

دغیرت خان پلار سید احمد په لومړی سرکی ډیلی ته تللی او هلته میشته شوی و ، خوده د خپلی لور د ډیر ښایست له کبله ډیره موده هلته تیره نکړای شوه ، دا ځکه چی نه هغی سره ددربا دیوه ملازم مینه پیدا شوی وه او سیداحمد هغه ته دخپلی لور له ورکولو نه ډده کوله ، دغه ملازم دسیداحمدزوی غیرت خان ونیوه خوسید احمدخپل وطن ته په راتښتیدو بریالی شو او دلته یی د احمد ا باد په نوم یو کلی جوړ کړ خو د (رئیسان پنجاب) کتاب په قول ددغه کلی آثار اوس نه لیدل کیږی .د سیداحمد زوی په بند کی له جهان نه سترگی پټی کړی .د هغه لمسی جمال خان هم په خپل کور کی د یولړ لا نجو په سبب له خپل کور نه وتلی او اوسنی

---

*د محمد حیات خان دپلار نوم په ځینو نسخو کی د محمد کرم خان ا و ځینو نسخوکی دمحمد اکرم خان په شکلونو راغلی دی .

**دوی وایی دکهتر قوم نیکونه له افغانستان نه دهندخواته تللی دی، دکهترقوم‌اوسنی خلك ځانونه دقطب‌الدین‌ایبك‌له پښته بولی .نو موړی د سلطان شهاب الدین غوری مریی‌و ،چی بیایی آزاد کړ ، او دهند وستان دواکمنی په دوره کی دده نایب و ، په پای کی دغه قطب الدین د هندوستان پاچا شو او د غلا ما نو دسلسلی بانی گڼل کیږی ، خو ددوی دا ادعاچی قطب شاه د کهترقوم‌نیکه دی هغه (۹) زامن لری ځکه دقناعت وړنه ده چی قطب الدین ایبك هیڅ نارینه اولادنه‌لاره دآدم شاه په نوم یی یو هلك په زوی توب نیولی‌و .اوان ، کهتر اوکهو کهر ددرو نیکه اولاده اودری واړه خپل نسب نوړی قطب شاه‌ته رسوی.او امکان لری ده به یوولسمه (ع) پیړی‌کی‌ژوند کاوه او دغزنوی محمودله لښکرو سره به پنجاب ته تللی وی . دتفصیل له پاره وگورو ئی رئیسان پنجاب. مولف لپلاچ گریفل‌دموتی لعل‌کاتهجوا اردو ژباړه ۱۸۸۲ ع کال ۵۷۲ ـ ۵۷۳ مخونه .

(۱) دمحمد حیات خان د کور نـی په باب د تعلیقاتو برخه وگوری .

واه ته نږدې یې په یوه ځنګل کې دجلال سر په نوم یوکلی جوړ کړه چې دوخت په تیریدو سره اوس ددغه کلي نوم هیر شوی او واه بلل کیږي اوواه دتسمیي وجه داده چه وخت چې شاهجهان باچا کابل ته روان و ، کله چې د لوموړي ځل له پاره یې ددغه ځای روانی او به ، هری خواته بنا یسته باغو نه ،دنګی ونې اوګلان ولیدل نو بې اختیاره یې له خولې نه دواه کلمه ووتله او له هغې نه دغه ځای د واه په نامه بلل کیږي . شاهجهان دغه کلي ته نږدې یو سرای او یو عمارت جوړ کړ. چې ددغو ځایونو ځینې نښانې بنا یې اوس هم موجودې وې .

د محمد حیات خان پلار چې کرم‌خان یا اکرم خان نومیده په واه کې اوسیده او یو زړور سپاهي و ، دده کور دسکهانو (سکانو) د یغاوت په وخت کې د اوتار سنګه په امر وسو زول شو او لیه موده ورو سته دې په خپله هم په داسې‌حال کې چې دغرمی له خوا په باغ کې ویده و، د خپل پخوانی دښمن فتح خان له خو اووژل شو. د خپل پلار د مرګ په باب محمد حیات خان په خپل دغه کتاب کې لیکلي دي :

«زما پلار دسکهانو دشورش په وخت کې ددریو سوو ځوانانو په مشرې دده (نکلسن) همرکاب و ،او ددغه شورش په وخت کې د دسکهانو د چل ول او فتح خان د بې‌رحمی په سبب شهید شو.»دکرم خان‌د مرګ په باب د (رئیسان پنجاب)او په خپله د محمد حیات خان‌داقوالو ترمنځ لږ څه توپیر موجود دی د(رئیسان پنجاب ) دکتاب مولف عقیده لري چې دی دغرمنی خوب په وخت کې ووژل شو او محمد حیات دهغه مړینه د سکها نو سره د جګړې په وخت کې ګڼي خو سره له دې هم دوی دواړه په دغه برخه کې سره‌متفق الرای دي چې‌نوموړی دفتح خان په ذریعه وژل شوی دی .

دمحمد اکرم‌خان تر مړینې‌وروسته محمد حیات خان دسیاست ذکر ته راځي ، که څه هم دده دبهادر خان په نوم یوبل زوی هم لاره خو هغه دمحمد حیات خان په اندازه مشهور نه دی .

دمحمد حیات خان دمنځ ته راتلو په باب هم د(رئیسان پنجاب) دکتاب مولف او په خپله دمحمد حیات خان‌دوینا ترمنځ توپیر موجود دی ، د (رئیسان پنجاب ) کتاب مولف لیکي چې ( دمحمد اکرم خان‌ترمړینې وروسته محمد حیات خان په دا سې‌حال کې چې خو تنه سپاهیان یې برتې کړي وو په ناراکې د کپتا نایبټ حضور ته ورغی دهندو ستا ن

د ۱۸۵۷ ع کال دپاڅون په موده کی هغه وخت چی ایبټ دپیښور دپټی کمشنرو له محمد حیا تخان څخه یی وغو ښتل چی د برتنی شوواپر یدی سپاهیا نو په مشری خدمت ته ملاو تړی اوکوم وختچی جا ن نکلسن د پنجاب د متحرکو سپاهیا نو مشری په غاړه واخیسته نو محمد حیاتخان یی خپل مشیر اومر ستیال وټاکه . ) په دغه برخه کی په خپله محمد حیات خان لیکلی دی ( هغه وختچی زما پلار شهید کړای شو نو زما د کورنی پر مختک او پالنه دده ( نکلسن ) هیله وه . دسکها نو ترماتی وروسته زما مو روثی ملکیت او پلرنی جاگیر دنومړی له خوا ماته را و ببښل شو، خو خرنگه چی زه په هغه وخت کی ډیر کوچنی وم ، نوهغه دیوه وفادار حاکم په څیر زما پالنه په غاړه واخیسته او په دغه برخه کی یی زیاتی هڅی وکړی . ) ور پسی یی لیکلی دی ( کله چی په ۱۸۵۷ ع کال د پوز بیه پوځ دنمکحرا می په وجه پاڅون پیل شو، ده د خپل ښه تد بیر په وجه پنجاب آرام و ساته ، نو ځکه یی د یوه پوځ په مشری ډیلی ته دتگ تکل وکړ او د پخوانی اعتما د له مخی یی زه د خپلو مصا حبینو په ډله کی سر لوړی او له ځان سره یی هغی خواته بوتلم او د ۱۸۵۷ ع کال ددسامبر د میاشتی په څوار لسمه یی په ډیلی باندی یرغل وکړ ..... په دغه وخت کی د توپك یوه گولی دده په چپه خواو لگیده او له ښی خوایی راووتله ، په دغه ترخ کی ما دی د پنجاب دپلټنی دلومړی رجمنټ او د گوزه پوځ دلو مړی رجمنټ * دخو تنو سپاهیا نو په مرسته راوایسته ...او دخپل دوران دغه بیسیاله انسا ن دخپلو خیر غوښتونکو او دوستانو په زړونو د غمو ددایمی جدائی داغونه پریښودل او دسپتا مبر دمیاشتی په ۲۳ نیټه یی له فانی جهان نه سترگی پټی کړی ** په هر تر تیب کله چی محمدحیاتخان دسیاست ډگر ته راووت نو له هماغی ورځی نه دانگریزانو سره په تماس کی اودجاگیر نه پرته د هغوی له خوا دولتی منصبونه هم ورکړل شوی وو، نو ځکه دده په دغی لیکنی کی هغی مینی انعکاس کړی کومه چی محمد حیا ت خان یی له انگریزانو او په تیره بیا له خپل پالو نکی جان نکلسن سره لری .

---

* درجمنټ کلمه د کنډك مفهوم لری خو کله کله د مستقلو جزوتامونو له پاره هم دغه کلمه ذکر کوی نو ځکه په خپل اصلی شکل ولیکل شوه او همدا راز ځینی نوری کلمی هم چی مونږ یی په ژبه یا تشکیلاتو کی معادل نه لرو په خپل شکل راغلی دی.

** دزیاتو تفصلاتو له پاره دهمدی کتاب دبنو ضلعی برخه وگو ری.

د (۱۸۵۷ع) کال د پاڅون تر ټکونو وروسته محمد حیات خان د پېښور د تحصیلدار وټاکل شو د ۱۸٦۱ ع کال دمې په میاشت کې په شاپور کې (اکسټرا اسسټنټ کمشنــــــر) وټاکل شواو ورپسې بنوته تبدیل شو. په ۱۸۷۳ کال کــې ده تــه د هغو خدمتو نو په بدل کې چــې د سرحدې چارو د تر سره کو لـــو په برخه کې یې تر سره کړې وو ، دهند دستوری نښان او د اسسټنټ کمشنر وظیفه ورکړل شوه .

د۱۸۷۸ ـ۷۹ کلونو تـــر منـــځ هغه وخت چې افغا نستان له برتانوی هند سره په جنګ کې بوخت ومحمدحیات خان دپوځ سیاسي افســـر و تر دغه ځایه د محمد حیات خــان دژوند حالات څر ګند دی او تر دغــه وروسته کومه نسخه چې دده سوانح په کې راغلی وی لاس ته را نغلــه او هم د(رئیسان پنجاب) کتاب پـه داسې وخت کې لیکل شوی چې هغه وخت محمد حیات خان لا ژوندی واودغه کتاب په ۱۸۸۲ع کال کې خپور شوی دی نوځکه دده دمړینی تاریخ نه دی په کې راغلی څرنګه چې اوس ماد ده دمړینی تاریخ تر لاسه نکړنو ځکه یې پرېږدم .

داو دمحمد حیات خان لنډژونـــدلیك اوس به راشو دده کتــاب تــه نوموړی خپل دغه کتاب په دریـــو برخو ، پنځو بابو نو او اتو فصلو کې تر تیب کړی .

محمد حیات خان د خپل کتاب پــه لومړی برخه کې د افغا نســـتان د تسمیې وجه» حدود اربعه ددغـــه هیواد مختلفی سیمی، ددغو ځایو نو صنعتی، زراعتی او معد نی پیداوار، رودونه ، ژوی، صادرات‌او واردات، لویې کاروانی لاری او تجارت بیان‌کړی، ور پسی د افغا نستان عــام تاریخ ته راځی ، لومړی یی د افغانستان لرغو نی تاریخ څیړلی، چې‌دا تاریخی دوره یی‌د پیشدادی کورنی‌له واکمنی نه پیل‌کړی اوداسلام تر ظهوره پوری یی رسوی، دویم فصل‌یی داسلام مقدس دین له منځ تـــه راتلو نه دمولف تــر دوری پور ی‌رسیږی ، چی په دغه وخت کـی د افغانستان واکمنی‌دبارکزی‌کورنی په‌لاس کی وه،همدا راز‌په دغه برخه کی په ختیځ افغا نستـــــــــــــان‌باندی د سکهانو تسلط او ورپســـی یی افغا نستان ته د انګر یزانـــوراتګ او د افغا نانو او انګریزانــو تر منځ جګړی بیان کړی دی.

بیا یی په پولوکی دمیشتـــــه یاغی قبیلو سره د چلند څرنګوالی تشریح کړی دی .

دکتا ب په دو یمه برخه کی دپښتنو او په افغانستان کی دنورو میشته قو مونو نسب نامی ذکـــر کړی، په دی تر تیب دافغان، پښتون او پټهان د کلمو د تسمیی وجهی دپښتو ژبی اساس او تاداو او ختیځ خواته دپښتنو مها جرت ،او بیا یی دقیس عبدا لرشید اولادی، چـــی مختلفی پښتنی قبیلی له هغوی نه منځ ته راغلی ، ورپسی د همد غـو قبیلو ښاخو نه او ځانگی بیان کړی دی، همدا راز ددغو ښاخو نو اوځانگو دخلکو دودو نه او دستور ونـــه ،خوراك، پوښاك، فزیکی جوړښـــت، نر خونه (قوا نین)، ددوی داستوگنی ځایو نه ، مشهور کلی،ښاورنه اونور او نور په تفصیل سره بیان کړی‌دی،او بیا په افغا نستان کی دمیشتـو متفر قو قو مو نو بیان ته راغلـــی‌دی او هغه یی په تفصیل سره‌څیړلی دی او د پښتنی قبیلو په څیر یـــی ددوی دودو نه او دستـورو نـــه ، شمیر، د کورونو د جوړښت څرنگوالی،خوراك، پوښاك او نور په تفصیـــل سره بیان کړی دی .

د کتاب دریمه برخه یوازی دښنوضلعی ته وقف شوی ده، نوموړی په دغه برخه کی ددغه سیمی تاریخ،جغرا فیه ، معد نی او زراعتی پیداوار، رودونه او په دغه ضلعه کی میشته قو مو نه او ددوی تر منځ روابـــط او بیایی دهـــر یوه‌قوم او قبیلـــی‌دودونه او دستو رونه په خـــاص ډول ذکر کړی دی، همدا راز ده پـــه بنو کی ناروغی او ددغو ناروغیـــو مروجونه هم له نظر ه‌نـــــــه دی‌غوز ځولی ده دلته دما لدار ی‌څرــ نگوالی ته هم اشاره کـــړی ده ·ددغی برخی په پای کی دبنو دحکا ــ مو ذکر راغلی چی له افغا نی واکمنانو نه پیل او دانگریزی حکامو پـــه سلطی باندی پای ته رسیدلی دی او بیایی په بنو‌کی دمعتبرو کور نیـــو دنسب شجر ی او دهغو ی نسب نامی‌ذکر کړی دی، ددغی برخی په پای کی دهغو ځایو نو ذکر راغلی چـــی تاریخی آبدی او ارکیا لو جیکی آثار پکی موجود دی اوهم یی هغوسکو او نوروآثارو باندی‌رڼاچولی‌ده‌چی‌په دغو ځایو نو کی کشف شوی دی، ددغه‌ضلعی لوی کلی، قصبی، تجارت ، صادرات او واردات ، سرکو نـــه ،محکمه او عدالت، ښوونه اوروزنه، دسرحد انتظام ، عایدات او مصرف ،سر شمیر نه، مذهب ، ژبه اوعامی میلی د کتاب وروستی برخه جوړوی. دکتاب په پای کی مو لف یوه کو ـ چنی خاتمه لیکلی ده ، په دغی خاتمی‌کی نوموړی د خپل کتاب د پیـــل‌او همدا راز ددغه اثر دتالیف‌د چار وپای ته رسیدلو نیټه ذکر کړی ده.

نو موږی خپل دغه کتاب دهندویسرای لارډ ایلګن په دوره کـــی چی۱۸٦۲ ع کال وپیل کړی او دلارډ سرجان لارنس په دوره کـــی یاد ۱۸٦۵ ع کال دسپتمبر دمیاشتی په ۲۹ نیټه چی د ۱۲۸۲ هجری قمری کال دجمادی الاول دمیاشتی له اتمی نیټی سره سمون خوري، پای ته رسولی دی. بیا څو تنو شاعرا نـــوله مفتی غلام سرور قریشی لاهوری او شمس الدین شمس او منشـــی رام ناتهه ددغه کتاب خپریدو تاریخ دمعما په ډول په خپلو اشعارو کـــی راوستی دی، اوله هغو څخه څرګند یږی چی ددغه اثر په ۱۲۸۲ هجری او د ۱۸٦۷ ع اوپه ۱۹۲٤ بکرما جیتی کی خپور شوی دی.

دا ود محمد حیات خان دکتاب دمحتوا تلخیص. اوس به راشو ددی کتاب دلیکلو څرنګوا لی ته.

دغه کتا ب دلیکنی له پاره د محمد حیات خان انګیزه دده په قول هغـــه مینه وه چی دافغانستا ن له ښکلی هیواد او افغا ن قـــو م ســـره یی لرله ،خود هغه دغه ظاهری وینادهغی مینی له پاره چی هغه یی ددغه کتاب دتالیف له پاره وهڅاوه یـــو کافی ثبوت نه ګڼل کیږی. نو ځکه باید دهغه عمل او کړه وړه هم وڅیړل شی، داځکه چه له یوی خوا دی دافغا نستان او افغانانو سره مینه ښکاره کوی نوله بلی خوا د انګریز نماینده او. هغوی له خوا روزل شـــوی و اوانګریزان په دغه وخت کی دافغانستان سره په یوه نااعلان شوی او دوامداره جګړه بوخت او هغوی دافغا نانو له لاسه سخت کوزارونه خوړلی وو ،نوځکـــه دمحمد حیات خان دکتـــاب موضوعات باید په ډیر دقت او غورسره مطا لعه شی ،ترڅو ددغه تعمق په رڼا کی دده رښتینی هدف څرګندشی. له بلی خوا په همدی پیړی کی په اروپا کی او بیاپه خاص. ډول په انګلستان کی یو شمیر داسی مؤرخین منځ ته راغلی ووچی دهغوی دتاریخ لیکنی هدف مستعمره جوبی اودغه پالیسی ته خدمت کول وو. په دغه برخه کی د انګلستان ډیر مشهـــور مورخ سرجان رابرت سیلـــــــی ( Sir Tohn Robert ) نو مـــړی او په خپل کتاب کی چی دانګریزانو د پالیسی انکشا ف (پرا ختیـــا ) په نوم یی لیکلی دی په په هغه کی یی دانګریز استعماری پالیسی په ډ ږغر ږرسره

یاده کړی ده* دی دکمبرج دپـــوهنتون استاد او په دغه ځای کـی
به یی انګریزی سیا ستمدا ران روزل، نو هغوی به یی ذهناء دانـګـریزی
سلطی پرا ختیا او مستعمـرو د لاس ته راوړلو له پاره اماده کـــول.
څرنګه چی محمد حیات خان هم دانګریزا نو له خوا روزل شوی او
د هغوی نما ینده و نو ځکه لــــه محتر مولو ستو نکو څخه زما هیلـه
داده چی هر تاریخی اثر، په تیره بیا دمحمد حیات خان کتاب په خاص غور،
تعمیق او انتقادی ډول مطالعه کړی. تر څو په هغه کی د خود غرضی او
د سیا ست د تابعیت ټکی ورتـــه څرګند شی.

محمد حیات دخپل کتاب دتاء لیف له له پاره له مختلفو تاریخی منابعو،
مدار کواو اسنادو نه ګټه اخستی ده. دده اثر د تاء لیف لومړی منبـــع،
کتا بونه او لیکل شوی اسناد جوړوی، چی نوموړی د خپل اثر په لومـــړی
برخه کی د هغوی یا دونه هم کړی ده، او دغه آثار د ژبی په لحاظ په
دریو برخو ویشل کیږی، پښتـو، دری او انګریزی، چی په دغو آثارو
کی تاریخ مرصع، ګلشن روح، حبیب السیر، تاریخ فرشته، طبقات اکبری،
مخزن افغان، تـــذ کـــر ه ا لانساب، تذکره الا بــــــرار،
تذکره المشا هیر. په انګریزی ژبه دراورتی ګرامر، د الفستین تاریخ او
نور د یادونی وړ دی، خو په دغـو کتا بو نو کی د الفستین تاریخ چـی
( An account of the Kingdom of Kabul )
** نوموړی په خاص ډول دیادو نـی وړ دی او داسی ښکاری چی محمـد
حیات خان ځینی ټکی مستقیماء لـه دغه اثر څخه را اخستی دی.

دده د اطلاعاتو دویمه منبع دده خپلی لید نی کتنی او د افغا نستان
د ډیرو خلکو او له ځینو ثقـــه او باوری اشخا صو سره دده تـماس
جوړوی.

---

*دز یاتو تفصیلا تو له پاره وګوری تاریخ در ترازو، عبدالحسین زر ین-
کوب، لومړی چاپ ۱۳۵٤ هجـــری لمریز کال ۱۰۳ مخ.

** دغه کتاب اوس د کابل سلطنت بیا ن په نامه په دوو ټوکو کی، لومړی ټوک
یی د ښاغلی دکتور محمد حسن کاکړ او ځوان محقق ښاغلی نصرالله سوبمن
له خوا ژباړل شوی او دویم ټـوک یی یوازی ددکتور محمد حسن کاکړ
له خوا ترجمه او د افغا نستـــــان دعلومو اکاډمی د پښتو ځیړ نو نړیوال
مرکز له خوا خپور شوی دی.

البته دهدخپل کتاب په ډېروځایونوکی د غو لیدنو کتنو ته اشاره کړی ده . نو موړی د خپل دغه تماس په ترڅ کی له هغو نه د افغانستان د مختلفو سیمو، په دغه سیمو کی د میشته خلکو او د هغوی ددودونو او دستورونو په باب معلومات ترلاسه کړی . او هم یی پخپله ددغو اشخاصو سلوکونه او کړه وړه مطالعه کړی دی اوهم دهیوشمیر استازی ځینو سیمو ته د معلوماتو دراټولولوپه منظور لیږلی دی.

دده د اثر د تالیف له پاره دریمه منبع ارکیا لوجیکی یا تاریخی آبدی دی چی د خپل کتاب په ځینو برخو کی یی اشاری ورته کړی دی، په تیره بیا د بنو ضلعی په ځینو برخو کی ده پخپله دغه ډول آبدی لیدلی او تشریح کړی یی دی اودده په قول ده هم په ځینو ځایونو کی ارکیا لوجیکی پلټنی کړی او یوشمیر ګانی ، سکی او نور شیان یی تر لاسه کړی هم دی. خو ده دا دریمه منبع په محدود ډول یعنی ځو ځایه یاده کړی ده .البته په هغو وختو کی د باستانی آثارو نقد او سره کول هم ډیر مشکل کارو دا ځکه په هغه وخت کی ددغه آثارو دنقدله پاره د ننني وساینسی پیچلو وسایلو په شان وسایل اختراع شوی نه وو.

داوو هغه مدارك، اسناد او منابع چی محمد حیات خان د خپل کتاب د تاءلیف له پاره له هغوی نه ګټه اخستی وه، البته دده له اثر څخه داخبره هم په ډاګه کیږی چی د ملاس ته راوړی مدارك کټ مټ نه دی را نقل کړی، بلکی دیوه پوه او دقیق عالم او مورخ په څیر کره کتنه کړی دی چی دغه اسناد نقداو تحلیل کړی : یعنی ده لومړی معلومات را ټول او ورپسی یی چاڼ او بیایی ددغو معلوماتو هغه برخه چی دده په نظر ثقه ورغلی ده په خپل کتاب کی نقل کړی ده .

او هم یی په ځینو هغو معلوماتوباندی چی دده په نظر ګنګ ورغلی تبصری کړی دی او په دی ډول نوموړی خپل اثر ته د یوه باوری او علمی اثر بڼه ورکړی ده ، ده زیارایستلی دی چی پخپل کتاب کی هغه روایات چی منطقاء د تائید وړ اوتجربی جهت ولری را نقل کړی ،که څه هم ددغو روایاتو په خلاف یی ځینی غیر واقعی روایات هم راوړی خود روایت پای کی یی زیاته کړیده چی دا یوازی یوه خبره ده. دده دا وینا ممکن زمونږ له پاره چی د علم او تخنیك په یوه پر مخ تللی جهان کی ژوند کوو، یوه عادی خبره وی داځکه چی ننني انسان دهمدغه علم اوفرهنګ دپر مختګ په برکت د پوهی او ذهنی قدرت خاوند دی چی

په اسانی سره کولای شی واقعیت له غیر واقعیت او رښتیا له درواغو څخه بیل کړی، خو د محمد حیات خان په وخت کی انسان لاد پوهی دغـو مدارجو ته نه و رسیدلی.

دمحمد حیات خان دکتاب دویمه مرحله یعنی دتاء لیف او ترکیب مرحلـه هم علمی صبغه لری، ده اومه مواد په ښه شا ن سره را ټـــو ل کړی او په خپل کتاب کی یی دعلمی اصو لو سره سم ترکیب کړی دی، خو تر هغه څه زیات د کتاب موضوعات دتوجه او دقت وړ دی، او یو شمیر داسی ښیگنی په کی نغښتی دی چی په نورو آثارو کی چی ددغه کتاب دتاء لیف تر وخته پوری منځ تـــه راغلی وو ، نه دی لیدل شـــوی.

لومړی ښیگنه یی په کتاب کی د راغلیو موضوعاتو وسعت او پراخوالی دی او لکه چی وړاندی وویل شول ده د تاریخی موضوعاتو په څنگ کی د افغانستان سیاسی او حکومتی جوړښت ، اجتماعی طبقی ، اشراف خانان ، د ځمکو خاوندان، بزگران ،ښځی ، نارینه ، هلکان ، نجونـــی، او د هغوی کړه وړه د جامو څرنگوالی دکورونو جوړښت، لوبنی، مشغو ـ لیتونه ، ساعت تیری او نور پـه مفصل ډول په خپل کتاب کی راوړی دی او په دغه برخه کی دده دادراک او تشریح امتیاز په دی کی دی چی دا حالات دده د خپلو سترگو لیدلی حال دی او یا له نورو اشخاصو سره دده دتماس نتیجه ده. له بله پلوه د نورو هغو خارجی موء لفانو په خلاف چی په دغه وخت کی زمونږ دهیواد په برخه کی یی لیکنی کړی دی، دی په ښه توگه په پښتو ژبه پوهیده، لکه څرنگه چی ده په خپله څو ځایه دغی خبری ته اشاره کړی ده . د مثال په ډول هغه وخت چـی دی د بنو د ژبو په باب خبری کوی نو وایی (ماته ښه تجربه شوی ده چی ددی ضلعی د حکامو په پښتـو ژبه پوهیدل له انصاف سره مرسته کوی او درعیت د خوشحالی باعـــث گرځی، که زه په خپله په دغــه ژبه نه پوهیدلای نو ددغه تاریـــخ لیکل او تکمیل کول یو نا ممکن کارو.) × همدا راز دبنو د سیمی د خلکوله سرود سره د مینی په بحث کی یی هم دیو شمیر پښتوژبی×× دکسرونورا تولولو ته اشاره کړی چی پــه

---

×دهمدی کتاب د بنو د ضلعی برخه .

×× دلته د موء لف مقصد لـــه کسره څخه یو ډول شعرو نـه دی لکه دمروتو کسرونه چی د مـــروت قبیلی حماسی او تاریخی پیښـــی پکی ځیر لی شوی دی اومرو تـو کسرو نه په ۱۹۵۹ع کال د پیښور د پښتـــو اکاډیمی لــه خواچاپ شوی دی . راټولو ونکی یـــی مجذوب مروت دی ( رشـــا د )

اردو ژبه یـــــی ژباړلــــی دي.نو دده له دغو لیکنو ښکاري چـــې دی په پښتو ژبه ډیر ښه پو هیده.نو ځکه د هغه څیړنی او لیکنی تـــر نورو بهرنیو مور خینو زیاتی پــه زړه پـوري او د داد وړ دي. دده د کتاب یوه بله خاصه (ځانګړ تیـا)د پښتنی قبیلو د نسب د شجرو را ټولول دي چې په بل اثر کې په دغه تفصیل سره نه دي لیدل شوي کــه څه هم ددغو شجرو ځینی نو مو نه غیر مانوس دي او ځینی یی په هماغه ډول چې په کور کهول کی ویل کیږي.راوړي دي ، مثلاً ډیر پښتانه اصغو داعزیزیه شکل او خدایداد د خویداد،عبدل داودل په شکل تلفظ کوي.اوپه همدی ډول ډیر زیات داسی نومونه شته چې هغوی یی.په خپله ژبه په بل ډول تلفظ کوي که څه هم محمــد حیات خان زیار ایستلی دي چې دنوم محلی تلفظ ترڅنګ دهغه اصلی.بڼه هم ولیکی ،خو په ځینو ځایونو کی.یی دغه ټکی نه.دی مراعات کړی او یــا دهغه یه اصلی تلفظ نه دی.پوهیدــ لی .خو سره له دی هم دانسا بو دشجــرو د را ټولولو له پلــوه دغه کتاب ډیر غنی اوپه دغه برخه کی یوه انسا یکلو پیدیا ګڼل کیږ ی .

لکه چې وړاندی مو وویل په دغـه کتاب کی.سر بیره په تاریخی مطالبو مؤلف دبیلو بیلو قومونو ،قبیلو ،ښارونواو کلیودودو نه اودستورونه نرخونه (قوانین) دشغو لیتونه، سا تیری ،میلمستیا ګانی، شو قو نه او عادتونه او نوری کلتوری اواجتما عی.پدیدی اوجوړښتونه په ژوره توګه څیړلی او تشریح کړی دی نو ځکه دغه اثر نه یوازی د یوه.تاریخـــی کتاب.په څیر د یادونی وړ دی بلکی.انترو پولو جیکی.اوسو سیو لو جیکی ارزښت هم لري په دغه کتاب کـی.ځینو سیمو یو لړ نرخونه (قوانین) او د هغوی محلی نو مو نه او هـــم راغلی ،چې دغه نو مونه اوس متروك نومونه او دهغوی موقعیتو نــــه.د ځینو سیمو یو شمیر جغرا فیایـــی شوی دی . له بله پلوه په کتاب کی.ځینی تیر وتنی شته چې هغه اوس دوخت په تیریدو ثابتی شوی دی ،او هم داسی ټکی پکی ذکر شوی چې هغه د منلو وړ نه دی . او ددغـو په څنګ کی ځینی ناقصی او نامکملی جملی هم په کتاب کی راغلی دی ،چې معلو می نه دی چې هغه بـــــه د مــــوء لـــف تیرو تنـــــه وی.او یا دکاتب په هر ترتیب ددغـو تیرو تنو د اصلاح او ځینو جغرافیایی.مترو کو نومونو او نرخونو د ښـــه تشریح او واضح کولو لـــــه پاره.دا منا سبه ښکاري چې په کتـــاب باندی د یوه داسی پوه له خوا چـی.علمی صلاحیت ولري تعلیقات ولیکل شی .

که څه هم دکتاب دتاءلیف په برخه کی د محمد حیات خان پوهه له ننیو
مور خینو سره پر تله کیدای شی خو ددغو بنیګنو او علمی میتودونو
تر څنګ چی ده په خپل کتاب کی په پام کی نیولی په دغه اثر کی
یولړ داسی ټکی هم لیدل کیږی چی د تعمق وړ دی په لومړی سر کی لکه
چی وړاندی مو وویل محمد حیات خان دانګریزی استعمار له خوا نوزل شوی
او هم د هغوی له خوا ده ته جاګیر ورکړل شوی و، نوځکه دده لیکنی
ژوری څیړنی او تعمق ته ضرورت لری او باید دغه لیکنی په انتقادی
ډول مطالعه شی، تر څو هغه ټکی چی استعماری رنګ لری او یا دهغوی
په اشاره لیکل شوی او یا د کوم غرض له پاره لیکل شوی وی راوسپړل
شی، که څه هم دده د لیکنی په اساس داکتاب دافغانانو او افغا ــ
نستان سره د یوی خاصی مینی زیږنده وی .

د کتاب په ډیرو ملو نو کی دانګریزانو له عدالت او د هغوی د
انسانی چلند یادونه شوی ده همداراز دمالیی لږوالی او د کوفیتو له
منځه تلل هم ددوی دوری ته نسبت ورکړل شوی دی او برعکس یی دافغانی
واکمنی دوری تیاره او له تشدد نه ډکی ښودلی دی دغه ټکی د تعمق
وړاو باید لومړی په دی وپو هیږوچی ده دافغانستان د تاریخ کومه دوره
څیړلی ده دغو پوښتنو ته تر ځواب ویلووروسته بیا دده په لیکنه قضاوت
وکړو .

که څه هم ده دافغانستان تاریخ په عمو می ډول څیړلی خو د ده
څیړنه ډیره ژوره نه ښکاری لکه څرنګه چی ده د مالیی په برخه کی
داحمد شاه بابا تر دوری دمخه دوری هیڅ نه دی مطالعه کړی او د بنودضلعی
دمالیی په برخه کی ده په خپله دغی موضوع ته اشاره کړی اوویلی یی
دی چی له دغه ځای (بنو) نه د ابدالی احمد شاه تردوری وړاندی
دمالیی دراټولو لو څرنګوالی ښه نه دی معلوم ،خو نومړی پاچا له دغه
ځایه دولس زره روپی دمالیی له مدرکه دقلنګ په نوم او شپږ زره روپی نوری د
لښکر خرڅ اوذوقی له پاره دسورسات په نوم په دغه ځای ټاکلی وی، چی
ټولی یی اتلس زره روپی کیدی ، په داسی حال کی چی دانګریزانو په
دوره کی لومړی ځل پنځه اتیا زره روپی دو یم ځل څلور نوی زره
روپی اودریم ځل دیو لك او اوه زره روپیو په شاو خوا کی مالیه په
دغه ځای ټاکل شوی وه، که څه هم موء لف ددغه زیاتوالی له پاره یو
شمیر دلایل وړاندی کړی دی ،خو دغو دوواعدادو تر منځ ډیر ژور اختلاف
موجود دی نو ځکه دده دلایل کافی نه دی نو په دغه ځای د انګریز

عدالت ته گوته نیول کیږی او بیاد تیمور شاه له واکمنی را وروسته ددغه موء لف د ژوند تر دوری پوری افغانستان له ډیرو زیاتو کورنیو ستو نزو سره مخامخ و، په لومړی سر کی د تیمور شاه زامن د تاج او تخت د تر لاسه کولو په منظور په خپلو منځو کی په جګړو سره بوخت وو اوله بله پلوه دسردار پاینده خان زامنو دخپل وروړ سردار فتح خان تر وژل کیدو وروسته د سدوزیو دکورنی پاچائی دمنځه وړلو له پاره کوښښ کاوه او هغه وخت چی په خپل دغه مقصد کی بریالی شول، نو سمدلاسه په خپلو منځو کی د تاج او تخت په سر لاس او ګریوان شول اوپه دغه ترتیب افغانستان دضعف او انحطاط په لور مخه وکړه او دغی بی‌نظمی د مالیی د راټولو لو په ځرنګوالی کی هم انعکاس وکړ، نو ځکه محمد حیات خان د هغوی یادونه کړی او لیکلی یی دی، (هغه وخت چی د شامحمود سدوزی وزیر سردار فتح خان بنو ته راغی، نوهغه ددی له پاره چی په تیرو څو کالو کی د مالیی دټولولو له پاره‌هیڅ حاکم هغی خواته نه و تللی د یو لك روپیو مالیی دحصول تکل وکړ. تر ده وروسته پیردل خان او نورو افغانی حاکما نو هم دغه راز چلند وکړ، ځرنګه چی په دغه وخت کی په افغانستان کی کوم مقتدر مرکزی حکومت موجود نه و سدوزیان او بارکزیان په خپلو منځو کی په جګړو سره بوخت وواو دغو جګړو زیاتو پیسو ته ضرورت درلود اودغو پیسو لاس ته راوړلو لو یه منبع مالیه ګڼل کیده اوهر واکمن به چی په کومی سیمی قبضه ټینګه کړه، په هغه ځای به یی د خپلی خوښی په اندازه مالیه ټاکله او د هغی دتعمیل له پاره‌به یی کوښښ کاوه. نو ځکه د افغانستان په تاریخ کی دا دوحشت او ستونزونه ډکه دوره ګڼل کیږی.

همدا راز د کتاب په نورو برخو کی‌هم یولړ داسی مسایل لیکل شوی چی مطالعه یی‌غور او دقت‌غواړی . خو دلته دهغوی راوړلو ته کوم ضرورت نه لیدل کیږی، دا ځکه چی په دغه مقدمه کی نه غواړم په کتاب باندی کره کتنه وکړم او له بله پلوه لوی اوفاضل استاد محترم رشاد بنایی په خپله مقدمه کی هغه ټولی را برسیره کړی وی .

ددغه کتاب د ژباړی څرنګوا لی به باب باید ووایم چی ددغه کتاب نوم می اورید لی و او ما فکر کاوه چی هغه به ضرور په پښتو یا دری اړول شوی وی خو هغه وخت چی په دی وپوهیدم چی هغه په دغو ژبو نه دی اړول شوی نوحیراان شوم ، دا ځکه چی دایو ډیر جامع او ګټور کتاب او له داسی ارزښتنا کو ټکو ډک دی چی له هغو نه خبریدل هر یوه افغان ته ضروری خبره ګڼل کیږی. له نیکه مرغه دا کتاب د لومړی ځل له پاره په ۱۳٦۱ کال کی دښاغلی ابرا هیم عطا یی له خوا هغه وخت چی دی داقوامو او قبایلو چارو وزارت دتد قیق اومطالعاتو د ریاست سرپرست و د ژبا ړی له پاره ددغه وزارت محترم مقام ته پیشنهاد کړ شو او تر منظوری وروسته یی دژباړی چاری مااوښاغلی عبداللطیف طالبی ته وسپارل شوی او مونږ دډیرو مشکلاتو سره سره بیا هم دکتاب په ژباړلو پیل وکړ ، په لومړی سر کی له یو شمیر ستونزو سره مخامخ وو لو مړی مشکل داو چی مولف دخپل کتا ب په ډیرو ځا یونو کی ذوالو جهینی او کثیرالوجو هـی کلمی استعمال او دهغو تر څنګ یی ځینی پنجابی کلمی هم راوړی وی، خو ددغو مشکلا تو په له منځه وړلو کی لوی او پوه استاد پو ها نـد عبدالشکور رشاد زمونږ سره زیاته مرسته وکړه په تیره بیادزقمو او اعدادو په حل کی، نو ځکه دده له هغی بیحده مرستی څخه چی دد غـی ترجمی په برخه کی یی له مونږ سره کړی ده ډیر مشکور یو. دکتاب د ترجمی په برخه کی امانت تـه ډیره پاملرنه شوی ده او تروسـی وسی مو زیار ګاللی دی چی متن او ژباړه سره یووالی او هم آهنګـی ولری. خو سره له دی هم که چیری محترم لوستو نکی له کومی تیروتنی سره مخا مخ کیږی نو مونږ دهغـی له پاره معذرت غواړو ، او یادی په دغه برخه کی موږ ته لارښوونـه وکړی تر څو که په راتلو نکی کی دغه کتاب ته د چاپ زمینه مساعده شوه ددغو تیروتنو مخنیوی شـوی وی په پای کی د پوهاند دکتـور جاوید څخه چی خپل کتاب یی دژباړی له پاره په امانت ډول راته سپارلی ومنه کوم .

فرهاد ظریفی دزما نخا ن کـلا

۱۳٦۲ لمریزهجری کال دلړم دمیاشتی ۲۸

# دلیکوال سریزه

زه خاکسار محمد حیات خــان دمحمد اکرم خان زوی، چی پــه خاص واه کی حسن ابدال ته نژدی دراولپنډی په ضلع کی او سیږم ، وروسته د متعال او لاشریك خدای له مدمی او درود په سیدا لا برابر په ډیر عجز سره خپل دا کتاب درنو او پوهو ویو نکو ته وړاندی کوم، خو زه ځان ددی وړ نه بولم چــــی د مصنفینو په ډله کی دی وشمیرل شم، مګر له نیکه مرغه څه مـــوده چی د بنو په ضلع چی دافـغا نستا ن په دننه کی موقعیت لری، اکستــرااسستنټ کمشنر وم، د افغا نانـــو (پښتنو) او افغا نستان په هکلـــه می معلو مات تر لاسه کړل، اوځنګه چی تـــر دغــــه وختـه می ددغه مشهـــور هیـــواد او د هغـــه زړور قوم حالات په مشرح ډول نه وو تر ستر ګو شوی نو ځکه ما ته ددی احساس پیدا شو چی دافغانانو (پښتنو) د ټولو توکمنو او پـــه

افغانستان کی دنورو میشته قـو مونو په هکله معلومات له ابتداء(۱) نه ترنن پوری او همدا راز د ملـك لنډ تاریخ، د هری یوی قبیلی نسبی شجره او مربوطی ریښنی یی تړهغه ځایه چی معلو می دی او هم ددوی د رواجو نو په باب یو څه ولیکم.

تر هغه ځایه چی ممکنه وه پـه دغه لیکنه کی هڅه شوی ده، چـی معلومات په مطلوب او ښه ډول راټول او د عامه گټو له پاره یـــی تاء لیف کړم، دافغا نستان ددغــــه تاریخ نوم ددی لپاره چی له هغـه څخه هم د موء لف نوم او هم دافغانانو د ژوند حالت څرگند یږی حیات افغا نی کیښودل شو.

دغه کتاب په دریو برخو کـــی ترتیب شو یدی :

**لومړی برخه :**

دافغا نستان د جغرا فیی ، تجارت، او عام تاریخ په باب ده.

**دویمه برخه :**

دپښتنو دخاصوقبیلو تاریخ دنسب شجری او همدارنگه په افغا نستان کی د نورو میشتو قومو نو حالات په مشرح ډول بیا نوی .

**دریمه بر خه :**

په خاص ډول د ښو ضلعی اودهغی اوسیدو نکو تاریخ دی . که څـــه هم د راټول شوو معلو ماتو په باب دد غی خبری ذمه واری ،چی ټول به بیخی صحیح وی یو ناشونی کار دی مگر دغه ضعیف مو جود (موء لف) د خپلی وسی په اندازه د غلطیـــو درفع کولو لپاره کوښښ کړی،ددغه مطلب د تر سره کیدو له پاره می د هغو بیلو بیلو روایتو نو څخـــه چی په پښتو، فارسی او انگر یزی کتابو، شجرو او نسب نامو کی موندلی او یا مـــی دباور یخلکو د خو لـی څخه اوریدلی گټه اخیستی ده، او هم په دغه باب دځینو نورو تا ریخی،مادی موادو لکه زړو سکو،زړوودانیو او نورو څخه چی کوم معلو مات ترلاسه شوی وروسته تر کره کولـو او ثقه توب راوړل شو یـــــدی. سره له دی هم زه له محترمو پوهانو څخه هیله لرم که چیر ی د کو مـوتیرو تنو او یا د عبارت له خرابـی او ماتوا لی سره مخا مخ کیږی نـو مادی و بخښی همدا رنگه ښا غلـی

(۱) د مؤلف مقصد له افغا نا نـوڅخه پښتانه دی او هر ځای کی چی دغه کلمه راشی باید وپو هیږوچی مقصد پښتانه دی نه دافغا نستـان اوسیدو نکی (ژبـــــاړو نکـــی)

منقدین هم باید دکتاب د مطالعی په وخت کی دانصاف له لاری څخه وانه وړی .

ددغه کتاب د لیکلو په وخت کی لیکوال په دغو لاندینیو آثاروا وکتابونو استناد او له هغو څخه یی استفاده کړی ده .

**(۱) دفارسی ژبی آثار:**

د تورات ژباړه او د لرغونی عهدمقدس کتابونه، تاریخ فرشته ، حبیب السیر، تاریخ عالم، مخزن افغانی، تذکرةالانساب ، تذکرةالابرار، تاریخ جدولیه ، تاریخ پنجاب ، تاریخ هند ، تاریخ کشمیر، طبقات اکبری ، تذکرة المشاهیر ، جام جهان نما، واقعات اسکندر اعظم، تاریخ احمد، ګلشن التواریخ.

**(۲) په انګریزی ژبه کی :**

دمباغلی الفستن کتاب ، دمباغلی راورتی ګرامر، دمباغلی فریافریر کتاب، دمباغلی اسکندر الکزاندر برنس کتاب، د مباغلی موهن لال کتاب، واقعات انډیا، دمباغلی سرهربرټ اډواردس کتاب، د تجارت په هکله د پنجاب دسکرتر مستر دیوس صاحب رپوټ، پرته ددی څخه د نوموړی سلکشن منتخبات او مترفقه راپوروننه دضلعو دواکمنانو او حکامو په باب.

**(۳) د پښتو ژبی آثار :**

د محمد افضل خان تاریخ(تاریخ مرصع) ،ګلشن روه، داورمړ دنسب رساله اوپښتو نسب نامه ،له دی کتابونو څخه پرته کوم روایات چی په دری واړو ژبوکی لاس ته راغلی اوهم په دغه کتاب کی ځای ګړل شوی دی، په پښتو اوفارسی ژبو متفرقه شجری چی د ځینو کورنیو څخه لاس ته راغلی، دفارس دپخوانیوحکامو سندونه، دهندو یونانی سلطنت زړی سکی چی د سپین ږیرو ژبنی اوشفاهی روایتونه ،چی هغوهم پخپل وار سره له خپلومشرانو څخه اوریدلی او رښتیااو ثقه توب یی د څونورو منطقی او معقولو روایتوسره دمقایسی په وخت کی ثابت شوی، ددغه کتاب دلیکلو اساس دی .

زما مقصد ددغه مشکل څو کلن کار څخه یوازی د نوم ژوندی پاتی کیدل او عامه خلکو ته ګټه رسول دی . له لوی ښښتن (ج) څخه غواړم چی زما دغه کتاب وګړای شی دویو نکو تنده ماته کړی.

د ۱۲۸۱ مقدس هجری کال د شعبان د میاشتی څوار لسمه .
د ۱۸٦۵ عیسوی کال د جنوری د میاشتی دریمه .
اود ۱۹۲۱ بکرمی (بکرما جیتی) کال دماګه د میاشتی دریمه .

# لومړی برخه

## جغرافیه، تجارت او د افغانستان عام تاریخ

## لومړی باب

### جغرا فیه او تجارت :

څنګه چی ښکاره ده ددغه ملك نوم‌دهند وانوپه لرغونو کتابونوکی بالهیك دیس راغلی دی او کله چی‌دغه ملك د ایرا نیانو لاس تـــه ورغی نو هغوی د زابلســـتان اوکابلستان په نامه مشهور کـــړ.

دلوی اسکندر د راتګ سره چـی‌یو نانیان دلته راغلل هغوی دغه ځای په خپله ژبه باکتریا وبـــاله، چی‌اصلاء دغه نوم د باختـــــر اوښتی شکل دی، اوبیا چی دعر بانواو مسلما نانو وار راغی په دغـــه وخت کی د افغا نستان دوی برخـــی‌په دوو نومو نو مشهوری شـــوی ختیځی خواته سیمی دکابل اوکندهاراولویدیځی خواته سیمی دایران تر پولو پوری دخراسان *په نامه یادی‌شوی چی ددغو سیمو مشهور ښـــار

---

*د خراسان نوم د ایران پاچـــا انوشیر وان له‌خوا ایښودل‌شوی دی.

هرات،و، او ختيځه برخه يې د (روه) يعنې غرني ملك په نامه ونومول شوه، همدا راز دجلال الدين محمد اکبـــر د هندوستان د صوبو د ویشلو په وخت کې دغه هیواد د کابل صوبې په نامه لیکلی دی . *

کله چې ایراني نادر شاه لـــه منځه ولاړ او په (۱۷٤۷) ع کـــال کې ابدالي احمد شاه په کندهارکې پاچا شو، نوله هغه وروسته دغه هیواد ته دِ افغا نستان نوم ورکړل شو اوپه دغه نوم يې شهرت وموند مگر اوس هم ډير خلك ددغه هیـــــوادلويديځې برخې دخراسان په نامـــه يادوي .

## د افغا نستان د تسميې وجه :

لکه څنګه چې پوهيږو دغـــه هيواد ته له ډې کبله افغا نستـــان وايي چې اوسيدو نکې يې افغا نـان دي چې دغسې نومونه په نوروهیوا ــ دونو کې هم ليدلاى شو لکه دهندوستان نوم چې دهندوانو د موجوديت له امله مینځ ته راغلی دی او همداراز تر کستان دترکانو داوسيدو له امله په دغه نوم بلل کيږي . په نړۍ کې ډير نور، داسې هيوادونه ليدلاى شو چې نوم يې دپکې ميشته قوم له نوم څخه يوازې دستان کلمې پــه زياتولو جوړ شــوي وي . چې دستان څخه مقصد ځمکه اوځای دی. (لکه بلو چستان ــ ازبکستان ــ عربستان ــ انګلستان او نور)

## څلور خواوې (حدود اربعه ) :

ددغه هیواد څلور خواوې دتاريخ په اوږدو کې په يوشکل نه دي پا تې شوي ، هندوانو دخپلې وا کمنې په وخت کې تر بلخه بالهيك ديس باله، مگر يو نانيانو دبكتريا حدودو ته تر پخوا (تر هندوانو ) زيا ته پرا ختيا ورکړه ،د ایرانیانو پــه دوره کــې زابلستان او کا بـلستان دوې وړې صوبې وې خود (روه ) حدود د هغه وخت موء رخينو ختيځ خواته دسندنه پورې خوا تر حسن ابدال پـــور ې كښلي دي .

دليکوال (موء لف) په وخت کې هم ډيرو جغرافيه ليکونکو افغا نستان او بلو چستان په يوه چاپيريال کې سره گډ ښودلي ، خو زه د هغـــو

---

* داکبر مغل دپاچا هی په وختوکې فقط پیښور ، بنو، ننګر هار ، کـابل او غزني د کابل د صوبې په نامـه ياد شوي دي ــ دا دټول افغا نستان نوم نه و. (رشاد)

حدودو او هغه هیوادبیان کوم چی خاص افغا نستان دی او په نقشو کی په دغه نوم لیکل شوی دی .

په اوسنی وخت کی هغه ټول ملك افغا نستان بلل کیږی، چی د بلو چستان ، هندوستان، او ایران تر مینځ له دیرش (۳۰) درجو څخه تر شپږ دیر شو (۳٦) درجو قطبی (شمالی) عرض البلد پوری اوله شپیتو درجو څخه تر ٦۸ درجو ختیځ طوالبلد تر مینځ پروت دی شمالی بر خه کی یی هندوکش او د ترکستان ملك ، لو یدیځ ته یی فارس یعنی ایران، سهیل ته یی بلو چستان ،جنوب ته یی د هند بحر (سمندر) او ختیځ ته یی سند چی دغه ځای ختیز ته په هندوستان پوری مربوط پنجاب مو قعیت لری، ددغه هیواد حدود جوړ وی .

اوږدوالی یی د اټك له سینده څخه د هرات تر لویدیځ پوری چی دایران سرحد جوړوی (٦۰۰) میله او پلن والی یی د هندو کش دغرونو له شمال څخه *دبلو چستان تر جنوب پوری (۵۰۰) میله تخمین شویدی .

پراخوالی یی دری لکه مربع میل دی، او په هر میل کی یی اته ویشت تنه ژوند کوی ، یعنی ددغه هیواد دوکرو شمیر (۸٤) لکو تنو ته رسیږی دافغا نستان د سطحی زیاته برخه لوړه ژوره او د ځمکو توټی یی دغرو نو په ذریعه یو له بل څخه بیلی شوی دی ، دکرنی ځمکه یی حاصلخیزه او میوی یی ښی او خوند وری دی.

دافغا نستان په شما لی سیمه کی دهمالیاء دغرونو لړی، چی د هندوکش په نامه یادیږی سهیل ته یی له بلوچستان څخه دشمال په لورد سلیمان دغرو لړی پرته ده چی دکیسی یاقیسی په نامه یادیږی اود دغو غرونو دموجو دیت له امله افغانستان په دوو برخو ویشل کیږی ،ختیځ ته یی د پنجاب ملك دی چی اوس په هند پوری مربوط اود انگریزانو په قبضه کی دی، خو لویدیځه زیاته برخه یی دکابل په امارت پوری تړلی ده، ددغی سیمی زیاته برخه غرنی اودخپل دغه جوړښت په وجه د کابل امارت په دغه ځای چندان سلطه نلری او خلك یی په آزاد ډول ژوند کوی.

دکابل ریاست ته د تابعو وگړو شمیر (٤۵) لکو تنو ته رسیږی که څه هم پورته په لنډ ډول د افغا نستان دجغرا فیی په باب یو څه

*بایدهندوکش د غره پر ځای دآمو رود وای (رشاد )

معلو مات ولیکل شول، خو په مفصل ډول به ددواړو برخو ذکر وروسته راشی همدا راز په کومو علاقو کی چی دتجارت وړ مالونه پیدا کیږی هغه به دنوموړو علاقو سره یوځای ولیکل شی، خو د عام تجارت ، په هکله به معلومات ددغه کتاب په وروستی برخه کی وړاندی شی.

## لوېړی ختیځه برخه

هغه برخه چی دهند په برتانوی واکمنی پوری اړه لری د سند دریاب په ښی غاړه کی شما لاو جنو بـــ اًځلور سوه میله اوږده غزیدلی ده چی پلن والی یی دسند دریاب دغاړو څخه دکیسی دغره ترلو یدیځه پوری تخمیناً څلویښت میله دی، ددغی سیمی پوری په ترلو قطبی او لویدیځو برخو کـــی چی غرنی دی، خپلوا ک او جنګیالی قومونه ژوند کوی. دغه ځای د صحیح انتظام او د عدالـــت دټینګښت له پاره دسر کار لخوا په دوو برخو او بیا په شپږو ضلعــو ویشل شوی دی چی د کمشنرانو لـــه خوا اداره کیږی او په ختیځه برخه کی یی اتلس لکه خلک ژوند کوی . دغه تقسیمات په لاندی ډول دی :

## لومړی دپیښور برخه

په دغه برخه کی دری ضلعی پیښور، کوهاټ او هزاره مو قعیت لـــری.

**دپیښور ضلع :**

ددغی ضلعی دریو خواوو یعنـــی قطب ، لویدیځ او سهیل ته غرو نه او ختیځ ته یی د سند دریاب مـــو قعیت لری. دکابل سین چی دهغه ځای خلک یی لنډی بولی ددغه ځـــای له لویدیځ یعنی میچنی څخه راو ځی او د ختیځ خواته بهیږی او د سند له دریاب سره داټک کلا ته نـــږدی دنیم میل په فاصلی یوځای کیږی، ددغه سین شته والی ، دغه ضلع په دوو برخو ویشی په شمالی برخه کی یی اشنغر (هشتنگر) پرګنه او یوسف زی او دهغه ځای لویدیځ خواتـــه دسوات او کابل سینونو تر مینـــځ ددو آبی سیمه پرته ده، په سهیلی برخه کی یی دداودزیو پرګنه ، خاص

پیښور او د ختکو تحصیل یعنـــــی نو ښار مو قعیت لری ، په لوړی بر-
خه یعنی دیو سفزیو په پرګنه کــی کمالزی ، دولت زی اونوری قبیلـــی
چی‌دمند ړو اولاده ده‌او سیږی ددو ی‌دنسب شجره به ورو سته راشـــی ،
دوی د خټکو خاو ندان دی .

داشنغر (هشت‌نګر) په پر ګنــه کی د محمد زیو قبیله او په دوآبه
کی ګګیانی او نور استو ګنه لری‌په شهیلی برخه نی‌یی داودزی ، حلیل،
مهمند (مومند )اود ختکو قبیلی‌میشته دی مګر خاص د پیښور په ښار کــی

مختلفی او بیلی بیلی قبیلی اوسیږی، دغه ښار د لاهور له مشهور ښارڅخه
(۲۲۵)* میله په‌شمال‌لو یدیځه څنده‌کی اود سند له رودہ نه څلویښت

میله لری‌دلو یدیځ خواته پروت دی،دغه ښاردیوه خام‌او پخوانی ښارپه
مینځ کی‌جوړ شوی‌دی چی‌د سمنـدر‌له سطحی څخه تقریباء (۱۰۰۰)فوټه
جګوالی لری، دغه ځای ته د لو یدیځ افغا نستان ، ایران او ترکستان‌څخه

هر ډول تجارتی مالونه راځی پـــه تیره بیا هر راز میوی، پوستینونه ،
سنجاب ،سمور، داوښ دوړیو‌څخـه جوړی شوی چپنی ،بر‌کی، وریښمین

تو‌کران او داسی نور، همـــدا راز د‌منی د موسم‌په پیل کی یو زیات‌شمیر
آسونه هم دلته دخرڅلاو له پـاره راوستل‌کیږی .

ددغه ښار ودانی که څه هم ډیری ښکلی‌نه دی ، مګر بیا هم نسبتـــاء
ښی دی ، د سر‌کار پوځی چـونی دښار لویدیځی برخی ته په اوږده‌او
پراخ‌ډول پرته ده‌د باړی‌ویاله (نهر) دچاونی او ښار په مینځ کی جاری

ده او په‌دغه ځای کی دوریجو دحاصل‌دزیاتوالی سبب کیږی داشنغر (هشت
نګر) او دوآبی تحصیل د ګـوړی دتولید له امله ښه نوم او شهرت
لری همداراز په پیښور کی پــــه زیا ته اندازه لو نګی، پوزی اوپکی

جوړیږی . د یو سفزو په سیمه کی‌لوړی درجه تمباکو میندل کیـــږی
چی په ټول هندوستان کی مشهــــوردی ، او د سوغات په ډول لـــیری

ځایو نو ته وړل کیږی.

دکابل او سوا ت دسینو نو په ذریعه د لمنځی او ښنتر لر ګی چـی
په ودانیو کی ورڅخه کار اخیستـــل کیږی په زیاته اندازه د غرنیو سیمو
څخه لیږدول کیږی، چی ددغو لرګیو له درکه هم سودا ګرا ن او هـــــم
پلورو نکی ډیره ګټه کوی.

---

* دګو مو ځایونو فاصلی ذکر چی‌دلته راغلی هغه په مستقیم ډو لد
نخښی له مخی سنجول‌شوی ده او دسړك فاصله له هغه څخه په لـــږ
تفاوت سره لــــږ څـــه لیری ده.

ددغه ښار مشهور او د لیدنـــی وړ ځایو نه دادی :

ګوړ کتهړی، یاګور کهتینی چی دلته دګور ګهنا مند ر(درمسال ) واو اوس په کی د تحصیل دیوان، دفتر اودر بار دی ، دغه ودانی په پاخه ډول اود سرای په شکل جوړه شوی ده ،دبالا حصار کلا دښار څخه د باندی دچونی په خوا کی واقع او په هغی کی سر کاری ګودام او خزا نه ده.

دوزیر باغ هم د کتلو وړ ځایدی وزیر باغ د ښار څخه دوه میله لری سهیل خواته د یوی خاصی چاردیوالی په مینځ کی پروت دی، دغی و د انـــی خپله ښکلا د هغی د شیشه خانـــی دړنګیدو له امله له لاسه ورکړی ده،

دپیښور په سهیل او ختیځه خوا کی ډیر باغونه مو قعیت لری او پـــه پسر لی کی د ډیرو ګلانو د غوړیدو له امله ډیر ښکلی بریښی، دپیښور جامع جومات دښار په منځ کی پـــه پاخه ډول جوړ شوی دی ، دکوتوالی نوی تعمیر هم د پښتو یو نو په کـــره کی د سر کار له خوا په پاخه ډول جوړ شویدی .

## د کوهاټ ضلع :

کوهاټ دپیښور سهیل ته اوله لاهورڅخه (۲۲۰) میله لری دلویدیځ خواته په داسی حال کی چی لږ څه د شـمال خواته تمایل لری پروت دی. دغـه ضلعه دغرونو په ذریعه احاطه شوی ده، دپیښور اوکوهاټ ترمینځ داپریدو دغرو لړی ختیځی خواته د کاکاصاحب تر زیارته پوری غزیدلی ده.ددغـو غرو دموجـودیت له امله چی آزاد قومونه په کی اوسیږی ،د انګریزی سرکار ترادارِی لاندی سیمو سرحدونه په نقشه کی کاږه واږه معلو میږی .

ددغه ضلعی په ختیځه اوسهیلی برخه کی د ختکو، تری او بولاق قومونه اوپاتی برخه کی یی بنګښ اولږه اورکزی اوسیږی دسرحد په شمالی او لویدیځی کرښی باندی داپـریدو او اورکزیو قومونه په آزادو غرنیو سیمو کی ژوند کوی، چی ددوی ځینی اعمال او خصو صیتونه تل د مرکزی حکومت داندیښنی سبب ګرځی، لـه همدی کبله یوه اندازه پوځ په سرکاری چونی کی ساتل کیږی، همدا رازدلته یوه زړه کلاهم موجود ده چی دسمندر ه سطحی څخه (۱۷۶۷) فټه جګوالی لری.

دکوهاټ ضلعه یوه وړه ضلعه ده چی له دوو تحصیلو څخه جوړه ده دغه تحصیلی خاص کوهاټ اوهنګو نومیږی .دلته دشنی مالګی په نامه یوکان شته چی له هغه څخه په زیاته اندازه مالګه استخراج اولو یدیـځ اوختیځ افغا نستان ته د تجارت لپاره وړل کیږی .ددغه مالګی نر خ ار زان دی خو ډیری شګی لری. دهنګو تحصیل وریجی ډیرښه جنسیت لری، اوډیری مشهوری دی .





و یل کیږی چی د بلو ټ کلادرا جابل په ذریعه جوړه شوی وه کله چــی دسهیل له خوا د بلوڅو قوم په دغه ځای یرغل وکړ او نوموړی ملــک یی ونیوه په دغه وخت کی اسمعیل خان هو ت چی دیره اسمعیل خــان دده په نوم شهرت موندلی دی دخپل قوم په مشری ددیره غازی خان څخه راغی ،او په ببر نومی ځای چی ښار څخه دوولس فرسنګه *لیــری د جنوب خواته یی موقعیت درلود میشته شو، څو کاله وروسته چی په ملــک باندی دده قبضه کاملاً ټینګه شوه، نو بیا یی پو ځای انتخا ب او په خپل لاس یی د(۱۶۱۹) بګرمی کال د ماګهه دمیاشتی په (۲۲) نیټه اود جلالدین محمــد اکبــر د واکــمنــــی په وخت کی ، چی له هغه وختــه (۳۰۲) کاله تیریږی ددیره اسمعیل خان دزاړه ښار تاداو کیښنو د او په خپل نوم یی مشهور کړ داسی روایت شته چی ددیره اسمعیل خان په پخوانی ښار کی چی اوس د سند دریاب څخه لاندی شوی دوه نیم زره کوره میشته وو او د بلو څانو پخپل کوښښ سره هغه ډیر ښکلی آباد کړی او ډیــر باغونه یی پکی جوړ کړی وو، خو په (۱۸۷۵) بکرمی کال کی د سند دریاب خپل اصلی مسیر ته تغییــر ورکړ او د کورو نو په ورانو لــو او تباهی یی پیل وکړ چی د پنځــو کالو نو په موده کی یی نوموړی ښکلی ښار له منځه یووړ، او ښبی نښانی یی هم پاتی نه شوی او بځلك یی تیت او پرك شول . په (۱۸۸۱) اتلس سوه یو اتیا بکرمی کال ددیری نــواب ددیره اسمعیل خان اوسنی ښار جوړ او پخوانی نوم یی ور باندی کیښود.

د اسمعیل خان هوت اولاده پــه دغه ځای کی تر پنځو پښتو حکمرانی کوله ددغه کورنی وروستی غــړی چی رئیس نصرت خان نومیده څه دخپلی عیاشی او بی تدبیری لـــه امله او څه هم د پښتنو دظلم له کبله د ریاست څخه عزل او په کابل کی بندی کړی شو او ابدالی احمدشــاه لومړی سیفلی خان او ورپسی موسی خان درانی یو په بل پسی ددیــری حاکمان مقرر کړل. داؤدخان نومــی بلوڅ ناڅاپه په دیره یرغل وکــړ اوموسی خان درانی یی تیبی کــړ. دداؤدخان بلوڅ دغه عمل ددرانــی

---

* دلته موء لف دفرسنګ پځای دکوس کلمه استعمال کړیده چی دغه کلمه په فیروزالغیاث کی په فرسنګ ترجمه شوی خوښاغلی حسن کاکــړ هغه پخپل کتاب کی په یو بل داوړ دوالی واحد تر جمه کــړی چی (۳۰۰۰) متره کیږی. (ژباړو نکی)

دکوس په باب د تعلیقا تو بر خه وګوری . ( رشاد)

پاچا قهر راوپاراوه او دغه کورنی دده دغضب وړ وګرځیده او ددغـــی کورنی جرړی یی له بیخه وایستلی.
د موسی خان تر مینځه تلووروسته د افغانستان د پاچا له خوا قمرالدین خان، عبدالرحیم‌خان‌اودرباری ملهریو یخپل‌وارسره‌ددغه ځای‌حکمران‌وټاکل شول.
شاه زمان‌دخپلی واکمنی په وخت‌کی ددغی دیری نوابی، نواب محمد خان سدوزی بهادر خیل‌ته وسپارله چی د هغه تر مړینی وروسته نواب حافظ احمدخان ددغه ځای وارث شوورپسی دده زوئ نواب شیرمحمدخان دپلار ځای ونیوه، چی دده په وخت‌کی کنور نونهال سنګه دکال شپیتــو زرو روپیو جاګیر دورکولو په مقابل‌کی‌دغه ځای ترلاسه کړ.
په (۱۸٤۹)عیسوی کال‌کی دپنجاب دنیولو سره یوځای دغه دیره هــم دانګریزئ سرکار لاس‌ته ورغله‌چی تر دغه وخت دغه ځای تر قی‌کړی او اباد شوی وخوپه (۱۸٦۱) عیسوی کال‌کی دسند رودیوځل بیا ددغه‌ښار په‌خوا خپل مسیرته تغییر ورکړ اوخلک یی‌له خطر سره مخامخ کړل، خو انګریزانو ددیرو پیسو په لګولوسره یو بند جوړ او د سند دریـــاب مخه یی وګرځوله.
ددغه ضلعی په حدودو کی دسهیل‌لورته دسند دریاب بهیږی چی دهغه په سبب دغه ضلعه په دوو برخو ویشله کیږی دسند رود ختیځه برخه چی وچه او شګلنه ده دوه دولـــه طبیعی جوړښت لری، لومړی د اچی تهل او للمه، دوهمه چهنګ چی داهغه دول ځمکه ده کله چی د سند په دریاب کی سیلاب راشی یواندازه‌اوبه دغو ځمکو ته ورځی او دهغوی په ذریعه خړو بیږی، او للمه ځمکه یی اکثراء د اوبو د کمښت له امله وچه او د څاګانو د نشتوالی پـــه صورت کی د کرهڼی وړ نـــه ده.
که‌چیرئ د ختیځ تهل لـــه پاره‌ماړی ته نږدی د سند له زوده څخه یوه ویاله وکاړله شی نو دمیانوالی‌څخه نیولی ترلیه، بهکر، او ښکته ځایو نو پوری به تولو ځمکو تـــه زیاته ګټه ور سیږی، چی ددا سی یوی ویالی د جوړولو تجویز سرکارته وړاندی شوئ دی.
په دغه ځای کی ددریا خان تحصیل‌چی بهکر هم ورته ویل کیږی اوهم دلیه تحصیل پروت دی چی مشهوری قصبی او کلی یی دادی، لیه، کوټ سلطان، چوباره، کروړ، نواکوټ،هکر، دریا خان، منکیره کلا. پـــه دغو ځایو نو او کلیو کی د وړیـــو تجارت روان دی.

خود ابدالی احمد شاه په وخت کی نورمحمدخان چی دسرای(*) له قوم څخه ودسند له لوری پردیره غازی خان یرغل وکړ اودغه ځای یی ونیوه خو ویی نشوسا تلای اوددوی څخه ددرانیا نو لاس ته ورغی، اود کابل د سلطنت له خوا لومړی عبدا لصمدخان ،بیا نواب محمد زمان خان اووروسته نواب عبدالجبار خان بارکزی درانی او په اخرکی صدرخان بختیار ،ددغه ځای حکمرانان وټاکل شول ،کله چی رنجیت سنگه ملتان فتح کړاو دافغا نستان سلطنت دبارکزی اوسدوزی کورنیو دشخړو اونفاق په نتیجه کی ضعیف شونو په دغه وخت کی سکانو دغازی خان دیره په پنجاب پوری مربوطاو سانون مل ته یی وسپارله. دغازی خان دیره دمولراج له فسادونو اوبغاوت څخه وروسته د پنجاب په گډون دانگریزی سرکار له متصر فا تــو څخه وشمیرل شوه.

ددغه ښار شاو خوا ته شنــه ښونه او د خرما ونی ډیری لیــدل کیږی. دښار څخه یو میل لیری دختیځ خواته، دسند دریاب بهیږی، د سخی سرور خانقاه د ښار دمنځ په یوه ښه ځای کی موقعیت لری، دی دپنجاب د هندوا نو او مسلما نانــواوسیدونکو په مینځ کی ډیر معتقد ــ ین لری. دده په زیارت کی دمارچ له میا شتی څخه داپریل دمیا شتی تر پایه په مسلسل ډول میلی اوجشنونه جوړیږی او خلك په ډیــر اخلاص له لیری ځایونو څخه ورته راځی او دلته نذرونه کوی.

په دی سیمه کی مالگه اوپټکری (خوری) ډیر ه موند ل کیږی ، لــه غلو څخه غنم ، جوار او باجره هــم پــــه ډیر مقدا ر کــــــــر ل کیــږی .ددغــــه ځــــــا ی ځمکی دهغـو ویالـو پــه واسطــه چی د خلکو په ذریعه کیندل شوی خړو بیږی او دلته ځاه گانی نشته .

ددغه ضلعی دوهم تحصیل داجل نومیږی چی ددی ځای ځمکی ښــوره ناکی ( ښرنی) دی ، دجام پور پــه قصبه کی د مالگی او ښوری معدنونه شته دی. حاجی پور ته نږدی خوړی اوبه پیدا کیږی او د کرنی هرډول حاصلات یی ښه دی .

دریم دکو ټ متهن تحصیل چــی د سند دریاب په غاړه پروت اوځمکه یی ډیره حاصل خیزه ده او پریمانه ونی او باغونه لری.
څلورم دسنگهړ تحصیل : په اصــل کی سنگهړ دیو ی غرنی ویا لـــی نوم دی چی دهغې په ذریعه ددغه تحصیل اکثره ځمکی خړو بیږی نــو ځکه دی علاقی ته هم د سنگهړ نوم ورکړ شوی دی .

---

*ددغه قا م نو م « سرا یکی »دی. (رشاد)

دتحصیل مرکز په منگرو ته نومی ځای کی پروت دی . ددغه ځای ځمکی اکثراً ښرنی (ښوره ناکی ) دی خو سره له دی هم دغنمواو جوار و حاصلات یی ډیر ښه دی په دغه تحصیل کی ډیر ښکلی او دښه ‌ا جنسیت اسونه روزل کیږی .توسه منکروته ته نږدی دیوه ځای نوم دی چی هلته دحضرت شاه سلیمان چشتی زیارت واقع دی *چی داخانقاه دپنځوس زرو روپیو په لګښت جوړه شوی ده .

ددی ضلعی لوی تجارتی قلم نیل دی چی دلته ډیر پریمانه پیدا کیږی او سوداګران یی لیری لیری ملکو نو ته وړی . دغه ضلعه معتدل اقلیم لری ، خو کله کله یی هوا ګرمیږی خصوصاً داجل پرګنه چی هلته یو ډول موسمی ګرم باد چلیږی .

---

* شاه سلیمان چشتی جعفر دمدانی پښتون دی ، پلاریی زکریا نیکه یی عبدالوهاب ورنیکه یی عمر خان او تر نیکه یی خان محمدخان نومیده ، شاه سلیمان په ۱۱۸۳هـ.ق کال د سنګهړ د سیمی په درګ نومی غره کی زیږیدلی دی ددوی کلی کر کو جی نومیده ـ درګ غر له اباسینه شخه تقریباً یو دیرش کروه لری لویدیزی خواته واقع دی مرګ یی په ۱۲۶۷ هـ.ق کال پیښ دی، زیارت یی په تونسه کی دی تو-نسه له اباسینه شخه شلورمیله لیری لویدیزی خواته پرته ده .

شاه سلیمان پښتون په چشتیه طریقه کی دشیخ نور محمد مهاروی ( ۱۱٤۲ ـ ۱۲۰۵ هـ.ق ) ،هغه دمحب النبی مولانافخرالدین(۱۱۹۹هـ ق مړ ـ ددهلی په مهرولی کی ښخ )خلیفه ددغه چشتیه طریقه ترمولانا فخرالدین وروسته فخریه سلسله بولی او تر هغه وړاندی نظامیه ده، یعنی خواجه نظام الدین دهلوی(٦۳٦ ـ۷۲۵ هـ ق ) ته رسیږی . دسلطان الاولیاء ، خواجه نظام الدین زیارت په دهلی کی مشهور دی .

دشاه سلیمان اولاده په تو نسه کی اوسی او دچشتیی طر یقی په ارشاد و تلقین بوخت دی ، د شاه سلیمان کوسی خواجه نظام ما په تونسه کی لیدلی و ( ارشاد )

# دویم باب

# لوېدیځه برخه

جوته ده چې په لوېدیځه برخه کې د ټول افغانستان بیان راځي چې هغه د انګرېزي ستر کاردوا کمنی شخه د باندې لوېدیځ او شمال ته پروت دی .

نومړي د هغو غرنیو سیمو ذکر چې له انګرېزي سلطنت سره متصلې پانېودې پرتې دی :

<u>دمهابڼ سیمه:</u>

مهابڼ په اصل کې دیوه غره نوم دی ددغه غره وېږه لوړه څو کـــه د سمندر له سطحې څخه (۷٤۷۱) فټه جګوالي لري او په ځنګلونو با ندې پټه سوې ده . . ددغه ځای ختیځ ته د سند رود سهیل او لویدیځې خوا ته یې په پیبنور پورې مربوط دیو سفزیو سیمه او قطب ته یې د چمله سیمه موقعیت لري .

ددغه غره په جنوبي برخو کــې د ګډون قوم استوګنه لري او پورتنی برخې کې یې د خدو خیلو قبیله او سیړې چې دغه دواړه قبیلې کوم حاکم نه

لري، دستانه په نامه سیمه یی دفراریانو مرکز دی‌چی دغه ځای‌دغره ډیره سخته سیمه ده او تګراتګ‌په ډیره سختی سره په‌کی تر سره کیږي. همدا راز دکرنی اواره ځمکه دلته خورا لږه ده.

دمهابڼ دغره په شمال کی دچمله سیمه پرته ده. دمهابڼ دسیمی د تسمیی وجه په وروسته ذکر شی.

**دچملی سیمه :**

دچملی سیمی ختیځ‌ته دسند روده‌لویدیځ ته یی دیوسفزیو علاقه او قطب ته یی‌د بونیر سیمه پرته ده.دچملی سیمه ددری شکل لری چی‌د دغی دری په مینځ کی اواری ځمکی‌لری او پاتی برخه یی غرنی اولوړه او ژوره ده دمنډړو دقوم اکثریت‌په دغه ځای کی اوسیږی، داسی ویل کیږی چی دلته (۱۸۰۰۰) کسه‌ژوند کوی او د تنکسی‌اومشکلاتو په وخت کی ددوی دقوم‌خلك ددوی‌مرستی‌ته چمتو دی .

**دبونیر سیمه :**

دبونیر په ختیځ کی‌د سند رود،شمال خواته یی‌دسوات ملك اولویدیځ خواته یی‌د یوسفزیو سیمه پرته ده.دبونیر شلورو خواوو ته‌جګ غرونه، واقع دی، چی قطب‌خواته یی دایلم، او دوه سری غرونه پراته دی چی دسمندر له سطحی څخه (۱۰۱۲۲)فوټو په شاو خواکی جګوالی لری ددغو غرونو په‌مینځ کی‌ځینی ځایونه‌دوادی ګانو شکل‌اود کرنی بنی‌ځمکی لری، خو اکثریت جوړښت یی‌کلك‌اوداسی دی‌چی په سختی سره په کی تګ راتګ کیږی .ددغو سیمو اقلیم‌معتدل دی خود غرونو جګی‌برخی‌یی دواورو دموجودیت له کبله سړی‌دی، په دغه سیمه کی‌د یوسفزیو دقام ښاخونه په دی ډول استوګنه لری، ختیځی‌ته یی‌چغرزی ځا نګه شمال خواته یی ګدایی‌زی ، لویدیځ ته یی‌سالارزی اوپه سهیلی برخوکی یی نورزی اوپه مینځنی برخه کی یی اشیزی او دولتزی ژوند کوی. که څه هم ددی تو لو قومونو تر مینځه یو والی نشته اما دبهرنی غلیم په مقابل کی سره‌یو دی او هره ځانګه خپل قومی مشر لری. په دی سیمه کی‌په پوره اندازه‌زراعتی محصو لات تر لاسه کیږی‌ه خو سره له دی هم‌د کاختی (قحطی)په وخت کی دسوات دسیمی نه غله راوړل کیږی. په دغه سیمو کی ډیر پسو نه‌روزل کیږی .

ددې سیمې دوسله والو کسانو شمیر (۳۰۰۰۰) تنو ته رسیږي ،
دلته له بهر نیږ سیمو څخه نیل ، توکران او مالګه راوړل کیږي او هم
دغو شیانو سوداګري ډیره ګټوره ده دبو نیر سهیل ته دسوات سیمه پر ته
ده .

## دسوات سیمه :

دسوات څلور خواوې په دې ډول دي، قطب ته یې دلرم غرونه چې
په ښکتنی برخه کې یې د دیر سیمه موقعیت لري ختیځ ته یې دغرو
یوه لړي پر ته ده چې ترسنده پورې امتداد لري، دسوات ختیځې برخې
سهیل ته بونیر او دلویدیځې برخې سهیل ته یې د یوسف زیو تحصیل
موقعیت لري. لویدیځ ته یې دارنګ برنګ سیمه، اتما نخیل او باجوړ
واقع دي .

دسوات ملك دیوې غرنی سیمې په مینځ کې په یوه لوړ ځای دیوې درې
په څیر پروت دی چې اوږدوالی یې له جنوب لویدیځ څخه پیل او شمال
ختیځ خواته تقریباً (۵۰) میله اوپلن والي یې دشمال څخه جنوب ته
تقر یبا در ی میله دی ،ددې نه پرته جنوبي او شمالي غرنی برخې هم په
دغې سیمې پورې مربوطې دي.او دهغو غرونو څخه چې کومې درې
دسوات منځنی برخې ته غزیدلي دي په هغو کې هم تر لیرې لیرې ځایونو
پورې ابادي تر ستر ګو کیږي.دسوات ملك په مینځ کې لویدیځ
خواته دسوات سیند بهیږي چې ددغه سیند په دواړو غاړو کې دشمالي
او جنوبي غرونو تر لمنو پورې دکرنی وړ اواري ځمکې پرتې دي.ددغه
سیند څخه پرته دغرونو په مینځ کې درنواوبو چینې موجود ې دي چې
دغه ملك ته خاصه ښکلا او شینوالي بخښي، دکرنی ځمکې یې حاصلخیزه
اوجوار او وریجې په کې په زیاته اندازه کرل کیږي، دسوات
سیند قطبي او سهیلي غاړو ته ډیر کلي ودان شوي دي .

دسوات ملك په دننني بر خه کې زیاتره داکوزیو قوم چې په اصل
کې دیو سف زیو دنسل څخه دي په دې ډول پراته دي.
چې د سیند قطبي خواته د خواجوزي ښاخ، سهیل ته یې بازیدزي او په
سهیلي غرنی برخه کې یې چیرته چې د یوسفزیو او سوات سیمه
سره یو ځای کیږي درانی زی اوبانی زی ښاخونه میشته دي. دلویدیځې
برخې څخه دباندې د ګوجر ود ښاخ غرنی خلك او سیږي. دسوات اودیر
په شمال کې د کاشغر او ترکستان دکاروانو نو تجارتي لاره ده چې

دغه لاره ددوبی دګرمی د تیریــدوځخه وروسته د واوری د وریدو او
ختو له امله د کاروا نو نو لــــــه پاره یو لږ ستونزی رامنځ ته کـوی
او بیا په دغه لاره سوداګران مضبوطو بدرګو او امنیتی تدابیرو تـه
اړه پیدا کوی .

په سوات کی یودول توری وریښمی شړی جوړیږی چی ډیر شهرت لری
دلته ډیر ښکاری بازان هم شته چی د خلکو لخوا نیول کیږی ، غلــه ،
ژیړ غوړی او شات له دغه ځایـه دباندی ملکونو ته وړل کیــږی .

دلته د کوهاټ له سیمی ځخـــه مالګه راوړل کیږی چی هغه دسبز
نمك د مالګی له کان ځخه استحصا لیږی اوددغی مادیسودا ګری ددیرو
سوداګرانو په ذریعه تر سره کیږی. دپنجاب نه د یوسفزیو سیمی تــه د
ملاکنډ (ملکنډ) دغره ځخه یوه لارراغلی ده، ددغه غره په ختیځه برخه
کی افشار نادر شاه ایرانی یــوه لارجوړه کړیوه چی اوس ښیخی وړانه
اوله مینځه تللی ده.

دسوات آب و هوا (اقلیم) معتدله ده، په تیره بیاد تودوخی په موسم
کی د صحت له پاره ډیره ګټوره ده. ددی ملك په هکله خوشحالخان ختك
چی د اورنګ زیب دواکمنی په وختکییی ژوند کاوه په پښتو ژبه ځــو
شعرونه ویلی دی* چی دهغوله جملیځخه یی یودادی :

سوات یی واړه لګدمال کړسرترپایه
خبرداریی شو م لههره هره ځا یه
ملك دسوات دملوکانو یونشاطدی
په د وران دیوسفزیو ورانرباطدی
په هوا کښبیدکشمیر په آب ورنګدی
حیف دی دا چی کشمیر ار ت د یدی تنـــــګ دی

دسوا ت په ملك کی زړی کنډوالی اوتاریخیآثار او آبدی دبتخا نو ا و
بتانو ښښی ښبانی او نور تر لاســه شوی دی .

دا تاریخی آثاردغه خبره ځرګندویچی په لرغونو زمانو کی به پــــه
دغه ځای کی یو نانیان او هندوانا وسیدل .

---

* دغه شعر دکتاب په متن کی په اصلی بڼه یعنی په پښتو لیکل شوی
بیا وریسی په اردو ژبه ژ بــاړ لشوی دی ، دلته یی ژباړی ته ضرورت
نه و .

(ژباړو نکی )

لوس اوس د سوات د اوسیدونکو شمیر د (۵۰۰۰۰) شخه زیات دی د دغه ځای خلک سنی مذهبه مسلمانان دی . د دغی سیمی په لویدیځه برخه کی د پنج کوړیٔ سیند د سوات له روده سره یو ځای کیږی .

**دلونګ برنګ سیمه :**

دلونګ برنګ شمال ته پنج کوره، ختیځ ته یی سوات او شمال لویدیځ ته یی باجوړ رود د مومند وغرنی سیمه موقعیت لری، سهیل ته یی دهشت نګر (اشنغر) حد واقع دی .

په دغه علاقه کی د اتمان خیلوقوم چی د کړرانی له نسل شخه دی میشته دی ، ددوی د کرنی ځمکی په غرنیو اولوړو ژورو سیمو کی پرتی دی، د اتمانخیلو خلک زیا تره په سوداګری بوخت او دا وسپنی تجارت کوی .

**دباجوړ سیمه :**

د باجوړ سیمی زیاته برخه په جګو غرونو کی موقعیت لری، چی شلور خواویٔ یی په دی ډول دی، قطب ته یی دکافرستان غرنی سیمه ، لویدیځ ته یی کونړ، سهیل ته یی دمومندو غرنی سیمه او ختیځ ته یی لږ شه مومند اوپاتی اتمانخیل موقعیت لری دغه ملك په دریو برخو ویشل شوی دی .

لومړیٔ دباجوړ خاصه پرګنه چی دیویٔ وادیٔ په ډول دیولړ غرو نو په ذریعه احاطه او اوږدوالی یی له سهیل شخه دشمال ختیځ خواته دی، ددغه ځای ځمکی ښه حاصلورکوی او د هغو چینو په ذریعه چی له غرونو شخه راځی خړو بیږی .

دویمه دبرول سیمه چی په دغه سیمه کی د اوسپنی سامانالات جوړیږی .

دریمه دجندول سیمه چی اکثراًدلته ترکلانی یا ترکانی قوم میشته دی . ددی ملك پیداوار ددغه ځا یداوسیدو نکو له پاره کفایت کوی، ژیړ غوړی ،شات او او سپنه له دغه سیمی شخه د دوابی له لوری د پیښور ضلعی او حضروته ځی ، همدا راز دلته دیو ډول مضبوط توکر سوداګری ډیره ګټوره ده، دمیښو پو خ چرم دمیا کلی د سیمی عمده تجارتی قلم دیٔ .

## دمومندو سیمه :

دغه سیمه دباجوړ سهیل ،دکابل د سیند شمال ته ددوابي د تحصیل حد نه نږدې دپیښور د ضلعې لویدیځ ته پرته ده ،په دغه سیمه کې د مومندو دقوم ځانګي اوښاخونه په لاندې ډول میشته دي: قطبخوانه وادی ګانی، اتمانزی اودکمال ځانګي او پنډ یالی ،ترکزي، په کنداپاو ختیځه او جنو بي برخه کې ا وسیږي.

مومندو په سیمه کې اکثرا ء غنم او اوربشي په للمي ډول کرل کیږي، مومند اکثرا ء په عمده ډول دپوریو دخر څولواو نوري سوداګری نه لاري خپل ژوند تامینوي چې ددوی په هکله به زیات تفصیلات وروسته راشي .

## د ګونړ سیمه :

ګو نړ چې یوه ښکلي شنه ا وسمسوره سیمه ده هلته هر راز میوې پیدا کیږي، ددغه ځای ختیځ ته باجوړ، شمال ته یې د کافرستا ن غرنی سیمه ،لویدیځ ته یې لغمان اوجنوب ته یې کامه ګګیاني اومومند پراته دي، دګونړ شمال لویدیځ ته یوجګ غر چې کند نومیږي او دسمندر له سطحې څخه (۱۴۴۳۸) فټه جګوالي لرې پروت دی.

په دغه ځای کې غله په پوره اندازه تولید اوهمداراز دتجار تي ونې نري وریجې پکې موندل کیږي. دګونړ سیند دشمال لویدیځ څخه دسهیل په لور بهیږي او د کا بل سیند د کامې او بهسودو تر مینځ ور سره یو ځای کیږي.

## دخیبر سیمه :

په دغه سیمه کې اکثرا ء سخت غرونه او دري پرتې دي، ختیځې خواته یې د پیښور ضلع لویدیځ ته یې ننګنهار (ننګرهار) قطب ته یې د کابل سیند او جنوب ته یې داپریدیو سیمه او دسپین غره لړی ،ددغه ځای سرحد جوړوي .په دغه سخته علاقه کې اکثراء داپرید ی قومو نه اوسیږي . د کابل او پیښور لار له دغو غرونو څخه حمر ود نه نږدې را وځي اوپیښور ته داخلیږي.

دلته غله او لارو هونکي خلک هم شته اوپه لاروهنو لاس پوري کوي.

## دننګنهار یا ننګرهار سیمه :

ننګرهار دخیبر لویدیځ، دکابل سین سهیل، دسپین غره نه شمال او د کابل ختیځي خواته موقعیت لري، دغه سیمه حاصل خیزه او آباده ده، انار او نوري میوي یې مشهوري دي. دد غه ځای مشهور کلي او قصبې دادي ، جلال آباد ، لعلپوره، باسول ا هرارناو .ځینې خلك ددغې سیمې اصلي حدود دکابل سیند څخه دشمال خواته تر لیري ځایونو پوري تاکي اوددوی په نظر کامه ، بهسود او حتی کونړاولغمان هم دننګر هارپه حدودو کي شاملیږي .

ددغې سیمې دتسمیې وجه دنورنهار یعنې نهه نهرونه یانه دري څخه اخیستل شوي دي او دنو نهار کلمه دزیات استعمال په سبب او دپښتو ژبې دغلط استعمال په وجه پـــــر ننګنهار مشهور شو .

په ننګر هارکي مومند، شینوا ري،سافي، (خوګیاني) او نور او ختیــځ ته یې اپریدي اباد دي ، په دغـــــه ملك کي سپین وریښم ،پنبه، وري، نري‌او ریجي ، انار او نور ډیرشیان پیداکیږي‌چي‌دسوداګرانو په ذریعه له دغه ځایه پیښور اوکابل تـــه وړل کیږي. له دباندي ملکونو څخه دغه ځای ته پوخ چرم ، نیل، اونوراوهمدا رازانګر یزي مصنو عــــات راوړل کیږي. او ددغه تجارت پـه سبب سوداګرا نو ته ډیري ګټـــي وروپه برخه کیږي ،دکابل او پیښور تر مینځ لاره له جلال آباد څخـــه تیریږي . چي په دغه لاره ډیر تګ راتګ کیږ ی او اوس دننګر هـــار سیمه دکابل امیر تر واك اوادا رې‌لاندي ده .

## دتیراه سیمه :

تیراه ډیره په زړه پوري هوالري،اصلي تیراه په یوه واړه ځای کي دتیتو غرونو په سر په اوار اومیداني‌ځای کي‌موقعیت‌لري ، خو هغه قو ـ مونه چي په کي اوسیږي او په دوی‌پوري دمربوط او مقبوضو سیمو ذکر یوه ځای کي ضروري کنـــل کیږي.

دتیراه قطب ته دپیښور ضلعه،خیبر اوننګرهار، لوید یځ ته یـي سپین غر او راجکال یا راجګړ غر ،سهیل ته یي دبنګښو دقوم سیمـه چي دکوهاټ په ضلعي پوري مربو طه‌او ختیځ ته یي دختکو غر وا قـع دي چي‌دسندرود دهغه غره‌ختیځ‌خواته بهیږي ددغه ملك په شمالي اوختیځه برخه کی داپر یدو قوم او سیږي اوسهیلي او لویدیځه برخه کي یـي

داورك زى قوم تسلط لرى چــــى ددوى جنوب ته دومشت يازيمخت اوسيږى .
دكرنى وړ ځمكى دخاصى تيراه‌نه پرته په نور ځايو نو كى چى غرنى او اوارنه دى كمى موندل كيږى، په تيراه‌كى كرخى ( لوبيا)غنم ، اوربشى او جوار په پوره اندازه كرل كيږى،ددغه ځاى په مصنوعاتو كى چړى او تورى مشهورى دى .
په تيراه كى دوه لوى ميشته قومونه يعنى‌اپريدى اواورك زى‌جنگيالى او كينه كښ او ددوى تر مينځ دښمنى او شخړى هم موجود دى، د تيراه آب وهوا او اقليم معتدل او د صحت لپاره كټورى دى، دتيراه‌په سهيلى برخه كى چى ځينى غرونـه موقعيت لرى دهغوى دڅوكو جگوالى دسمندر له سطحى څخه په دى‌ډول‌دى د هر يو غر څوكه (۷۹۴۰) فوټه ، د دوپا سر (۸۲۶۰) فوټه اوزاوغر(۹۳۸۰) فوټه .
## دكرمى ايجنسى :
د كرمى نوم اصلا ديوه رود لــه نامه څخه اخيستل شوى دى اوڅنگه چى دغه ځاى دنوموړى رود په غاړه‌آباد شوى نو ځكه د كرمى په نامه يادېږى، ددغه ځاى شمالى ته سپين‌غر لويديځ ته يى د منگلو سيمه چى هغه هم غرنى ده ، سهيل ته يى دخوست سيمه او ختيځ ته يــى داوركزيو او بنگښو علاقى پرتى‌دى.دسپين غره سهيلى برخو ته څــو مشهورى‌درى لكه شلوزان، ملو نا،زيړان ،كرمان، پيواړ، اواريوب موقعيت لرى .
دكرمى ځمكى‌حاصل خيزى اودكرمى‌د رود په ذريعه خړو بيږى دلتــه جوار او وريجى ډيرى پيدا كيږى ،همدا راز ميوى لكه انگور، انار، او منى ، او نور بنو او نورو ځايو تـوته د خارجى او داخلى سوداگرانو په ذريعه وړل كيږى .
ددغه ملك لويديځى خواته پــه اريوب كى د ځاځيو قوم ، چى سنى مذهبه مسلمانان دى اوسيږى، دپيواړ نه بنكته اكثر تورى او لــو څه بنگښ او اشد رافضى او سيږى‌او په پورته غرنيو برخو كى يى‌منگل او څكمنى اېستو گنه لرى.
په سپين غره كى دو دانيــو ډول‌ډول لرگى‌لكه زيتون، ديودار اونور پيدا كيږى. ددغه مشهور غره لويديځى څوكى تقريباء (۱۶۰۰۰) فوټه جگوالى لرى او تل په واورو پټــى‌دى نو ځكه د سپين غره په نامه سره يادېږى .

## دخوست سیمه :

خوست چی دکورمی دعلا قی پهجنو بی برخه کی موقعیت لری، لویدیځ خواته یی دځدرانو غرنی سیمه او سهیل اوختیځ ته یی دوزیرو غر، ممیت خیل اوحسن خیل پراته دی،دا سیمه د شلورو خواووښخه دغرونو په ذریعه احاطه شوی‌ده، چی په مینځ کی‌یی د خوست سیمه دیوه میدان په شیر چی اوږدوالی یی له ختیځ څخه لویدیځ خواته اوپلنوالی یی له سهیل څخه شمال خواته دی موقعیت لری.

دشمل‌رودچی دځدرانودغرونوڅخه راوځی او ددغه سیمی په مینځ کی د ختیځ په لوربهیږی دخوست‌سیمی‌اکثره ځمکی خړوبوی ، خو ځینی ځمکی یی د چینو په ذریعه هم خړوبیږی .

په پسر لی کی پکی غنم او په منی کی وریجی پیدا کیږی .

دخو ست په لویدیځه برخه کی‌اسمعیل خیل ، لغاړی پیران ،حیدرخیل ، مندوزی ، په منځنی برخه کی یی پړبه ،مردان خیل ،متون‌اوپه ختیځه برخه کی‌لکڼ ، زکی‌خیل ،قدم ، لندر ، او صادق پراته دی.

په لویدیځه او سهیلی څنډه کی دغرو په لمنه‌کی دتنیو قوم‌اودهغه په ختیځه برخه کی‌دګربزو قوم پروت دی . لغاړی او لږ شمیر ګربز او تنی دسوداګری په چارو بوخت‌او نور قومونه عموماً کروند ګر دی .

په خوست‌کی دلغاړی قبیلی نه پر ته نور قومونه په دوو برخو او ګوندونو ویشل شوی او په‌خپل‌مینځ کی سره دښمنی اوشخړی لری یو یی دتور ګوند اوبل‌یی‌دسپین ګوند په نامه بلل کیږی. چی اکثر د دوی تر مینځ جګړی پیښیږی .

دخوست تماکو مشهور دی، همدا راز‌زیړ غوړی‌او وریجی‌اولمڅی‌اکثراً د لغاړی دقوم په ذریعه دبنو ضلعی‌اونورو ځایونو ته وړل کیږی،وزیر سودا ګر دلته مالګه دخرڅلا وله‌پاره راوړی او بنه کټه په کی نوی. خوست ته‌له بنو څخه مالګه ،نیل اوسپنیز اود خرمنی مصنوعات، سپین توکران اونور راځی‌اوپه ډیر قدر او قیمت سره خر څیږی. اوس د خو ست سیمه د کابل په ریاست، پوری مربو طه ده .

## دوزیرو سیمه :

د وزیرو سیمه ډیر ه پراخه اودوزیرو قوم په‌کی په خـواره واره ډول او اکثراً په خیمو کی ژوند کوی . خو یوشمیر مسعودو، یو څه اتمانزیو او لږ شمیر احمدزیو پـه غرونو کی دځانونو لپاره داوسیدلو کوټی او کوروټه جوړ کړیدی .

که څه هم د وزیرو په ملک کی خلک په متفرقاو خوآره دول اوسیږیاو مقبوضه سیمی یی هم لیری سره پرتی دی، حود هغه غرنی ملک حدود چی دویوربا ندی تسلط لری په لاندیدول دی ختیځ ته یی دکوهاټضلع، بنو اود بتنیو غرچی ددیره اسمعیل‌خان دضلعی دټانک سیمی ته یسی سرحد وررسیدلی دی. سهیل ته یی دگومل دره لویدیځ ته یی دخروتو دقبیلی سیمه چی‌د بیرمل دغره‌سره متصله ده ، قطب ته یی داورگون او ځدرانو سیمه دخوست ملک‌کرمه اودکوهاټ دضلعی حدودواقع دی،ددغو حدودو په مینځ کی‌د وزیرو قبیلـه په متفرق‌دول‌اوسیږی، دلته دددرویش خیلو فرقه یعنی اتمانزی ،احمدزی‌وزیر اکثرا سره‌په گډ دولږوندکوی خود مسعودو سیمه، بیله دهاوهریوی ځانگی ته په غرنیو سیمو کی بیلی بیلی ځمکی ورکړل شوی دی .

دکانی گرم ، شوال، مرغه ، اوبیرمل نه پرته په نورو ځایولـــو کی دکرنی وړ ځمکی لږی دی ،دغه ملک ډیرلوړاو ژور دیاو خصو صـا په سهیلی او لویدیځو سیمو کی‌یی‌ډیر جگ جگ غرونه مو قعیت لری، چی تر ټولو څخه لوړ غر د مسعودو په سیمه کی پیرغل نو میږیچی‌لوړ- والی یی‌دسمندر له سطحی (۱۱۵۸۳)فوټو ته رسیږی. په دغه غرونو کی دځیری او دیودارونی په پریمانـه اندازه موجود دیچی له هغو څخـه دودانیو په جوړولو کی کار اخیستل‌کیږی، همدا راز دنښتر له لرگیـو څخه جوړی شوی نیزی له دغـــه ځایه څخه دبنواو ټانک سیموته ډیری استول کیږی، دوزیرو سهیل خواته دوانه غر پروت دی چی په ملکیـت باندی یی شخړی روانی دی ،ځکه چی‌وزیر دغه غرخپل حق اودو تانی یی خپل حق بولی، خو د ژمی په موسم کی دوتانی او داوړی په موسم کی دوزیرو په لاس کی وی. همدارنگه دلته پوونده سلیمان خیل هم راځی، دوزیرو په هکله به زیات تفصیلات وروسته راشی .

## دو زیر په ملک کی ددوړوعلاقه:

دغه سیمه دبنو د ضلعی لویدیځی‌خواته د توچی درود په دواړوغاړو کی مو قعیت لری، ددغه علاقی شلوروخواوو ته دوزیرو ملک پـروت دی چی دتوچی دری په د ننه. کی ددوړوقبیله اوسیږی په لویدیځه برخـه

کـــی یی دد ریه خیلـــــــوڅانگه همزاتی ، ملخ په مینځ کـی تپسی پراته دی ، ختیځه خوا کـــی دبنوضلعی ترڅنګ دحیدرخیلو ، سبو خیلو او عید کو څانګی اوسیږی، ددوی ځمکی دتوچی دسین په ذریعه خړو بیږی او ددغو ځمکو حاصـلات تقریباء ښه دی. تمباکو، زیږ غوږی او حیوا نات له دغه ځایه د بنـــوسیمی ته صادریږی او له هغه ځایه سپین وریښمین توکران اومالګـــه راوړل کیږی .

**دشیرانیو سیمه :**

دغه سیمه دګومل دری سهیل ته پرته ده ، چی لویدیځ ته یی دژوب سین یا د کاکړو دقوم سیمه ، مندوخیل او ختیځ خواته یی دد یره اسمعیل خان ضلع او د کلانچی پرګنه ، مـوقعیت لری . ددغی غرنی سیمی پـه شمال کی دحسن خیلو قبیلی پـــه منځ کی ابو خیل، جلوانی او پـــه سهیل کی دشیرانی قبیلی دهریپال څانګی پرتی دی ، پرته له دغــــو څانګو څخه دبابړو اوستریانی قبیی هم په جنوب ختیځه برخه کی پرتی دی .

دشیرا نیو په سیمه کی د تخت سلیمان څوکه مو قعیت لری چـــی لوړوالی یی دبحرله سطحی څخه تقریبا دولسو زرو فوټو په شاو خواکی ده نوځکه دغه غره ته د سلیمان دغره نوم ورکړی شوی دی.

دشیرانیو او اوستر یا نیو په سهیل کی دوهووه په نوم له یوی غرنـــی ویا لی څخه نیولی دغازی خان تـــر ضلعی پوری حدود و سره متصل د بلوڅو د قوم ښاخونه په دی ډول پراته دی چی دوهووه له ویالی څــخه د کسراني قبیله او د هغوی سهیـــل ته بزدار اونور د شاسم (شم) میدان لویدیځ ته د ملك په غره کی دمری قبیله او دهغوی سهیل ته بګتـــی اوسیږی .

**دکاکړو سیمه :**

دکاکړو قبیله هم لکه د وزیـــروپه شان په یوی لوی غرنی سیمـــه کی پراته دی خو په دغه ځای کـــی مشهور او عمده ځایو نه هم پدی ډول موجود دی .

لومړی د ژوب درود وادی چـــی اوږدوالی یی له شمال څخه د جنوب په خوا او سور یی له ختیځ څخه دلویدیځ خواته لږدی او پـــه دوارو غـــا ړو کی یی د کا کـــړ و اومند و خیلـــــــو د قبیلی کلی

آباد شتوی دی، ددغه ځای ځمکـــی که څه هم ډیری حاصل خیزی دی څو شنکه چی د اوسیدو نکو شمیر یــی زیات دی ، نو ځکه ددوی له پاره دغه ځمکی ډیری کمی دی .

دوهمه د بوری بوشور، کنجوغی او کوټه سیمی چی په دغه ځای کی د بولان دری لاره چی کندهار یـــی له شکار پور سره تړلی مو قعیت لری، له دغو څخه په گرد چاپیره غرنیو سیمو کی اکثراء آبادی خوری وری لیدل کیږی .

ددغه ځای ختیځ خواته دشیرانی غر دی چی د بلو څو د سر حدونو څخه تر لیری ځایو نو پوری غزیدلی دی د پښتنو موسی خیلو اوایسوټ قبیلی دبلو څو د کسرانی قبیلـــی دغرنی سیمی لویدیځ خواته دغازی خان تر ضلعی پوری میشته دی، ددوی له سیمو څخه ، پسونه اونور حیوا نات بهر نیو علاقو ته دخرڅلاوله پاره بیول کیږی او نورو ځایونو څخه سپین توکران دلته راوړل کیږی او سوداگری یی کتوره ده . دکاکړو په باب به مفصل جغرا فیایی معلومات وروسته ددغه سیمی له تاریخ سره یو ځای ذکر شی .

**مقدمه : (*)**

پورته دافغانستان دهغو سیمـــو او منطقو ذکر وشو چی دانګریزی سر کار پو لو ته نږدی پرتی دی ،او د بیان ضرورت یی احسا سیده، دذکر شوو سیمو د هری یوی دحدودار بعه (څلور خواوی )او په کـــی دمیشته قومونو حالات په مفصل ډول بیان شول ، پاتی برخه یعنی لویدیځ افغانستان د علاقو حال یی که څـــه هم راته څرگند دی ، خودکلام داوږدوالی له امله یی تفصیل پریږدم او دڅلورو لویو او مشهورو ښارو نـــو یادونه یی کتوره بولم .

**لومړی د کابل ښار :**

دغه ځای دلویدیځ افغانستا ن دواکمنی مرکز دی چی دقطبی عرض البلد په (۳۳) درجو او لسو (۱۰)دقیقو او دختیځ طول البلد د ( ۶۰) درجو او (۱۵) دقیقو تر مینځ موقعیت او لوړ والی یی دسمندر له سطحی څخه (۶۲۵۰) فوټو ته رسیږی .دغه ځای دمیوی او گلانو په باغونو کی پیژند دریو (۳) میلو په . و سعت تقریباً د (۷۰) زرو تنو استو گنځی دی .

---

* تر دغه ځایه مولف دشی قـــی افغانستان په هکله معلومات راټول کړی او کله چی د لویدیځ افغانستان برخی ته راځی نو دلته دی دمقدمی په ډو ل څو خبری کوی که نه نودلته مقدمه نه راځی (ژباړونکی ) .

١ د کابل جنوب ختیځ ته دیوه واړه غره په سرد بالاحصار کلا ودانه شوی ده ، د کابل سهیل لویدیـــځ خواته د اکبر پاچا دنیکه محمد بابر مقبره واقع ده ، ددغه ښار ابادی سره نښتی ، تنګی او په اوږده شکل جوړی شوی دی ، سهیل او شمـــال لوید یځ خواته دغرونو لړی او ختیځ خواته یی باغونه او میدانی سیمی پرتی دی او په شمالی برخه کی یی سین بهیږی .

د کابل ښار دوه مشهور بازار ونه لری چی یویی دشور بازار او بل یی دچتی دبازار په نومو نو سره یادیږی او له چته بازار څخه مقصد دادی چی نوموړی بازار دیوه چت په ذریعه پوښل شوی دی دغه بازار دچار چوک چار سو په ډول بارونقه او ښکلی جوړ شوی دی خو یوه اندازه تنګ دی ، په دغه ښار کی دسوداګرانو او مسافرانو داستو ګنی له پاره پنځه سرایونه موجــود دی ، لومړی د جبار خان زوړ سرای ، دویم دجبار خان نوی سرای چی اکثـــرا په کی پونده میا خیل سودا ګـــر اوسیږی دریم د محمد قمی سرای چی دکندهار سودا ګرا ن په کی میشته دی .

څلورم دوزیر محمد اکبر خـــان سرای چی په لوی مساحت او پـــه ګرد شکل جوړ شوی اودعا مو سوداګرانو ځای دی ، پنځم د زرداد سرای چی څو تنه هندوان اونور سوداګران په کی اوسیږی که څه هم دافغانستان بیلی بیلی سیمی مختلف اقلیمو نه او بیله آب و هوا لری او دځمکـــی دجوړښت له نظره ډیری تیټی ا وجګی سیمی په کی موجودی دی چی دغرنیو او جګو سیمو هوا سړه او د ټیټو شکلنو سیمو هوا ګرمه ده ، خود کابل هوا معتدله ده یعنی نـــه ډیر سوړ دی او نه ډیر ګرم ، دری میاشتی واوره لری چی کله کلـــه ددغه اوریښت له امله لار ی هـــم بند یږی ، خو کابل په پسرلی کی ښکلی او دلید لو وړ دی .

د کابل ښار ښه تجارتی مو قـــف لری . دایران، هندوستان، ترکستان او حتی له روس څخه هم سوداګران دلته راځی اوله ځان سره مختلـــف تجارتی شیان راوړی .

له دغه ښار څخه څلویښت میله د شمال خواته ، څلور سوه فوټـــه جګ دیوه غره په دننه کی تقریباً دووسووګزوپه ارتفاع او سلوګز و په پلن والی دریګو یوه لویه کوټه (انبار) موجوده ده ، کله چی څـــوک د هغه سر ته ورشی نو هلته تنـــد باد چلیږی او د هغو ریګو له مینځ

ځخه دنغاري او نور ځروونه راځي، دغه ډيګونه ددغه ځاى خلك ريـــــــك روان وايي اود هغه ترڅنګ يـــــوه سمڅه ده چي خلك هغه د شيعـــــه مذهب امام مهدي ځاى بولي.

په کابل کي د ميوو له جملي څخـــه توت او شاه توت ډير زيات دي ، او کلـــه چـــي نـــو موړي ميـــوه پخه شي نو غريب خلك وربائدي ځان مړوي ، او خپله ګذاره پري کوي اودغه ميوه وچوي چي په دغه صورت کي تر ډيره وخته پوري ساتـــــل کيږي او ليري ځايو نو ته د خرڅلاو له پاره وړل کيږي .

دکابل ښار له پيدا وارو ځخـــــه پرته دڅهار دهي ، ميدان، لوګــــر اود کهدامن له نورو سيمو څخه چـــي شمال خواته موقعيت لري اود ساپيو، مومندو، خروټو، کاکړو، نا صــرو ، سليمان خيلو، سهاکو، غلزيو ، ا و نورو خلکو استو ګنځي او خلك يي دکرني په چارو بوخت دي، اکثر ا ع ضروري شيان له خپلو سيمو ځخـــه ښار ته دخر ځلاو له پــاره راوړي.

**دويم دغزني ښار:**

دغه ښار په پخوا زمانو کي د زابل په نامه ياديده، چي د کابل ځخه (۷۰) ميله لري دجنوب خواته اود سمـــندرله سطحي ځخه (۷۷۵۰) فوټو پـــــه جګوالي پروت دي .

دغزني ښار ديو نيم ميل خندق په ذريعه احاطه شوى اود يوه خام ښار په پناه کي جوړ شوى دى چي پنځلس زره تنه په کي اوسيږي، د ښار شمال خواته يي کلا* موقعيت لري.

زوړ (پخواني) ښار له دغه ځايه ددري ميلو په واټن شما لختيـــــځ خواته پروت و او په اوږده ا و وسيع ډول جوړ شوى و، دا ښار پـــــــه (۱۱۵۱) عيسوى کال کي چي لـــــه هغه وخت ځخه (۷۱۵) کاله تيريږ ي دعلاوالدين جهانسوز لخوا وســوزول شو .

دغزني زوړ ښار دغزنوى محمو دله خوا هغه وخت جوړ کړى شوى وچي هند يي فتح کړ او اوس د ښار ا وسلطا ن محمود د مقبر ی تر مينـــــځ يوازي دوه ميناري چي هر يو يــــي سل فوټه جګوالي لري پا تــه د ی .

ددغه لوى پاچا مزار ته اوس هـــم خلك ترهغه اندازه در ناوي کوي چي ډير افغا نان له ليرى ځايونو ځخـــه په لوڅو پښو په ډير عجز سره ورته راځي.

---

* دکلا ځخه مقصد د بالاحصار کلاده.

دصندل څخه جوړې شوې یوه‌جوړه‌دروازې چې اتلس فوټه جګوالی‌یې لاره اودمحمود غزنوي له‌خوادسومنات‌له معبد څخه‌راوړل شوې اودده په مقبره کې لګول شوې وې، کله چې‌انګریزان افغانستان ته راغلل‌دبیرته تګ په وخت (۱۸۴۲ع) کې یې دغه دروازې هم له ځان سره یوړې، اوس دغه دروازې داګرې داکبــــرآباد په کلا کې موجودې دي .

دغزنی ښار آبادي اکثراء یوله بلی‌سره په متصل ډول جوړې شوې او بازارونه، او کوڅې‌یې تنګې دي‌دښارپه مینځ کې اکثراءدیکانان فارسیوانان او هندوان ژوند کوي. دښار شاوخواته شنه باغونه جوړ شوې دي ښار ته نږدې لویدیځ خواته دغزنی‌رودله‌شمال څخه دجنوب خواته بهیږي. دغزني‌آب‌وهوا معتدله او د صحـــت‌لپاره ګټوره ده، په هغه ځای کې‌چې دغه ښار ودان شوی دشلګر په نامه یادیږي او ددغې پراخې سیمې څلور خواوې په دې ډول دي:

لویدیځ خوا ته یې دهزاره‌جات‌غر، ختیځ خواته یې‌دزرمت غر،شمال ختیځ ته یې دخروار غر، جنوب ختیځ ته یې دکټواز غر اولویدیځ او سهیل خواته یې‌ترکندهار پورې‌اوارمیدانونه پراته دي. له‌دغو څخه یو غر چې لویدیځ ته پروت دی دواغز په نامه یادیږي دشلګر ملك حاصل خیزه او پریمانه اوبه او نهرونه لري اوددغه ملــــك په شما لی څنډه کې یې دغز نی ښار پروت‌دی ،دد غــــه ځای اکثراء مالکان او اوسیدونکی غلزي اندړدي،هغه پوونده سوداګران‌چې داوړې په موسم کې‌له هندوستان څخه راځي دشلګرپه سیمه کې اړوي.

دریم: دکندهار ښار:

ددغه ښار نوم په سنسکر یت‌کې‌دګندهار په شکل راغلی اودکابل‌له ښار څخه تقریباء (۲۰۰) میله لیرې،جنوب ختیځ خـــوا ته پروت دی، جګوالی یې‌د سمندر له سطحې څخه تقریباً ۳٫۵ زره فــــوټـــه او شا و خواته یې خامه کلا او ددریو میلوخندق په ذریعه احاطه شوې دی ، تقر یباء شپیته زره کسه په دغــه ځای کې ژوند کوي ، یوه زره کــلا

ددغه ښار شمال خواته پرته ده چې‌دهغه ځای خلك یې دارګ په نامه یادوي، داحمد شاه بابا مقبره اوخرقه شریف په ښار کې د ننه لویدیځ خواته موقعیت لري چې د لیدنــــی‌وړ ځایو نه او ډیر ښکلی او پـــه منقش ډول جوړشوي دي .چارســو یعنی دڅو ك بازار دپنځو سو ګـز و په پلن والي دګنبدې په شکل پوښل‌شوی دی. ددغه ښار شاو خـوا د ارغنداب د سین‌په ذریعه چې دهزاره‌جات له‌غر ونو څخه راوځي خړوبیږي

نو له دی املہ دغه ځاینو نه ښتنه او آباد دی، په تیره بیا شمال خوانه ددوو میلو په فاصله چیرته چی د کندهاری با با ولی صاحب زیارت دی ددغه ځای شنه باغو نه او دهرراز مرغانو اوازونه هر انسان ته خاص خوندور ېخښی، په کندهار کی د پښتنو له قوم ځخه عمو ماء درانی، باړ، کاکړ او خروتی میشته او پرته له دوی ځخه فارسیوانان او هندوان هم په دغه ښار کی میشته دی.

دارغنداب له سین ځخه پر ته د ترنك رودهم چی ختیځ څخه دلو یدیځ په لور بهیږی د کندهار یسوه برخه خړو بوی، دلته هر راز میوی ښبه او ډیر اعلی تمباکو پیداکیږی، غنم د کند هار ختیځ ته دارغستان په سیمه کی او په شمال کی دخاکریز په علاقه کی په زیاته اندازه کرل کیږی، د کندهار شمال په غرو کی ددغه شیانو کانونه میندل شوی دی.

لومړی د سرو زرو کان چی له ښار ځخه، په (٥ر١) میل فاصله دموږچی کوتل او مقصود شاه (شاه مقصود) غره تر مینځ په سیمه کی موندل شوی دی ددغه کان دطلاءجنسیت ډیر اعلی دی مگر دکار دبی نظمی په سبب یی تولید کم دی.

**دویم د فلزی ډروکان:**

دغه کان د شاه مقصود په غره کی موقعیت لری نوځکه دغه ډیره د شاه مقصود په نوم هم بلل کیږی، له دغه معدن ځخه زیړی او دنورو رنگونو ښکلی قیمتی ډبری لاس ته راځی چی اکثراء له هغو ځخه د تسبیحو په جوړولو کی کاراخلی او ددغو تسبیحو قیمت له یوی روپی ځخه نیولی (دجنس دښه والی په سبب) آن تر سلو روپیو پوری خرڅیږی، همدا شان په دغه غره کی یو ډول سپین رنګه خاوره چی د شاه مقصود عرق یی بولی لاس ته راځی چی ډیره با خاصیته ده، له دغو کانو نو ځخه پرته رانجه هر ډول زرا ك (زنز) سرب، داتا بك تیږه، ابرك، مومیایی او نوری ډول ډول تیږی ددغو شمالی غرونو په لړیو کی موندل کیږی، دلته گچ هم شته چی د چونی په ډول له په ودانیو کی ورځخه زیاته استفا ده کیږی.

ډبیر کسری له غره ځخه چی د کند هار په لویدیځ او د سیستان ختیځ خواته پروت دی نیل طو طیاء، زنز، پتکری، نوشادر، گوګړ، رانجه او نوری قیمتی ډبری او مالګه په زیاته اندازه لاس ته راځی.

دکندهار ښار یو مشهور تجارتي ځای دی، دلته پښتانه دبابی قوم د پښمين سپدان او پارسی بان اونورپه سوداگری بوخت دی .

دکند هار ښار که څه هم ډیره ښه آب وهوا نه لری خو ډیره بد هم نه ده، دلته دژمی په سړو کی دغرمی وخت کی هوا (٤٩) درجنی فارنهایت او دگر می یاد اوری په موسم کی (۹۸) درجو دفارنهایت ته رسيږی. په نورو سړو او کر موورځو کی د حرارت درجه ددغو دوو یاد شوو درجو تر مینځ وی .

په کند هار کی د سوداگرانو داستو گنی لپاره څو سرا یو نسته هم جوړ شوی دی . د کنج بازار په نوم منډه یی کی هر ډول حیوا نات اوزراعتی حاصلات لکه پنبه ،اونور خرڅيږی .

په کند هار کی د ډیر ښه جنسیت لرو نکی وریښم پیدا کیږی، مگر د خلکو د لږی علاقی (شوق) لـه امله چی له دغه جنس سره یی لری تولیدا ت یی کم دی .

## ځلورم دهرات ښار :

د هرات نوم په ځینو پخوا نیــو کتا بو نو کی د هری په شکل هم راغلی دی له کابل څخه تقریباء دپنځه سوو (٥٠٠) میلو په فاصله د لویدیځ خواته پروت دی، دلتـه دیوه لوی ښار په مینځ کی تقریباء (٥٠٠٠٠) تنه اوسیږی، د هـــراتښار کوځی تنگی ، دبازار شکل یی محرابی او چوك یی په گنبدی شکل پوښل شوی دی . دغه ښار په یوه ځوری کی دیوی غوندی تر شا جوړشوی نوځکه له لیری څخه نه ښکاری.

په هرات کی اکثراء پارسیوانان اودرانی پښتانه لو سیږی .دهرا ت ځمکه سره ښکاری دهرات لویدیځیخواته دیوه نیم منزل په فاصلـــی د سیاه کوه (تور غر) لړی پرته ده او دافغانستان اوایران سر حـــد (ویش) دی ،ددغه غره له ختیځ خوړاو نورو خواو څخه چی کومی اوبـه

قبچ جاوید ه

ولمکی د هرات سیمه خړو بوټو په هرات کی ښې غالۍ ، لمڅی، توشکې کرك،خرمایی برکی، نیمه تنه کرکی‌چی له لسنو نو سره دلمڅی په ډول په فشتار جوړیږی ، قنا ویز او نورورېښمین او وړین توکران جوړیږی او لیری ځایو نو ته وړل‌کیږی .

همدا رنګ دلته کتانی تو کــــرهم په ډیر ښه ډول سره جوړیږیه سپین غندك هم‌دلته مشهور تو کـــړدی. پسته ،برغنج، انجه، زر شك، سماق ،یخمن * ددغه علا قی‌په هرولوکی موندل کیږی، دډیر ښه جنسیت لرونکی وریښم په هرات کی شته دی .

دچودنو معدن په دغه ځای کــی‌موجود دی چی دهرات‌دډیرو کتورو مدنیا تو څخه شمیرل کیږی ددغه ځای آبی مالګه ډیره ښه او رانجه یې د مټر کو روښنائی زیاتوی اوداصفهانی رانجو څخه ښه دی.

زراعتی پیدا وار او هر ډو ل میوی‌له ټول افغا نستان څخه په هرات کی ډیر ښه او لوړی درجه دی ٥په تیوه بیا انګور چی ویل کیږی‌دلته شپیته ډوله یې‌مو جود دی، دهرات‌پنبه دامریکا یی پنبی سره برابره ده ، غنم یی ډیر ښه اوکو کنار، یی‌ډیر شهرت لری .

دهرات خام او پلخه شـــراب دشیراز له شرابو خوندور او ښـــا کیفیته دی .

---

*په اصل کی هم «یخمن» کښلی دی(و.ک ۲٤ مخ)،خو زما ګمان داد ی دا به ترنجبین وی چی ښښتانه یې‌دزوزو کوری بولی او له هراتـــه څخه نورو ولایتو نو ته وړل کیږی.(رشاد)

# دافغانستان د ځینو نورو مشهورو ځایونو ګړ

په کابل کې :

جلال آباد، لغړ پوره، پشد، چهار باغ، سلطان پور، ده سبز، چې مشهور ځایونه دي ، ده یحیی ، بیبی مهرو، کلکان، قره باغ، اغا سرای خواجه سرای (سرای خواجه ) شکردره ، ګاه دره ، (*) استالیف (استالف) ، استر غمیچ، چهار یکار، فرزه، پغمان، دیه مزنګ (دهمزنګ) دیه بوری (ده بوری ) قلعهٔ وحشی، تنګی سیدان، لال اندر (ګلندر) ګته سنګ ،** شیوکی ، بیني حصار ، چهار آسیاب، بابوس *** کلنګار، درغون شهر (زرغون شهر) ده نو ، باغ سلطان، خوشي ، پیوار ، شلو زان، هوني، یاد خواب، شانه ، یادخواب، روخانی، برکی برک، برګی راجان ، سجاوند، چرخ او نور د کابل مشهور ځایونه دي.

---

* ګاه دری نوم اوس ګلدره دی وایی دا نوم امیر حبیب الله خان شهید پر ایښی دی . (رشاد)

** ګته سنګ د سروبي په جنوب کې واقع دی ، له سروبي څخه اتلس کیلو متره واټن لري. (رشاد)

*** دوردګو دشیخ آباد په ختیځ کې واقع دی له شیخ اباد څخه دوویشت کیلو متره واټن لري (رشاد)

**په غزني کي :**

روضه کلاسی، منګور،شالیز، ورزو، تاه‌سنګ ، رباط، کلال ګو ، ګردیزه سرد په (سرده)پرمل،سر روضه ،بابی او نور .

**په کندهار کی :**

کلات زیبی* ، ده خواجه ، بابا ولي،ده ماسو س، سپیروان،سرده، پاشمول کاغانك،قرض (کرز) مزر عه(مزره)، ذاکر، ګر شك، فراه، قلعه بست‌او نور .

**په هرات کی :**

فراه،سبزوار،اوبهه (اوبه)بر نا باد،کوترخان،بوزه او شکیوان ** ، ممیزك ،*** سیاهو شان، زنده‌جان،غوریان ،ګیرمسان او نور مشهوردی.

---

* په اصل کی هم دغسی کښلی دی (وک ۲٤ مخ ) دا په « کلات غلزنی» وی . (رشاد)

** په اصل کی‌اشکیوان لیکلی‌دی(وک ۲۵ مخ ) خو دهرات خلك یی «شکیبان» بولی ، پوزه دشکیبان دسیمی یو کلی دی .

*** له‌هر اته شخه اوه دیـرش‌نیم کیلو متره‌د کوهسان خواته دعمومی سرك په جنوب کی یو کلی دی . (رشاد)

# دافغانستان مشهور سینونه

په دغه هیواد کی واړه او لوی‌سینو نه ډیر زیات دی چی مشهور سینو نه یی د سوات، پنجکوړی او باجوړ رودونه دی خو مشهور نه دی بیلو بیلو ځایو نو کی‌سیندونه یی‌په لاندی ډول دی :

**په کابل کی :**

دکونړ سین ،دلغمان سین ،سرخرود،دغوربند سین، د لوګر سین، دمیدان سین، چمچه مست او نور .

**په غزنی کی :**

دغزنی سین، دسرده سین اونهاره (ناور) چی دغه دری سینونه دآب ایستاده (ولاړو اوبو) په جهیل کی توئیږی .

**په کندهار کی :**

ترنک، ارغستان ،دهوری ،لوره، ارغنداب،هیرمند،یا هلمنددرافغانستان او نور چی دا ټول سینونه دزره‌په جهیل کی چی دسیستان په مینځ کی تقریبا دیو سلو میلو په اوږ دوالی پروت دی توئیږی .*

**په هرات کی :**

فرمرود (فراه رود)، خاشرود ،رود کز ،او نوردی ددغه سینو نو اوبه ښی هضمیږی‌اوکبان یی‌هم خوندوړ دی . **

---

* دکندهار رود وله په‌هلمند کی‌لویږی او بیا دهلمندپه واسطه په هامون صابری‌کی توئیږی .(رښتاو)

** هریرود چی‌دهرات ترټولو لوی‌سین دی ـ دلته نسته . (رشاد )

# د افغانستان تجارت

افغانستان په زیاته پیمانه له هندوستان او ترکستان سره د سوداګري په چارو بوخت دی خو په لږه اندازه له ایران سره، هم تجارتي اړیکې لري او هغه مواد چې په افغانستان کې پیدا کېږي یا جوړېږي او په سوداګرۍ کې له هغو څخه استفاده کېږي په لاندې ډول دي:

## د افغانستان معدنونه:

سره زر، سپين زر، لاجورد، سرب، اوسپنه، رانجه، ګندهک (ګوګړ) هړتال (زرنیخ)، پتبکري، چودن، مالګه، نوشادر، نیل طوطیا، مومیایي، ژاله او نور د افغانستان له معدنو نو څخه لاس ته راځي چې له دغو معدنیاتو څخه ځيني د ملك په دننه کې استعمالیږي، او ځیني یې بهر ته د تجارت په منظور صادرېږي.

# دافغانستان میوی اونور بوټی «نباتات»

لوډنګ لواند یا مجیته ، انجــه ،پنبه ، تمباکو ، وریجی، اوله میوو ښځه ممیزی، منقی، کنبته ، حوبانی،انار، انګور، ناشپاتی ، بادام، پسته، وچ توت، زرشك، بزغنج ، کاکوتی،چی دغه میوی او بوټی د سوداګرانو په ذریعه په زیاته اندازه ، نور وملکو نو ته د خرڅلاو له پاره وړل کیږی.

لواند (مجیته )دشیګل په علاقه،مقر او د تره کو په ناوه ، دتو خــو، په سیمه کی کتواز، لوګر د غزنی‌شاو خوا او کند هار کی په زیاتــه اندازه پیدا کیږی دغه بوټی دځینونورو بوټو په شان په پسرلی کــی په دی ډول ګرل کیږی چی‌لوړی په ځمکه کی ورته واړه واړه لښتــی جوړیږی ، او بیا دغه بوټی په کی‌ایښودل کیږی، اوبه او سره پخپل وخت ورته ورکول کیږی، او پــه ژمی کی له ساړو نه دساتلو پــه منظور یی په خاورو سره پټوی اودپسر لی په پیل کی یی دغه خاوره بیرته ورڅخه لیری کوی او وروسته له دریو کالو څخه دغه بوټــی د

استفادې ور ګرځي اوپه دریم یا څلورم کال دمنی د موسم په پای کې را ایستل کیږي او بیا سوداګرا نوته ورکول کیږي چې لوند یې عموماً یو من په څلور روپۍ او وچ یې یومن په اووه روپۍ پلورل کیږي. او دبې ستنو او نورو تو ګرا نوته د سره رنګ ورکولو له پاره په ټول هندوستان او پنجاب کې ډیر مصرفیږي. یا له هغه بوټي نه چې انجه لاس ته راځي هغه خودرویه دی او د هرات او فراه په غرونو او ځنګلونو کې پیدا کیږي. ددې بوټي شکل او اندازه د سپیلنو غوندې دې او عموماً تر دریو فوټو لوړ نه وي. په یوه ورځ ددغه بوټي ښاخونه لږ تو ټول کیږي او یا د هغه دبیخ شاو خوا وور یږي او بیا د یوې لوښتي په اندازه یې غوځوي او دپاسه یې شګې اچوي په دویمه ورځ له هغه توږل شوي او یا قطع شوي دا پینو غوندې شیره راوځي او اینجه ورنه لاس ته راځي او تر تولو وروسته چې سوداګرو یا ندې پلورل کیږي خو خالصه اینجه ډیره لږه راځي او اکثراً خلك له هغې سره د نخودو اوړه یا دزاو تیږه چې د ابرك له ډول څخه ده میده کوي او له هغې سره یې ګډوي،

## حیوانات:

دحیوا نا تو له جملې نه اسانو او پسونه چې ورې یې ډیرې ارزښتناکې او غوښه یې خوږه ده همدا رازښکاري سپي، کورنې پیشو ګانې چې اوږده او ښایسته ویښته لري او رنګا رنګ وي د قبا رانو په ذریعه راوړل کیږي. داسانو سوداګري اکثراً په هرات، سرخس، میمنه، دخراسان شاو خوا او ترکستان کې ډیره ده. بلو څان او د پښین سیدان هم د اسانو سوداګري کوي.

له ترکستان نه پیشو ګانې او ښکاري سپي له سبزوار (شینډنډ) فراه او ګرمسیر نه راوستل کیږي.

## دهغو مصنوعاتو بیان چې په افغانستان کې جوړیږي اودتجارت له پاره بهر ته صادریږي:

له افغا نستان نه بهر ته سیلاوي (لویې چړې) او توري چې لومړۍ درجه نه دي، همدا راز ددایزنګي برګي، کرك، برګي، ستري برګي، خرمایي برګي، دوریو او پسونو، پوستینو نه، دوزو له وړیو نه جوړ شوي کرك، هراتي غالي، تغر، لمڅي، جرابې، وړینې او وریښمینې دستکښې،

سپینی او وړینې جامې، وریښمین قناویز، خولی، ثبه ښه چکنو نه، چپنی گلا بتونې او ساده پټوگان، مسی لوښی، گچ چی له هغه نه بنگړی، بوتلونه اونور شیان جوړیږی قبول کیږی، چی ددغو له جملې نه پوستینونه، چپنی، شتری برکی او وړین پټو گان هندو ستان ته ډیر صادریږی .

په هندو ستان کې هراتې غالیو ته ایرانی غالی وایی. په یوه غالی باندی شپږ یا اته تنه کار کوی، له جوړو ونکو نه یو گز مربع دهرات په لسو روپیو چی دانگریزی سرکار له اتوانو سره برابری دی اخیستل کیږی او په هندو ستان کی یی یوره په لس روپی پلوری واړه مسندی لمځی له (٤) نه لیولی تر (١٥) روپیو پوری خرڅیږی .

**واردات :**

افغا نستان ته عموماء له بهرنه دا لاندینی مالونه واردیږی.

له اروپا نه او سپنه، مس، سپین زر، وړین او سپنسین توکران، یعنی بنات، ململ، لټه، خاصه او نور.

له بخارا نه وریښمین توکران، قناویز (شمندروز) او نور له روسی نه سنجاب گلابتون (زرتار) سموراو نور.

له هندو ستان نه افغا نستان ته سپنسین او وړین توکران، گلبدن، کمخواب (کینخواب) او نور وار دیږی. همدار از له دیره غازی خان نه ململ اونیل اود ملتان او سندنه د(دیگ مساله) او هغه شیان چی پسار یان یی پلوری له ایران نه غالی، آسان، لوښی (ظرف) اونور شیان واردیږی.

پر هغو شیانو باندی چی له بهرنه افغا نستان ته راوړل کیږی دوه نیم په سل کی محصول تاگل شوی دی چی چهل یک یی بولی خو په اصل کی له دغی اندازی نه زیات محصول اخیستل کیږی .

# لویې کاروانی لارې

افغا نستان ته د راتلو لویـــې کاروانی لاری دادی :
له ایران نه تهران اومشهد ته اوله هغه ځایه هرات ته، له لویدیـــځ ترکستان نه بخارا، مرو اومرغاب نه تیریږی او بیا هرات ته رسیږی. له ختیځ ترکستان نه بخارا، کرشي، بلخ او خلم ته، څلورم له پنجاب نه پیښور اوله هغه ځایه کابـــل ته، پنځم دسمندر او سند نه دبولان دری په لاره کندهار ته، شپږم له پنجاب نه دیره اسمعیل خان ته او بیا له هغه ځایه دگومل دری غزنی ته اوله غزنی نه کندهار ته.

**له لویدیځ افغا نستان نه لویې کاروانی لاری :**

---

دهغو درو له لاری چی سوداگـــر دسند درود یعنی اباسین خواته راځی دهغو نه د لویو درو تفصیل په دی ډول دی :

دبولان دره، دگومل دره، اودره بند دیره اسمعیل خان ته مخامخ، د کورمی دره، بنو ته ځی تاتـــره اوآبخانه پیښور ته ځی دکندهار لخوا چـــی بولان دری پـــه ۷ ورځی دغه لار څلور سوه میله واټن لری دغه دره تقریباء پنځوس میله اوږد والی لری اوټول کال دتګ راتګ له پاره خلاصه ده. چی په اکثرو ځایو نو کی یې منځني پلنوالی سل گزه دی. ددی دری په لاره کاروانونه دری ډوله دښمنان لری یعنی مری بلوڅان، کاکړ او ترین پښتانـــه.

له افغا نستان نه کراچی ته داشیان راوړل کیږی دیولک اوشل زره روپو په بیه اینجه، دیو لک اواتیا زره روپو په بیه وریښم، دیو دیرش لکو او پنځوس زره روپو په بیه دپسه وړی، دنه لکه اوشل زره روپو په بیه اسان اودیو لک اوپنځوس زره روپو پـــه بیـــه میـــوه،

دبولان له لاري وړی او اینجه لږ ء راځی او هغه قا فلی چی دغـــه شیان راوړی نو هغه قلات خوجه نه ودر پرمګر لرلاری راځی .

دپسو وړی په کال کی دوه ځلـه توږل کیږی، په هزاره جات او دافغانستان په نورو تولو غر نیو سیمو کی دپسونو دړمو دزیا توالی له کبله سپینی اوخود رنګه وړی ډیـــــری پیداکیږی. اودغه وړی له کراچی نه بمبئی اوله هغه ځایه انګلستان ته وړل کیږی، او له دی امله چـــی زیات ارزښت لری. نو ځکه یـــی عاید هم ډیر دی، که چیری دهرات دهزاره په هرګنه او دکندهار په شاو خوا کی ما لګانو ته پیشکی پیســی ورکړل شی نو دولس آنی او دوړیو دسکو لولو په خت کی (٤)رو پـــی اوکه چیری یی په پور واخلی نـــو دکندهار یومن یی په (۸) روپـــی خرڅیږی.

دوړیو دپیر یدلو له ځای نه تـر کندهار پوری داته څلو یښتـــــو کندهاري منو کرایه (۱۱)رو پـی ده اوله کند هار نه تر ترا چـــی پوری کرایه یی همدو مره کیـــږی.

ددیره اسما عیل خان نه تردره بند او دګومل ددری نه بیا تر غ نی پوری (۳۲۰) میله واټن دی او دغز نـــی نه دقلات غلزایی له لاری تر کندهاره پوری دوه سوه شل میله فاصله ده.ددغی دری دقافلو قوی دښمنان مسعود وزیر او داحمد زیو دقوم دزلی خیلو ښا خ دی. په دغه لاره ښا ندی پوونده سودا ګران تک راتګ کوی. پـــه دره بند کی دشیرانیو له خوا هـــم خطر موجود دی. دکرمی ددری لـــه لاری سودا ګران لږ راتګ کـــوی، دغه لاره دکاروانونو له پاره له خطر نه ډکه ده، داتمانزیو، وزیرو،دکابل خیلو اوحسن خیلو ښاخو نه اودتوریو قوم تل دمسافر انو او قافلو دراتګ لاری نیسی اودیوی قوی اواعتبار ی بدرګی نه پرته په دی لاره تګ راتګ ګواکی له ځان سره دښمنی ده..

کابل اوبخاراته دپیښور نـــــه دتاتری ددری آبخانی او خیبر څخـــه لاری تللی دی چی دادری واړه لاری په ډکه کی سره یو ځای کیږی. پیښور له کابل نه ۱۸۰ میله واټن اوبخاراته دبامیانو له لاری اته سوه میلـــه فاصله اودڅلو ښتو ورځو لار ده.

کاروانونه دخیبر ددری په لار ، تګ‌راتګ نه کوی، داځکه چــــی اپریدی قوم دقا فلوسخت دښمنـــان دی‌که چیری دوی دکاروان دساتلـــو له پاره پیسی هم واخلی. سره له دی هم په لوټ لاس پوری کوی، دکابل امیر اوس دوی‌ته هیڅ رو پـــــی نه ورکوی. دنورو درولو جملی نه دتا تری‌په دره کی دملا کوری قـــوم‌او آبخانه کی ترکزی او موّ منـــد استو ګنه‌لری، له ځه هم ددغه قوم‌خلك له حرامونه دزړه له کو مـــی پرهیز نه نوی خودلالپوری سعادت‌خان دخپل انتظام په وجه دادری‌واړه لاری خلاصی ساتی‌اوپه‌دغه ځای‌کی‌له سپرو او پلیو کسانونه محصول اخلی . دپښبور‌نه کابل‌ته دا در ی‌واړه لاری ټول کال داوښا نو دتـــګ راتګ له پاره مساعددی. خو کاروانو نه اکثراً دجنوری او فبروری پــــه میاشتو کی وربانډی تګ را تـــګ نه کوی. دکابل ا وخلم تر مینـــځ ددری په لاره ډیر لوړ کو تلو نــــه حاجی ګك، کالواود ندان شکن دی. کله چی کاروان یا مسافران د لته را ور سیږی نو ضرور ده چی لـــــه ځان‌سره اذوقه ولری.

## د ښوکلني تجارت تفصيل چې د پېښور د درو له لارې د افغانستان او هندوستان ترمنځ صورت مومي

لومړی د هندوستان او پنجاب د لاندینو درو په لارو د دولسو لکو او شپږ زرو روپو مال په دې ډول سره صادرېږي . اروپایي او هندي سپینسین ، وړین او وریښمین ټوکران د پنځو لکو او لس زره روپو په بیه، د پنجاب نه ډېل ټوکران د یو لك او څلو یښت زره روپو په بیه. شکره، قند او نور د (۷۲) زرو روپو په بیه ، ملتاني او هندوستاني نیلي د یو لك او (۷۵) زره روپو په بیه.

پاتې شیان چې افغانستان ته صادرېږي دادي: کمخواب، زرتار، لیسي لونګۍ، څرمنې ،پنې او اکثراء د دیګ مسا له او هغه شیان چې د پېښاوریانو له خوا پلورل کیږي. انګریزي سپینسین ټوکران ، ململ، لټه او نور بخارا ته وړل کیږي .همدا راز د شکرې او نبات له وړلو نه ډېره ګټه ترلاسه کیږي .

**صادرات :**

له افغانستان نه د دې درو له لارې د پنځلس لکو او یا زرو روپو په بیه مال په دې ډول سره راځي .د بخارا وریښم او وریښمین ټوکران د اتو لکو په بیه د سرو او سپینو زرو اصل او کچه تارونه د اتیا زرو روپیو په بیه، د ترکستان آسان او ټټوګان د یو لك روپو په بیه، د کابل نه

بادام او وچکی (ممیز) دوه لکه او پنځوس زره روپیو په بیه ،صره زرلو د غلور لکو او څلیرویشت زره روپو په بیه باتی اکراء شیان دا دی :

روښی سمور، سنجاب، او روسی او بخارایی څرمنی، بخارایی قا بلی، قناویزونه، دپنبی او وړیو پوستینونه ، چینی ، شتری بز کی ، وچه او تازه میوه دو دانیو لر کی، مجتهاو ایفچه چی دا دواړه ورومستنی

ذکر شوی اقلام پیښور ته لیږ صادریږی ، اصیله فیروزه اکثراً په نیشاپور کی استخراج او بیاد افغانستان په لاره راځی ، په هرات او کندهار کی مصنوعی فیروزه لـه شنی خاوری نه جوړیږی.

## دسوداګرو قومونو بیان:

دتجارت څنګ کی دسوداګرانو ذکر هم ضروری بریښی.

دافغانستان داسیدونکو له جملی نه د هرات او کابل پارسی واننلاق ویشمین سیدان او د غرغښت قبیلی یابی بناغ د کندهار مشهور او با همته سوداګر دی. دغه خلک دسودا ګری په منظور لیری لیری ملکو-

نو ته لیږد کوی . په لیره بیا پارسیوانان د سوداګری په چارو کی ډیر زیار ګالی، خوشیان په لوړه بیه پلوری.

دافغانستان څخه سوداګر چینی او بوی چینی او پوستینونه اغوندی او لونګی په سر کوی د هندوستان له ملك نه پرته، په روس، ایرانه ترکستانه حتی په چین، تبت او روم کی هم لیدل کیږی.

دافغانستان تجارتی مالونه زیاترمه د لوښانو ، کیږو، قتو ګانو او غوایانو په ذریعه وړل کیږی .دسوداګرانو په جمله کی څښه

زیار ګالونکی سوداګر په زیاته اندازه دید ولو ور څه چی پووند سوداګر یی بولی.

پووند یعنی کوچیان چی په یوه ځای کی دایمی استو ګنه نه لری دوی دیراوښان لری چی په دوی کی ځینی لوی سوداګر او ځینی واړه سوداګران دی. هغه سوداګران چی له شتمنو سودا ګرانو نه مالونه په ضرخلاو لـه

پاره اخلی ،په دوی کی پنځه مشهوری فرقی موجودی دی چی دوی د منی دموسم په پیل کی د لویدیځ افغانستان نه اولږو سیمو ته راځی، او د پسرلی د مو سم په پیل کـی بیرته غرنیو سیمو ته ستنیږی په

هی بویل چی:

لومړي ناصر پوونده چې پـــه څلورو ډلو ویشل شوي دي .هغه ناصر چې ګوابي لري، هغه ناصرچـــي دپسونو رمـــي لــري ، هغه ناصرچې دلږومالونو خاوندان‌دي،څلورم هغه ناصر چې شتمن دي او اوښان لري .

دهوي قوم تقریباء پنځه زره تنه د شپاړسو زرو اوښانو سره راځي؛

دویم خروټي چې اتلس سوه تنه او شپږ زره اوښان له ځانه سره راولي .

دریم د لوحانیو دمیا خیلو ښاخ چې شوارلس سوه تنه دي‌او شپږ زره اوښان لري ،

څلورم ددو تانیو دقوم شپږ سوه‌تنه دڅلور زره اوښـانو سـره ،

پنځم دنیا زیوه‌متي او کندي‌شپږسوه تنه له‌دریو زرو اوښانو سره راځي، ددغو فرقو له‌جملې نه میاخیل‌پخوانی سوداګران دي اوتر نوروتولو پوونده ونه دوی لومړی دسوداګری‌له لاری شتمني تر لاسه کړی ده ، چې دهاتي نورو ډلو دتشویق او ترغیب باعث ګرځیدلی دی.

اوس دخروټو او دوتاني قومونه ،دخپل همت اوزیار په سبب شتمن شوي اود تجارت له‌پاره لیری لیری‌ملکونو ته‌ځي دوی داسی عادت لری چې‌د یخنی په‌موسم کی‌په هندوستان کی تجارت کوی اود ګرمی په موسم کی لویدیځ افغا نستان ،ترکستان‌اوپه خراسان کی په سوداګری‌بوخت

وي. ددوی دتجارت څرنګوالی داسی‌دی چې‌د دوبی په موسم‌کی دغزنی‌د شنلګر په سیمه او مقرکی کیږدی‌دروی او خپلی کورنی، څاروی او فالتو کسان په کیږدیو کی پریږدی‌او پخپله له هندوستان نه راوړل شوي مالونه بخارا، هرات، کندهاراونورو شاوخوا سیموته دخرڅلاوله

پاره وړي، ددوی څاروی په غزنـی،قلات غلجی، زرمت، ناوړ او هزاره-جاتو کی څري چې په بدل‌کی د هغه ځای حاکم ته داوښانو ترني(محصول) او نور شیان ورکوي. ددوی دځینو فالتو کسانو له جملې نه ځینـــی، یې د مالکی په سوداګری بوخـــت‌دی، دوی دکوهاټ د ضلعی دبهادر-خیلو له کان نه مالګه اخلی اوغزني‌او زرمت ته یې وړي.

خروټي اکثراء دکند هار اوهرات‌تر مینځ او همدا راز دکابل او بخارا تر مینځ هم تجارت کوی کله چې‌دوی په لویدیځو سیمو کی خریـــد او فروش وکړی نو بیایی قافلـــی بیر ته راستنیږی تر هغه وروسته

داکتو بر په میا شت کی د هندوستان خوا ته یی تگ پیل کیږی نو په دغه وخت کی د غزنی له سیمو نه کیږدی بیرته راتولوی او دخپلو کورنیو او څارویو سره د کاروان په ډول روانیږی. دوی اکثراء د گو مـــل ددری په لاره د سلیمـــــان لـــه غره نه تیر یږی او د دیره اسمعیل خان دضلعی ددامان په سیمه کـــیچیر ته چی ښه څړ ځای ووینـــی دغرو په لمنو او دسند د رود پـــه غاړو په بهار پور او نورو شاو خوا سیمو کی خپلی کورنی پریږدی اولوی کار وانونه یی دملتان په خوا روانیږی او له هغه ځایه پـــــرسهیلی او ختیځو برخو کی خوریږی. ځینی یی د بهاول پور له لاری راجپو تانه (اوسنی راجستان) ته ځـــی، ځیـی یی دسر سه او ډیلی لـــه لاری بنارس او کلکتی او ځینی یی لاهور او امرتسر ته ځی . دځینـوسودا گرانو ځای ملتان دی، چـــی هلته دوی د پسر لی موسم تر پیل ملتان کی اوسیږی هلته او پـــه کراچی کی ددلالانو په معر فـت اوپیژ ند گلوی خپل مالونه پلوری. اکثراء پوونده سودا گر له دی نه هـــم په زیاته اندازه ختیځ او سهیـــل ته د گټی دترلا سه کو لو لـــه پاره مالو نه وړی، په ختیځ کی د کلکتی ،ډاکی او برما پوری او پـــه سهیل کی د بمبئی او نورو لویـــو بنـارونو پوری دغه سوداگران لـــه خپلو اوښانو سره لیدل کیږی.

دپسر لی په موسم کی د قافلـــو بیرته تگ پیل کیږی او هغـــــه شیان چی دوی ته په کی کته مـــوجوده وی اخلی ، ځینی یی د کلکتی بنارس، او ډهلی ته خپل اوښان، باروی دځینو له پاره په جهنگ ا و چنیوټ کی ډبل تهوکران د ارهتیانو(دلالانو) په معر فت جوړ یـــږی دوی داپریل په میا شت کی له خپلـــوکورنیو سره یو ځای د کاروانو په شکل لویدیځ افغا نستان ته روانیږی او د گرمی په موسم کی هلته ، خپلی کیږدی دروی او د هغوی تـــــگ راتگ هر کال په همدی ډول جریان لری . د پوونده سوداگرو د زیاتی گټی د تر لاسه کولو په سبب دهچی ددوی شمیر ورځ په ورځ زیاتیږی، لکه څنگه چی ددی پنځو مشـــهورو قو مو نه پرته اکا خیلو، غلجیو اولږ شمیر سلیمان خیلو هم دسوداگری له چارو سره مینه پیدا کړی ده .

لکه څرنگه چی دافغا نستان هیواداو ددغه ځای لاری دیخنی له کبله ډیری مشهوری دی نو ددغه لاروله پاره پوونده سوداگر ډیر مسا عـــد او لایق دی، دوی د خپل همـــت او زیار په وجه په سختیو باندی بریالی کیږی او د غلو او لار وهونکـــو له ډلو سره د مقا بلی له پاره په یاغستان کی چمتو او مساعـــد وی ،دوی اکثراء په تجارتی مسا یلوکی

له ایمانداری او صداقت نه کاراخلی.

ددوی نه پرته سلیمان خیل غلجی دآسانو سوداگری کوی ،د کاکړ و قوم او دارکون د سیمی شیخـــان او پیران اودهزاره ووقوم اوداکثرو نورو قومونو ځینی خلك دخپلو سیمو په دننه کی لږه سوداگری کوی . دکندهار، هرات او کابل هنـدوان شتمن دی، خو په افغا نستان کی ټول خلك هغوی ته په خواره سترگـــه گوری ،له همدی کبله دوی په تجارت کی هغه گټه نه شی ترلاسه کولای لکه چی استعداد یی لری.

# دتجارت دپرمختګ لاری

موءلف په دی عقیده دی که چیری دسرکار دسرپرستی لاندی دعامه تجارت له پاره یوه عامه میله په یوه مناسب ځای کی وټاکل شی چی دغه ځای ته دهندوستان ، افغانستان، ترکستان، ایران، کشمیر او نورو ملکونو سوداګر خپل مالونه دخرڅلاو له پاره راوړی اوله دغه ځایه هغه مالونه چی ددوی په ملك کی ډیر قدر او ارزښت لری خپلو ملکونو ته یوسی ، نو داکار به ډیر ګټور وی.

له دغی میلی نه چی کومه ګټه متصوره ده تر هغو پوری نه واضح کیږی ترڅو چی ددغی عامی میلی ګټه پخپلو سترګو ونه لیدل شی خود دغی میلی دګټی ساری دروس په ملك کی لیدل کیږی، هغه ملك ته چی ددغی لوی میلی نه کومه ګټه رسیدلی ده، نود هغی بیان داافغا نستان په کتاب کی ضرور نه دی دائکه چی ددغه ملك سوداګرو هغه میله لیدلی ده.

کله چی زمونږ په هیواد (برتانوی هند) کی د سوداګری داسی یوه عامه میله ددولت په پاملرنه جوړه شی نود هغی په سبب به د ملك پرمختګ او تجارت ته لویه ګټه ورسیږی. هغه بهرنی مالونه چی زمونږ هیوادوالو ته په ډیر وخت کی هم نه دی ترلاسه شوی بهرنی سوداګر یی پخپله راوړی او په دی میله کی به یی خرڅوی او ددغه ملك دتجارت ور

مالونه به دواورو ډکو غرونو لــه تیریدو او نورو تکلیفونو او خرڅونو له کاللو پرته به زمونږ هیواد وال په اسانی سره دنورو ملکونو پــه سوداګرو خرڅ اودهغوی‌په هیوادونوکی به د خرڅلاو له درکه ګټه تــر لاسه کړی او ددی نیکی لاری په سبب به دخدای(ج) په فضل د ملک‌شتمنی او عواید زیات شی که چیری ددغه میلی ځای ددارالحکومت په سبب د پنجاب دلاهور ښار وټاکل شی نوسمه به نه وی خوکه چیری دملتان پــه باب فکر وشی نو بی شکه به پوونده‌سوداګران اود جنوبی ملکونوسوداګرو ته ډیره فایده ورپه برخه شی اوهم دغه ځای په منځنی برخه کــی موقعیت لری، خو څرنګه چی ددغه میلی مقصد عامه ګټه ده نو ددی‌له پاره باید یوداسی ځای وټاکل شی‌چی هلته دپنجاب، دلویدیځ اوشمالی ملکونو سوداګران په اسانی سره‌دی میله کی دګډون له پاره ورسیدلی شی نو داسی ځای دپیښور ښاردی،چی هلته دافغانستان ،ایــران او ترکستان سوداګران تل تګراتــګ‌کوی. اود روس، کاشغر ،کشمیراو تبت سوداګران په خوښی او اسانی‌سره په کی ګډون کوی. پیښور دملتان په پرتله دتجارت په معامله کــی‌ددی سیمو په سوداګرانو کی زیات مشهور دی کله چی ددی تجارتځی‌خبر دنورو هیوادو سوداګرو تــه ورسیږی نو هغوی‌ددغه ځای دشهرت په سبب‌پرته له ځنډه‌به په کی‌دګډون میله وکړی، جنوبی‌سوداګر اوپوونده‌خلک هم هلته راتلای شی. کله چی دکلکتی نه پیښور ته د امرتسر،ډیلی‌او لاهور په لاره اورګاډی جاری‌شی نود ختیځو ملکونو او ملتان سوداګران به په دی میله کی‌په اسانی سره ګډون وکړی ،ددی میلی ډیر ښــه موسم دمنی پیل دی ،ځکه چی دژمی په موسم کی واوری داوریدو لــه کبله افغانستان او دشمالی غرنیو ملکونو لاری بندیږي. که چیری‌هر کال دنوامبر دمیاشتی لــه لومړی نیټی نه ددسامبر تر میاشتی پوری‌پوره یوه میاشت یاله دی نه زیاته موده ددغی میلی له پاره وټاکل‌شی نوډیره ګټوره به وی .

# دویم باب

## دافغانستاد عام تاریخ بیان

# لومړی څپرکی

**لرغونی تاریخ :**

که څه هم د منظمو او صحیحو تاریخی سلسلو د نشتوالی په سبب ددغه هیواد پخوا نی تاریخ پـــــه صحیح توګه نه دی معلوم ، چـــی په پیل کی په لویدیځ افغا نستان کی کوم خلك اوسیدل ، خود زړو کنډوالو نه داسی ښکاری چـــی دلته به غالباً هندوان اوسیدل خو دا خبره یقینی ده چی په ختیځ افغانستان کی د هندوانو استو ګنـــی په پیل کی دلته چهار بڼن (دهندوانو څلور کاسته ) خلك اوسیدل.

ځینی مؤرخین هندوان دیافـــث ابن نوح او ځینی یی دحام بن نوح، اولاده ګنی . دحضرت نوح (ع) اولاده له طوفان نه وروسته چی له اوس وخت نه تقر یباً پنځه زره کالـــه وړاندی پیښ شوی ؤ، دفـرا ت او دجلی په دوا به کی میشته شول چی اوس یی د یار بکر اوالجزیره هـــم بولی، کله چی ددغه قوم په شمیر کی زیاتوالی راغی، نو د تکبر لـــه

مخـــي يې دشغار په میـــــــدا نکي يې د يوې داسې لويې ودانـــي په جوړولو نيت وکړ چې تر اسمانه پورې ورسيږي نو په دغه وخـــت کې خداى (ج) ددوى د غرور اوتکبر له مخې او ددوى ودانې دړنګيدوله هيبت نه ددوى په ژبه کې اختلا فات را مينځ ته کړل ، چې ددې په وجه دوى سره خواره واره او په مختلفو ملکو نو کې ميشته شول .

لنډه دا چې له اکثرو کنډوالـــونه چې بتان او دبت پر ستی ساما ـ نو نه ، زړې سکې چې په يوه خوايې دغوايي څيره ديوه سړي دتصويـــر سره په داسې حال کې چې لنګ يې وهلی او غاړکې يې اچولې ده ليدل کيږي له دغه ځايه تر لاسه شوې دي چې له دغو اثارو نه دهندوانو دا ستوګنې رښتينتوب ثابتيږي ، له اکثرو نښو نښانو نه داهم څر ګنـ يږي چې چار برن يعنې برهمن، چهتري، بيش، او شودرا له پخوا نه په دغه ملك کې چې يې دهندوا نو په پخوانيو کتا بو نو کې با لهيك ديس ليکل شوي، ميشته وو .

د رګهو بنس کتاب چې په پخوانی شاستري ژبه ليکل شوی ، هغـه هم ددې خبرې شاهد دی چې پـــــه کې ليکل شوي دي چې راجا بهر تهه او د هغه مور ککی دسند درياب په غاړه پخپل نامه يو ښار جوړ کړيدی. نوموړی بهرت، له دويمې مور نـــه د مشهور رام چندر ورور و اودهترې قوم دراجا دشرتهه زوی و، درام چندراو بهرت له زمانې نه تر دريـــو زرو کالو نه زياته موده تيره شوې ده اروپايي محققين په دې خبره سره موافق دي چې راماين دحضرت مسيح(ع) له وخت نه دولس سوه، کاله وړاندي يعنې د حضرت محمد (ص) له هجرت نه (۱۸۰۰)کاله دمخـه دبالميکي شاعر له خواچې درام چندرهمعصره اويا تر هغه لږموده وروسته يـې ژوند کـاوه ليکل شـوی دی.

داتك لويديځ خواته غره کې ديوې پخوانی کـــلا نښې نښانې تـــــر سترګو کيږي چې ويل کيږي دپانډوانو دوخت په وی همدا راز دميا نوالـي دسيمې دسکيسير په غره کې هم ديوې زړې ودانې نښې شته چې پانډون

سهنگا سن ( Sahangasen ) یی بولی دباندو او کیرو کیسه ډیره مشهوره ده ،دوی دواړه درا مچندرنه تقریباً څلور سوه کاله وروسته تیرشوی دی په مهابهارت کی داسی روایت موجوددی چی ددربو دهن کیرو مور کند ـ هادری نومیده چی دراجا گندهاریعنی راجا قندهار لور ده.ددی نه ښـرـ کند یږی چی په هغه وخت کـــی دافغا نستان په لویدیځه برخه کی هم هندوان اوسیدل او په دغه برخه کی قوی ثبوت دادی چی د لویدیځ افغا نستان د شمالی حد ترکستـــان په لاره د بامیانو په سیمه چی له سمندر نه اته زره فوټه لوړوالـــی لری دډیرو زړو ودانیو ښبــــــــی ښبانی مو جودی او دهندوکش پـه لړی کی دی او هلته دوه ولاړ بتان چی یو د ښځی او بل یی دنر دی شته چی دیو بت لوړ والی یو سلو اتیـا فوټه اودبل یـــو سلو او یـــافوټه دی او دیوه لوړ غره تر ښنگ توږل شویدی، چی د هغه ځای اوسیدونکی یی سنکسال او شامره بولی*
په نور افغا نستان کی هم دبامیانوبتان مشهور دی، همدا راز دلوکرد سیمی په خوشی نومی ځای کی د رپوو بو چینه شته چی هندوان یی متبرکه گڼی او د هغوی زیارتگاه ده اوپه کال کی یوځل دافغا نستان هندوان دهغه ځای زیارت کوی. روایت دی چی لهکرپه سنگریت ژبه کی یوازی دهغی چینی نوم دی چی اوس دهغی د نوم په سبب دغه توله سیمه مشهوره شویده.
دسوات، بونیر، تالاش، پنجکوړی، باجوړ اوپه شمالی نورو غرنیو سیمو کی هم ښایسته ،ښایسته او پخوانی زړی ودانی چی دزړی تیری په عمر پوری مربوطی دی په کوښی کوښی توکه، تنگی اوله یوبل نه بیلـی په بیلو بیلو ځایونو کی او اکثراء صعب العبوره غرونو دپاسه موجودی دی، همدا راز بتان یی له ډبــرو توږل شوی او لوی لوی دیگو پو نه (تاریخی آبدی) چی په ډیر مهارت سره جوړ شوی دی په هره دره کی په زیاته اندازه تر ستر گو کیږی، له دی ښو ښبانو نه څرگند یږی چی ددغه ځای او سیدونکی په هغه وخت کی ډیر با استعداده وه او دیو بل سره

---

*دغه بتان سلسال وشمامه نومیدل.

ددښمنی په سبب په بیلو بیلــو ځایونو کی اوسیدل .که مو نــــږ اوسنی حالات له هغه وخت سره پرتله کړو نو دی نتیجی ته رسیږو چی افغا نان داستعداد او ځینی فنونــوله مخی پخوانی حالت ته نه شـــی رسیدلی . ددی نه پرته دافغا نستان په نورو اکثرو ځایو نو کی چی کوم دیگو پونه او لرغونی سکی لاس ته راغلی له هغوی نه دا خبره جوتیږی چی داسلام دسپیڅلی دین ترخپریدودمخه ددی هیواد خلك هم د هندوانو پشان د بید او د بودایی مذهب پیروان وو ، لکه چی په پیښــور او د یوسفزیو په سیمه کی هم د بودایی مذهب اوسیدو نکو اکثره نښانی موجودی دی . په تیره بیا د خاصو یوسفزیو دسیمی دشما لی غره * په لمــــن کی په یوه ډبره کی دبودایی مذهب دخپریدو یو اعلان حك شوی دی چی تر اوسه هم مو جود دی.

ددی مذهب بنسټ ایښوونکی شاه سنگه گوتم نومیده چی دمگده دیس دراجا سستهانگ له کورنی نه و ،دی دبکرماجیتی سنی نه څلور سوه او د حضرت مسیح له زیږیدو تــه (٥٤٧) کاله او له اوسنی وخت نه دوه زره دری سوه پنځه ویشـــت(٢٣٢٥) کاله وړاندی بودایی مذهب چی دفارس او عرب خلك یی بخشـــی او دتبت اوسیدونکی یی لامه بولی رواج کړ* . او دبید دمذ هب دبتا نولمانځنه یی وغندله او خپل مذهب ته یی داسی رونق ورکړ چی ډیرو خلکو یی پیروی ومنله او برهمنیانو هغه دراگش په نوم مشهور کړ.په پای کی په اتمی بکرماجیتی پیړی هغه وخت چی دبر همنیا نو په شمیر کی زیاتوالی راغی دغه مذهب له دغــه ملك نه اوحتی له هندوستان نه هم په ورکیدو شو، خو په سراند یــب (سر یلانکا) ، برما، تبت، جا پـــان او چین کی تر اوسه پوری دبودایی مذهب دپیرانو شمیر زیـــات دی .

---

*دغه ډبره دشهبازگړی نومی ځای نه ختیځ لورته دیوه کوچنی غر ه په لویدیځه لمنه کی مو جوده ده،خو حروف یی ډیر خراب شوی دی. (موء لف)

**دبودایی دین درواج زما نه چی په دغو نیټو کی ټاکل شوی ده ماته دتامل وړ ښکاری بودا غالباً په ٥٦٣ قم زوکړی او په ٤٨٣ قم مـــړ دی مولف چی دبودا دین رواج ٥٤٧ قم کی بولی نو باید بودا په ١٦ کلنی کی دخپل دین اعلان کړی وی اوداسی دنبوت داعلان له پاره دعقل ونقل دواړو له مخی دمنلو نه دی بل دعیسوی سنی او بکرمی سنی تر منځ تفاوت ٥٧ کاله دی یعنی دبکرمی سنی پیل له ٥٧ قم څخه شوی دی دلته یـــی تفاوت ١٤٧ کاله ښودل شوی دی دریم ایراد دادی چی حیات افغانی په ١٨٦٥ع کښل شوی دی او دلته له لیکلـــی تاریخ ٢٣٢٥ څخه چی ٥٤٧ وباسو ١٧٧٨ پاتیږی چی ٨٧ کاله دحیـات افغانی تر تالیف وړاندی کال دی .

# دافغانستان دسلطنت بیان

لکه څرنګه چی پورته ذکر شول ددغه ملك پښتانی اوسیدونکی هندوان ګڼل کیږی اوپه پیل کی دلته هندوراجاګانو سلطنت کاوه، دوی به کله آزاداو کله به چی هندی راجاګان دزوراو قدرت خاوندان وو، نود هغوی تابع به وو.

بالهیك دپس هم دهند دسلطنت یوجز ګڼل کیده، خو ډیره موده وړاندی دسیا مك زوی هوشنګ چی دکیومرث لمسی او دفارس دسلطنت بنسټ ایښو دونکی ودی سیمی ته راغی. دغه پاچا ډیر عادل اود پیشدادی کورنی دویم واکمن و، داسی روایت دی چی دپیښور ښار پرځای باندی ده د فرساور په نوم یوښار ودان کړ چی تر ورانیدو وروسته همدغه ځای ته نږدی دهندی راجا په نوم بکرام ښار آباد شو اوبیا دغه نوی ښارته پر شعور نوم ورکړ شو اود ډیر استعمال په وجه په پشاور باندی بدل شو.

# دایران سپه سالار یرغل

کله چې دمهاراج راجه بهار ورارهله خپل تره نه خپه اود ایران پاچا فریدون ته دمرستی دغو ښتلو په منظور ورغی په دغه وخت کې دایران دپاچا له خوا سپه سالار گرشاسب ابن الطرد دیوه پوځ سره دهغه دمرستی له پاره ددغه هیوادپه لاری دهند پر خوا وتاکل شو، چې دمهاراج اود هغه وراره تر سولې وروسته بیرته خپل هیواد ته ستون شو، په هغه وخت کې دغه هیوادد پنجاب په گډون دمهاراجا عرف پردمن دحکومت تر واك لاندی و. تر هغه لږه موده وروسته درستم دستان لوی نیکه! سام نریمان دایران پاچادامر له مخې د هندو ستان دنیولو په تیت له فارس نه د پنجاب په خوا روان شو. دمهاراج له خواسپه سالار مالچند چې د هغه په! نوم دمالوه سیمه! مشهوره ده د هغه سره دمقابلې له پاره پنجاب ته راغې که څیری یوه اتفاقی پیښه نه وه را مینځ ته شوی او بخت له ایرانیانو سره یاری نه وای کړې نو

ددوآبې په بست کې چې ددوارو سپه سالارانو قرار گاه وه نو سخته جګړه په رامینځ ته شوی وه خو په هغه وخت کې ددکن د سیمې رعیت دهند دواکمن په مقابل کې بغاوت وکړاو د مهاراج زوی یې وواژه اوشوراج یې په شا وتمباوه، په دغه وخت کې مالچند دا خبر واوریده نو دناچاری له مخې یې له ځانه سره سوچ وکړ او دغه سیمه یې دلویدیځ پنجاب په گډون د ایران دپوځ مشر ته ورکړل او سوله یې ورسره وکړه چې له هغه وخته راهیسې د کابل او زابل صوبې دنویو فتح شوو ملکو

نو په گډون دایران دپاچا له خواد گرشاسب اولادی یعنې د رستم پلرو نو او نیکو نو ته په جاگیر کې ورکړل شوی، په دغه وخت کې مهراب نومی چې د ضحاك تازی له نسل نه و دکابل صوبدار سام نریمان ته باج ورکاوه چې دهغې دلورسودا به نه د زال زوی رستم

وزیریده کله چی دایران پاچا منوچهر او سپه سالار نریمان مړه شول او دشهزاده نوذر تروژل کیدو وروسته دایران په سلطنت باندی دتوران پاچا افراسیاب بن پشنگ تر دولسو کلو تو پوری په زور او جبر سره قبضه ټینګه کړه، نوپه دغه وخت کی چی دهندراجا فیروزرای دفارس دسلطنت ضعف ولیده نــو بیا یی پنجاب او غالباً دافغانستان ختیځی برخی په خپله قبضی کی راوستلی وی، ترڅو چی دایران مشهور پهلوان رستم دستان دوه زره څلور ســوه پنځوس (۲٤٥۰) کاله وړاندی دایران دپاچا یانو کیکاوس او کیخسرو په وخت کی دتوری په زور تر پنجاب پوری سیمی بیا په خپل واک کی راوستلی.

درستم زوی فرامرز اکثراً پــه زابل یعنی غزنی کی اوسیده چــی دهغه اخلاق اوقدرت رعایا مطیعین او مطیع کړی وو.

### گشتاسپ :

ترڅه مودی وروسته د بلــخ پاچا گشتاسپ چی په یونانی کتابو-نو کی دارا هستاسپ لیکل شوی دی له رستم نه د غرور او کبر لــه مخی خپه شو. په هغه وخت کــی گشتاسپ دخپل زوی اسفندیار پــه

لاوښین تر په مشری د کابل او بگرام یعنی پیښور په خوا د بکرما جیتی سنی نه څلور سوه کاله وړاندی *خپل زړه ور لښکر ولیږه، پنجاب او ختیځ لویدیځی ضلعی یی ونیولی او په هغه ځای باندی یی خراج وتاکه او د افغانستان ملک یی دایران پــه سلطنت پوری وتاړه. دهغه دواکمنی په وخت کی زردشت داسفندیار او پاچا په ملاتړ دآتش پــرستی (اور لمانځنی) مذهب رامینځ ته کړ.

### د کیدراج تسلط :

گشتاسپ اتو مړینی او زر کسیز تر وژنی وروسته داسفندیار زوی بهمن دراز دست دایران پاچا شو. په هغه وخت کی کیدراج چی د بهیر واهه له قوم نه و په ماروار کسی بغاوت وکړ د پنجاب سیمه یی دختیځ افغانستان په گډون دایرانیا نــو نه بیرته ونیوله او د پښوانی بهیره په ښار کی یی چی دجیلم درود پــه غاړه یی موقعیت درلود خپله قرار گاه جوړه کړه، خو د بی تدبیری په سبب له رعیت نه په تنگ او ناچاره قنوج ته ولاړ او هلته مــړ شو.

---

*تر بکرما جیتی سنی څلور سوه کاله پخوا له ٤٥۷ قم سره برابریږی اما دزردشت او گشتاسپ زمانه تردی ډیره وړاندی ده. (رشاد)

# دلوی سکندر یرغل

تر کیدراج وروسته دغه هیواد په ملوک الطوایفی ډول اداره کیده او په مختلفو ریاستونو ویشل‌شوی و، لکه چی د بکرام یا پیښور په سیمه کی یو ریاست او په سترام یــــا بنو کی‌بیل راجاوه راولپنډی‌دضلعی په توپ مانیا له لی چی‌په یو نانی کتابونو کی‌یی نوم تاکسیل لیکـــل شوی دی ، یو قوی ریاست موجودؤ. په همدی ډول په کشمیر او نـــورو شاو خوا سیمو کی کوچنیو، کـــو چنیو خود مختاره راجاګانو واك درلود دکابل او کندهار حال هم همداسی‌و، خو غالباء لویدیځ افغانستان تـــش په نامه دایران‌په واکمنی‌پوری تړلی‌و.

په دی وخت کی‌د سکندر غوندی‌زړور پاچا ته‌د راتګ او فتوحاتـــو له پاره زمینه برابره وه، دغه زړورشاهنشاه‌دفیلقوس یاد مقدونی‌فیلپس زوی و، چی‌د عیسی (ع) تر زیږیدو (۳۳۳) کاله وړاندی اود حضـــرت محمد (ص) له هجرت نه (۸۷۰)کاله وړاندی او یاله اوسنی زمانی نـــه (۲۱۹۸) کاله وړاندی یواځی ددیرش‌زرو پلیو اوپنځه زره سپرو عسکرو سره دایران دسلطنت دنیولو پـــه نیت دهلسپا نټ‌له ابنا نه تیر اواسیا ته ننوت اوتر څو جګړو وروسته‌دایران دپاچا دارا ابن داراب شاه‌په بی شمیره لښکرو ، بریالی شو. له دارا سره‌دباختر صوبه‌دار نمك‌حرامی وکړه اووبی واژه او دایران تخت‌ته یی پخپل جلوس سره زیب‌اوزینت ورکړ. ددی‌ستری فتحی‌نه څلورکاله وروسته دکابل له لاری پنجاب ته لاړ.

دایرین په تاریخ کی لیکل شوېدی هغه وخت چی سکندر کابل ته ورسیده نو هغه خپل پوځونه په دوو ډلو وویشل ،یوه ډله یی دپېښور په خوا ولیږله چی داټك یا نیلاب پـه لاره دسند له رود نه تیر شـول ، دویمه ډله یی له ځان سره ملګری او .کابل، کونړ، باجوړ، سـوات او بونیر یی‌فتح کړل اود سند تر رودپوری په هغو سختو او صعب‌العبورو لارو راغی،که څه هم‌دی په‌لاره‌کی له ډیرو ستونزو او ربړونو سـره مخامخ شو خودلوټ له لاری بی‌شمیره‌مالونه دده دلښکرو لاس‌ته ورغلل. په هغه وخت کی ددغه ځای ځارویودومره ښه اعلا جنسیت لاره چـی سکندر ددغو ځارو یو نسل خپل هیوادته ولیږه، خو اوس دهغه ډول‌ځارویو نسل هم نه دی پاتی.

کله چی سکندر دمهابڼ غره تـه چی په یونانی تاریخونو کی یی‌دارنس دغره په نوم لیکلی شوی، ور سیـده‌نو هلته یی یوه مضبوطه کلا فتح‌کړه، ددی کلاد موقعیت په باب د مورخینو تر مینځ دنظر اختلا فونه موجوددی.

ځینی وایی چی اټك ته مخامخ دکیدړ کلی پر غره باندی واقع وه، خوځینی یی موقعیت دمهابڼ په غره کی بولی،خو مؤلف وروستی قول تائیدوی،که‌ څه هم دهغه وخت او اوسنی وخـت‌دغرونو اوسیمو نومونه بالکل‌مطابقت نلری ،خودسکندر د سفر ذکر چی‌یوڅه په یونانی تاریخونو کی لیکل‌شوی دی له هغو نه پورتنی قول غالباًصحیح ښکاری، داسی اټکل کیږی‌چی په هغه وخت کی به ددغو ځایونوپه شاو خوا کی دبید مذهب پیروان اوسیدل، خو بودایی مذهب هم‌دخپریدو په حال کی‌و. داځکه چی تر دغه وخت دوه سوه کاله وړاندی‌ د بودایی‌مذهب بانی مړ شوی و.

لنډه داچی دسکندر دبخت ستوری‌مخ په ځلیدو واو اکثر راجاګان یی ایل کړل په تیره بیا دراولپنډی دضلعی دتکسیلا راجا په ډیر شوق‌او مینه سکندر اودهغه لښکری راوبللی،یواازی سکندر دقنوج دراجا پورس سره چی په سکندر نامه کی یی‌نوم‌فور لیکل شوی دی جګړه وکړه،کله چی سکندر په هغه باندی بریالی‌شونو د خپل عالی همت په وجه یـی پورس د پخوا په شان پخپل سلطنت‌پریښود . سکندر تر ستلج پوری‌ټول پنجاب پخپل واك‌کی راوست اوبیرته ستون شو او پدغه وخت کی یی‌خپل پوځونه په دریو ډلو وویشل. اوپه‌دریو مختلفو لارو باندی بیرته ستا نه شول. دا عالی همته پاچا دنوروهمو چارو د تر سره کولو نیت هم کړی و، خو مرګ ده ته مهلت ورنکړاو دځوانی په وخت کی د (۳۳) کالو په عمر د بابل په ښار کی دتبی له کبله مړ او د هغه ټول پلانونه دده د مړینی‌سره یوځای له مینځه ولاړل.

# د یونانیانو د تسلط بیان

لوی سکندر د افغانستان هیوادچی په هغه وخت کی د هند یانوله خوا یالهیك دیس او د یونانیانـــو لخوا بکتر یا بلل کیده ونیوه او دلته یی یو یونانی امیر صوبدار وټاکه. د سکندر تر مړینی وروسته دده دا امراوو ترمینځ تریوی مودی پـوری جګړی او ستونزی روانی وی.

د مسیح تر زیږیدو دری سوه دولس کاله وړاندی کله چی دغه جګړی پای ته ورسیدلی نو په شام کـــی یو نانی سلوکس پاچا وه چی افغانستان هم د هغه د قلمرو یوه برخه وه. دی دشام نه افغانستان ته راغی او ددغه ځای ښه انتظام یی وکړ. اوله هندی لاری دهند دواکمن راجا چندر ګپت ملاقات ته ورغی چی هغه خپلــه لورده ته ورکړی وه. افغانستان د عیسی (ع) له زیږیدو نــه تر دوه سوه پنځوس کاله وړانـدی پوری د سلوکس داولادی په لاس کی و. کله چی د هغه اولاده په خپلو منځو کی بی اتفاقه شوه او په جګړو یی لاس پوری کړ نو په دغه وخت کی تهویو دوتس ددغه ځای خـــو دمختاره واکمن شو. چی تر هغــــه

وروسته یې زوی دده په نوم سره دافغانستان وارث و، خو هغه د شام دامیر یو تهیله یمس له خوا معزول او په خپله یې قدرت تر لاسه کی. په دی تریخ کی د سلو کس اولادی پخپلو مینځو کی سره سوله وکړه. تر هغه وروسته دشام پاچا لوی انتی اکس د لو یو پوځونو سره افغانستان ته راغی او د یو تهیله یمس په پوځو نو یی بریا لیتوب تر لاسه کړ. خو هغه یې دیخوا په شان په تخت برینبود او پخپله بیرته ستون شو.

تر یو تهیله یمس وروسته دهغه زوی د یمترس قدرت تر لاسه کی او هغه لویدیځ خواته دایران دخاوری زیاته برخه په خپله مقبوضه سیمی یعنی افغا نستان کی شامله کړه او ختیځ ته دسند دملك ختیځی برخی هم دده په لاس کی وی.

په پای کی دیو کرمیدس په نوم امیر منځ ته راغی او د یمترس یی معزول او پخپله یی ځای ونیوه، دده په وخت کی دبکتریا یا دافغا نستان هیواد ډیر پرمختك وکړ. دهغه نا پوه زوی چی دخپل پلار هم نومی و خپل پلار وواژه دده په وخت کی دافغا نستان لوه برخه دهغه په لاك کی پاتی شوه. او پاتی سیمی دشاو خوا حکامو له خوا ونیول شوی. دیونا نیانو دواکمنی ددوری سکی اوس هم ددغه ملك په ځینو ځایونو کی ډیری تر لاسه کیږی. چی داکثر وسکو په یوه خوا باندی دآسن تصویر او په بله خوایی د پاچاانځور او یونانی حروف تر سترګو کیږی.

داسی ډیری سکی دسند د رود په لوید یځو څنډو کی دپخوا نیو وختونو او زړو ودانیو نه تر لاسه شوی دی او څرګنده چی یونا نیان هم دهند وانو په شان بت پرسته وو نو له دی کبله داسی اټکل کیدای شی چی ډیر زر به پخپلو مینځو کی سره ګډشوی وی.

مسلما نانو تر فتحی د مخه هغه خلك چی په دغه ملك کی اوسیدل هغوی تر خپل تسلط وروسته دسرو کافرو اوسیاپوشو کافرو په نوم یادول، چی له هغونه اوس هم د افغا نستان په شمالی غرونو کی په دغه نوم لوی قوم اوسیږی چی دهغوی په باب غالب ګومان دادی چی دوی به دیونانیانو له نسل نه وی.

# دسکهتین (سهتین) یاتاتاریانو تسلط

تر یو نانیانو یاگریکو باکتریز ینوروسته پر افغانستان باندی تر څه مودی پوری تاتار یا نو هم قبضه درلوده. ددوی دتسلط څرنگوالی داسی دی، هغه وخت چی دبکتریین کور نی دزوال په خوا روانه وه. نو په دغه وخت کی اسکتهین دتاتار اوبخارا له خوا راغلل او دغه سیمه یی ونیوله چی دهغوی دوخت مضروبی سکی په دی سیمه کی ډیری تر لاسه شوی دی چی ددغو سکو په یوه خوا باندی دیوه ولاړ سړی انځور دی چی اوږده تاتاری توپی یی په سر ده. خو ددی سکونه پرته چی له هغوی نه ددوی دنوم پته څرگندیږی، ددغه قوم مفصل تاریخ لاس ته رانه غی خو داسی، بریښی چی دوی بت پرسته وو.

داسی اټکل کیږی چی دگهکړ قوم چی ډیر شمیر یی د غزنوی سلطان محمود او د غوری سلطان شهاب الدین دواکمنیو په وخت کی د سند ساگر په دوآبه کی میشته وو، ددغه تاتاری قوم له نسل نه به وی ځکه په تاریخ فرشته کی چی دهغه وخت دگهکړو او ددوی دمذهب اورواجو په باب څه لیکل شوی دی نو هغه دپخوا نیو جاهلو تاتاریانو له رواجو نو سره ډیر ورته والی لری. داسی ښکاری چی ددغه قوم خلک هم ډیر زر د یونانیانو او هندوانو سره گډ شوی دی او داسلامی پاچایانو ډیر غلو نو په وخت کی ددغه قوم څخه هغه چاچی داسلام دین نه دی منلی اکثراء وژل شوی او یا جلا وطنه شوی او په غرونو کی میشته شویدی.

تر هغی وروسته هم تاتاریانو څو ځله پردغه ملك باندی یرغلونه کړی چی د هغو له جملی نه د چنگیز خان حمله ډیره مشهوره ده.

# اردشیر بابکان

کله چی په افغانستان لی ددویم یو کرنیدس د بدنیتی او نالایقی په وجه بی انتظامی را مینځ ته شوه په همدی دول دایران سلطنت د اشکانیا نو د واکمنی په پای کی دروم د جګړی په سبب دومره ضعیفه شوی وه چی خو تنه ضوبداران خود مختاره شوی وو ، دغه دوری ته دملوك الطوا یفی دوره وایی :

په دغه وخت کی په کابل کی بابك نومی صوبدار و چی دهغه له لور نه ددریم ساسانی زوی اردشیر بابکان وزیږیده *.
دغه زړور ځوان په (۲۲۶) غیسوی کال د تهرا ن پاچا اردوان وواژ ه ، او په خپله یی دسلطنت واګی ترلاسه کړی .

---

* بابك دپارس صوبه دارو، په «کار نامك ار تخشبتری پا پکا ن» کی راغلی دی :

پاپك مرز بان و شتر داری پارس بوت
ترجمه بابك دپارس مرزبان او شهر یارو
(رشاد)

دی دفارس دواکمنانو نه دهغی‌کور نی بنسټ ایښود و نکی و چی ساسا نیان یی بو لی. هغه تو لی‌سوبی فتح اوپخپله واکمنی کی یی شاملی کړی او کابل یعنی لوید یځ‌افغا نستا ن دهغه په لاس کی ؤخو په ختیځو برخو کی د ده دسلطنت او وا کمنی کو م ثبوت لاس ته نه‌دی راغلی .

## بهرام گور :

دی دارد شیر نه خلور پښتــه‌ورو سته په (٤٢٠) عیسو ی کال‌د ایرا ن په تخت کښینا ست خوده‌په ټول افغا نستا ن تش‌پنا مه قبضــه وکړه او دسند د رود پور ی یــی‌خپل حدود پراخه کړل خو تر هغـه ورو سته دغه هیواد د قباد تـــرواکمنی پور ی دایرا نیا نـــو لــه لاس نه ووت . او خود مختاره و .

## نو شیر وا ن :

نو شیر وان بن قباد چی دآسیـا په پاچا یانو کی په عدل سره‌شهرت لری په (٥٣١) عیسو ی کال دایران‌په تخت کښینا ست‌او افغا نستان‌یی بیا ایل کړاو دخپلی وا کمنی حدودوته یی ختیځ خوا ته د سند تـــر روده پور ی پرا خوا لی ورکړ .

هغه دبلو چستا ن په خلکو باندی‌چی مشهور غله وو یر غل وکـړ او هغوی یی تباه کړل .

## هر مـــز :

تر نو شیروا ن ورو سته‌د هغه‌زوی هر مز پا چا شو خو په ختیځ افغا نستان د هر مز او خسرو پرویزدوا کمنیو ثبو ت د ډیرو هڅـــــو سره سره تر لاسه نشو.

## یزد گردیا یزد جورد :

تر شیرو په وروسته یـزد گردابن شهر یار به (٦٣٢) عیـسو ی کال دایرا ن پاچا شو ، دی ډیر تیټ‌او دون همته سړی ؤ . دده پــــه وخت کی اکثره صو بدا ران یاغیان‌شول لکه چی په افغا نستا ن‌کی‌هم همدا حال و، خو داسمه معلو مــه نه ده چی په هغه وخت کی به پــه لو یدیځ او ختیځ افغا نستان کــی‌څوك حا کمان وو ، خو غا لبا هنـد وانو په ختیځو برخه کی په خـــودمختاره ډول ژوند کاوه ، او ددغــی

بر خی عمو ما حالت همدا ســــــی‌دی هغه وخت چی دایرا ن وا کمنان دقدر ت خاو ندان او زور ورو و،نودغه سیمه ددوی‌په لاس کی‌وه،اوکله به‌ چی دهندوستان کوم واکمن یا دپنجا ب کوم را جازو رتر لا سه کړ

نو دغه ملك به يی پخپله قبضه کی‌راو ستاو کله به‌چی دد ی دواړو خواو کی فاتح پیدا نه شو نو ددغه ځای واکمنانو به پخپله دد غه ځای وا. کی په لاس کی نیولی .

لنډه دا چی دایرا ن پاچا یزدگرددااسلام د سپه سالار سعد بن وقاص له خوا د دو یم خلیفه حضر ت‌عمر(رض) دخلا فت په وخت کی په شلم هجری کال چی له هغه وخت نـــــه (۱۲۶۰) کا له تیر شوي دی،دقادسیی او نهاوند په خولویو جگـړوکی مات کړی شو. یزد گردد مروی په شاو خوا کی مړ شو او په‌ایران‌باند ی اسلا می فا تحینو قبضـــــه ټینګه کړه .

# دوهم فصل

## داسلام له ظهور نه تر نن پورې :

په (۳۱) هجري کال يعني ددريم خليفه حضرت عثمان (رض) ابن عفان په وخت کې عبدالله ابن عامر چې دده ، سپه سالار احنف نو ميده دخراسان دنيولو له پاره ديوه زړور لښکر سره و ټاکل شو . هغه په ډيره لږه موده کې هرات ، باد غيس ، غور ، نيشاپور ، بلخ، طوس او نور فتح او په دغو ځايونو کې يې داسلام د ين خپور کړ .او په هر ځای کې يې مسلمانان حاکمان وټاکل .هغه وخت چې عبدالله دحج په نيت بيرته عربستان ته ستون شو ، نودعجم وامير قارن په (۳۳) هجري کال شلو ينبت زره پوځو نه دهرات،غور او نورو ځايو نو نه راټول کړل اوداعرابو نه ئې دخپلې آزادۍ دبيرته اخستلو په منظور دبغاوت جنډه ، او چته کړه .

## عبدالله خازم:

کله چی عبدالله بن خازم په ډیره چټکتیا اسلامی پوځونه را ټول کړل نو قارن ته یی ماته ورکړه. ددی خدمت په بدل کی هغه ته دټول خراسان صوبداری ور کړل شوه . دی ډیر عادل او زړور سړی و، خو تر خورا لیری مودی پوری دخراسان حاکم پاتی شو چی په (٤٤) هجری کال لزیاد بن امیه دمعاویه بن سفیان له خواد خراسان او بصری والی شو .

## عبدالرحمن بن سمره :

هغه وخت چی زیاد بن امیه دخراسان او بصری والی شو نو له نن ورځی نه دوه لس سوه شپږ دیرش کاله وړاندی عبدالرحمن بن سمره دزیاد د حکم سره سم دکابل او افغانستان لویدیځ خوا ته پوځونه راولیږل اودغه ځای نه یی ونیول په هغه وخت کی مهاب بن ابی سفره چی دعرب دلوړ وامراء و شخصیتونو ګنل کیده کابل ته راغی او له هغه ځایه د پیښور په لاره په ختیځ افغانستان اود سند سا ګنو په دوه آبه کی یی دخپل دین له مخالفینو سره جهاد وکړ.

دی لومړی شخص دی چی په دغه ځای کی یی د اسلام ددین بنسټ کیښود ، خو دغه زړور صحابی دختیځ افغانستان دنیو لو او دوامداری قبضی پر ته ډیر خلک ونیول او دمریانو په ډول یی له ځان سره بوتلل او بیرته ستون شو.

کله چی زیاد بن امیه تبدیل شو نو سلم دخراسان صوبه دارو ټاکل شو چی دنو موړی له خوا ابو عبیده بن زیاد دکابل حاکم وټاکل شو، دی ډیر زړه سوانده او نرم مزاجه سړی و په (۷۲) هجری کال هغه وخت چی دکابل خلکو په بغاوت لاس پوری کړ نو خپل حاکم یی بندی کړ.

## طلحه بن عبدالله :

هغه وخت چی ابو عبیده بن زیاد دکابل دخلکو لخوا ونیول شو نو دخراسان دصوبه دار لخوا طلحه بن عبدالله کابل ته واستول شو . او دکابل له خلکو ته یی ابو عبیده په پنځو لکو درمو باندی واخیست ، کله چی هغه له بند نه خلاص شو، په

دغه وخت کی طلحه دهــرات اوغوردلښکر و په ملګر تیا کا بل قهـراء او جبراء فتح کړ او دخپلی خوا نــه یی خالد بن عبدا لله چی دخا لــد بن ولیدقریشی له نسل نه و* د کابل‌حا کم مقرر کړ، کله چی دغــــه حا کم دخرا سان دصو به دار لخـوامتهم او معزول شونو په دغه وخـــت کی عر بستان ته تګ ورته ګــران‌ښکاره شو اود خپلی کور نـــی سره په زرمت کی میشته شو چـــی بنګښن دد غه سړ ی له نســـل نه دی.

## ولـــــید :

دمروان د لمسی خلیفه ولید بـن‌عبدا لملك دخلا فت په وخت کـــی حجاج بن یو سف ثقفی دخرا ســان‌ بدار مقرر شو. دی ډیر مد بـــر خو ظالم سړی و، دده دخلا فت پـه‌وخت کی محمــــد بن‌قاسم چی ځـوان سپه سالار اود بصری او خرا ســن‌دصو بدار حجاج وراره ودشپږ زره لښکر وپه ملګر تیا په (۷۰۵)عیسوی‌کال په سند باندی حمله و کــړ ه اود ګجرات او سند دوا لی را جا د اهر سره یی خو جګړی وکړی او پــه ورو ستی جګړی کی یی نو مــو ړی‌را جا ته ماته ورکړه اوراجاو و ژ ل شو . دغه با عزمه سردار ملتـــان‌اود افغا نستان دختیځو برخو جنو بی سیمی هم ونیو لی خو غالباء دما لګی‌دکان دغره لړی نه شما لی سیموته دهغه دتلو ثبوت لاس ته نه د ی‌را غلـــی .

لنډه دا چی داموو یا نو او عبا سیانود خلا فتو نو په وخت کی هــــم دافغا نستان لو ید یځی بر خی‌ددوی‌تر لاس لاندی وی، خو په ختیځــه برخه باندی دهغوی ددا یمی واکمنی‌کوم ثبوت نشته ، البته ددوی سردا ران دپو ځو نو په مشری دلتـــــه‌را تلل او لوټ به یی کاوه ، کلــه چی عبا سی خلیفه مامون بن ها رون‌الر شید دافغا نستان په لاری پــه هندو ستان یر غل وکړ او درا جپو تانه له سر دارا نو نه یی ما تـــه

---

* خا لد بن عبدا لله بن یز یــد لقسری دعر بو په «بجیله» قبیلـــی کی دقسر بن عبقر له او لادی څخه و،ددغه خالدنیکه یزیدد خالدبن‌و لید دزما نی سړی ودحضرت محمــــــدصلی الـلـه علیه وسلم پـــه صحبت مشرف سوی و ـ خالــد بـن لید بن‌مغیره ( ۲۱هـ قمړ)له مخزو ـ می قر یشو څخه دی، سیف الـلـه‌لقب یی و، خالد بن عبدا لــلــه القسری دخا لد بن ولید له اولاد ی‌څخه نشی کید ای . ( رشــــاد )

وخوړه* نو بیا بیرته بغداد ته ستون شو، چی تر هغه وروسته دعبا سیانو خلافت مخ په زوال شو، او د ملك اکثر وصو بدار انو د هغــــوی اطاعت پریښود ، یواځی بغداد او دهغو شا وخوا سیمی دبغداد د خلیفه په لاس کی پا تی شوی.

## سامانی اسمعیل :

په هغو صو بدارانو کی چی د بغداد دخلیفه له اطاعت نه یی غاړه غړولی وه یوهم سامانی شاه اسمعیل و، دی چی دخراسان او ماوراءالنهرصو بدارو په (۲۷۹) هجری کال کی چی لـــــه (۸۹۲) عیسوی کال سره سمـــون لری کابل ، کندهار، زابل اوغز نی یی ونیول او بخارایی خپل دارالخلا فت وټاکه اوخپل ځان ته یی د پاچـــا لقب ورکړ . دغه کورنی چی دساما ــ نیانو په نامه سره یاد یږی تر نوی ۹۰) کلو نـــو پوری په لو ید یځ افغا نستان، پاچایی وکړه . په د غه وخت کی دافغانستا ن په ختیځو برخو باندی دلاهور راجا قبضه در لوده .

## الپتگین :

دی دسامانیانو د ځلورم وا کمــن عبدا لملك له خوا دخرا سان حاکـــم وټاکل شو کله چی دبخارا پاچا مـــړشو نودده نه یو کوچنی زوی دمنصو ر په نامه پاتی شو. دخراسان امرا و ، لپتگین ته چی په خراسان کی ویـــو

---

*د هندوستان نامتومحقق او مورخ شبلی نعمانی (۱۳۳۲ ه.ق مړ ) په الما مو ن (۸٤ مخ) کی لیکلی دی :

«داردو ژبی په ځینو نا معتبــروتار یخو نو کی راغلی دی چی عباسی خلیفه ما مون الر شیـــــد (۱۹۸ـ۲۱۸ هق) پر خاص هندو ستان برید وکړ په څوجنگوکی راجپوتوته ماته ورکړ له ، اوپه ماتی ستون شـــو . دغه مطلب په معتبرو تاریخو نو کی نه دی راغلی، بلا ذری (۲۷۹ ه. قمړ) په فتوح البلدان کی فقط دومــــره راوړی دی افضل بن هامان د سندان سیمه ونیوله او یو پیل یی لــــه فتحنامی سره مامون الر شید تــه ورو لیږه او په سندان کی یوجوماتهم ودان کړ (وگ ۲٤٦ مخ)ـ سندان نه دی معلوم چیری واقع واو او س څه نو میږی ؟

سندان هر چیری چی وی خــودراجپو تو له لاسه دما مون الر شیـــد ماته دکوم هندو مصنف دخیتی خبری دی چی هیڅ اصل نه لری .»

په ۲۰٤ هق مامون الر شیـــدله مروی څخه دمشهد (طوس) پرلار بغداد ته ولاړ ـ مامون دافغا نستا نخاوری ته هیڅ نه دی راغلی (رشاد)

لیك واستاوه اوپه هغه کی پـــی دمنصور دتخت کښیناستو په باب دده نظر وغوښت الپتگین په ځواب کـــی ولیکل چی منصور نړی ځوان او دسلطنت ورنه دی نوځکه باید دعبدالملـــك وروو پاچاشی ، خو دده د صـــلاح او مشوری تر رسید لو دمخه منصـــور پاچا شوی و کله چی منصور د غـــه خبر واریده ناراضه شواو الپتگیـــن یی وغوښت، * خوځرنگه چی الپتگین ددغه امراجراء د ځان له پاره خطـــرگانه نوځکه له تلو یی انکار و کـــړ . دبخارا پاچا دده ذ تنبیه کولو له پاره لښکری راولیږلی ، خو الپتگین ددوو جگړو په ترڅ کی په شاهی لښکـــــرو باندی بریالی شواو درا تلو نکی له پاره یی دبخاراله پاچا سره جگـړ دمناسبه ونه بلله اوپه ( ٩٦١ )عیسوی کال کی چی د (٣٥١) هجری کال سره سمون خوری خود مختاره شو او پـه غزنی کی یی د نوی داراسلطنت ا و اچاهی اعلان وکړ . ده تر پنځلـــس کلونو پوری په لویدیځ افغا نستا ن باندی حکومت وکړ اوپه ( ٣٦٥ )هجری کال کی چی د (٩٧٥) عیسوی کال سره سمون خوری مړ شو . **

## ابو اسحاق ابن الپتگین :

دالپتگین ترمړینی وروسته یی ځوی ابو اسحاق دغزنی په تخت با نـدی باند ی کیناست هغه دخرا سان پـــه بیلو لو سره منصور ته خپل زورور و ښود . ده تردوو کلولو وروستـــه ځوانی په عمر له دی نړی نه سترگی پټی کړی . ***

---

* ځینی نور کتابونه وایی :الپتگین دعبدالملك د زوی پر خواو ، په دی باب د تعلقیاتو په برخه کی تفصیـــل وگوری ( رشاد )

** الپ تگین د ٣٥٢ هـ ق کا ل دبرات په شلمه ( ١٣ ستمبر ٩٦٣ ع) مړدی ــ دده زوی ابو اسحاق ابراهیم د ٣٥٥ هـ ق کال د میانی د میاشتی په پنځه ویشتمه (١٢ دسمبر ٩٦٦ ع)مړشوی دی .

دابواسحاق ابراهیم دپاچهی دوره د ری کاله و دری میاشتی و پنځه ورځی وه (الپتگین پنځه لس کاله پاچهی نه د، کړی (رشاد) .

*** دالپتگین دزوی ابواسحاق ابراهیم وسبکتگین ترمنځ نه کاله بلکاتگیـن اوتر هغه وروسته تقریباً دوه کالـه ابری تگین دغزنی پاچهی کړیده، ناصرــ الدین سبکتگین د ٣٦٦ هـ ق کـــال برات په اوه ویشتمه (٢٠ اپریـــل ٩٧٧ ع) دغزنی پاچا شوی دی.رشا د

## سبکتگین :

دابو اسحاق تر مړینی وروستــــه دسبکتګین نه پرته بل هیڅ شخــص دسلطنت حقدار نه وو . سبکتګین پا اصل کی یو ایرانی شهزاده وچـــی دزمانی او روز ګار د ګردش په سبـب دافلاس په حال کی دغزنی دپاچاالپتګین خدمت ته راوستل شو ی‌واو کله چی‌نوموړی پاچاد هغه لیاقت ولیدهغه یی واخیست .نوموړی دخپل زړه ورتوب،پوهی اوښه نیت په سبب ډیر ژر د ترقی لوړو پړاوو نوته ورسیده ا و دالپتګین سپه سالار شواو په دغـــه رتبه کی‌نوموړی تردی حده نومیا لی‌شو چی ان‌تر ترکستان اوهندوستا ن پوری یی آوازی خپری شوی وی نـوپه دغه وخت کی‌ده دالپتګین لورځانته نکاح کړه . اود ټولو امراو په مشورو اتفاق نظر سره په (۹۷۷) عیسوی کال دغزنی په تخت کښیناست .

نوموړی د (۹۷۸) عیسوی کــا لد هندو ستان په خوا یرغل وکـــړ او دپنجاب دملك څو کلاوی یی ونیو لی‌اوپه اکثرو ځایونو کی‌یی جوما تو نه جوړ کړل اوپخپله دلوټ له ډیر مال‌سره غزنی ته راستون شو .په‌د غه وخت کی دپنجاب راجا جیپال‌داشتپا لزوی وچی دبرهمن په‌قوم پوری یـی اړه‌لرله ، دسر هند یا انبالی نـــه پولی ترپیښور ه پوری په اوږدو او د کشمیر نه تر ملتانه پوری په یساردده محروسه ملك ګڼل کیده یعنـــی د افغانستان ختیځه برخه دده ترلاس‌لاندی وه .

کله چی نوموړی راجا دسبکتګیـن‌یرغل ولیده نویو لوی لښکر یـــــی راټول کړ اوله پا یتخت یعنی لا هو رڅ د افغانستان په خوا را روان شو، له بلی خوا امیر ناصر الدین سبکتګین‌دخپل زړور پوځ‌سره سرحد ته دهغه مخی ته ورغی .

او دری ورځی دد واړو لښکروترمنځ جګړه روانه وه او سلطان محمـــو د چی په‌دغه وخت‌کی‌د خپل پلاردلښکرو‌شراو سردار وسره له دی چی ډیـــر ځوان اوبی تجربه و په دغه جګړه‌کی‌یی ډیره میړانه وښوده او پـــه ډیره چالاکی سره وجنګیده ، په پای‌کی راجا جیپال ته خپل لښکر کمزوری ښکاره شواو دپنځوسو پیلانو اوډیر وروپیو په ورکولو ،سره یی‌سولـــه وکړه ،اوخپل‌یومعتبر امیریی‌دسبکتګین‌سره دیرغل ، په توګه پریښود اوڅو مسلمان امیران یی دهغو شیانو دورکولو په منظور چی‌دسولی دقرار- داد په وخت کی‌منلی وول ځان سـر دلاهور ته بوتلل ، څوکله چی نوموړی

لاهور ته ورسیده دخپلو نا عا قبت اندیشه اوناپوهو مصاحبینو په مشوره یی تړون مات او مسلمان امیران یی ونیول اوغزنی ته یی ځواب ولیږه چی ترهغو چی ته زمونږ هندو ا میرخوشی نکړی مونږ به هم مسلمان امیران خوشی نکړو هغه وخت چی سبکتگین ته دغه خبر ورسیده ، نو ډیر په غصه شو اود طوفان په شان دیو بی شمیره لښکر سره دپنجاب په خوا روان شو، راجاجیپال داجمیر ،ډهلی،کالنجر او نورو راجا گانو نه مرسته وغوښتله او ځرنګه چی هغوی هم خپله بقا دپنجاب راجا ته په مرستی ورکولو کی لیدله نو ځکه یی دخزانی اولښکرو دلیږ لوپه باب یی هیڅ ځندونه کړ .

راجا جیپال په ډیره زړور تیادیولك پوځ په مشری له لاهور نه دمقابلی په منظور دپیښور په خوارا وخوځیده اودغه خونړی جګړه به غالباًد سند رود لویدیځ ته دپیښور په شاو خواکی دهندوانو اومسلمانانو تر مینځ پیښه شوی وی په دغه زمانه کی هندوانو دا تېك له سیند څخه له پوری وتلو ته ډډه نه کو له په لومړی سر کی جګړه تر ډیره وخته روانه وه اوسبکتګین له داسی یوه تاکتیك ،نه کار واخیست چی خپلی لښکر ی یی په څو برخو وویشلی او تازه دمه لښکری به یی میدان ته ورلیږلی دغه منظم تاکتیك ترهغه اندازی مؤ ثرواقع شو . چی بی نظمه مخالف پو ځ سره یی چی ډیر زیات اوبی شمیره ود ضعف آثار په دوی کی مینځ ته راغلل نو په دغه وخت کی اسلا می پوځ دخپل زړه ور قوماندان ترقیادت لاندی یو ځلی په غلیم یر غلو کړاودپنجاب راجا بی شمیره پوځ تلف شو اوپاتی پوځ ماته وخوړه ا وپه تیښته یی پیل وکړ ، ا واسلامی فاتحو لښکرو دوی دسند تر روډ پوری تعقیب کړله ډیر لوټ اومرګ یی وکړ .

تر دغی سوبی وروسته چی لـه هغه نه تر اوسه پوری اته سوه شپږ اتیا کاله تیریږی دافغا نستان ختیځه رخه دلاهور له ریاست نه بیله دسند تر رود پوری دغزنی په سلطنت پوری وتړل شوه ، اوخطبه او سکه دسبکتګین په نوم جاری شوه ، پاچا خپل یوامیردوو زرو سپرو سره په پیښور کی پریښوده او دافغانانو (پښتنو ) قومچی په دغه ځای کی یی په پوو نده دول ژوند کاوه په کراری او تسلی سره تابع کړل اودوی څه میړو نه یی له خپل ځان سره نوکران کړل ا و لښکر دمرستند ویانو په څیر یی په پیښور کی پر یښودل .

سبکتګين په ډيره پايدارۍ سره شل کاله پاچاهي وکړه او په (۹۹۷) عيسوي کال يې په ترمز کې چې په ترکستان کې موقعيت لري له فانۍ نړۍ نه سترګې پټې کړې.

د ده تر مړينې وروسته دغه کوچنى زوى اسمعيل د سلطنت داعي شو او يو لښکرالي ګولي يې راميڼخ ته کړې. خو د محمود لخوا چې حقيقتاً د سلطنت وارث و، ونيول شو.*

## سلطان محمود غزنوى:

غزنوي سلطان محمود دخپل پلار سبکتګين تر مړينې وروسته د اسمعيل فسادونه له مينځه يوړل او په (۳۸۷) هجري کال چې له (۹۹۷) عيسوي کال سره سمون لري په تخت کښيناست. دی ډير دلوړ همت او

اقبال خاوند واو په نظامي چارو کې يې ښه مهارت لاره اودغه برخې ته يې ښه توجه کړې وه. دی په محمدي(ص) شريعت ټينګ ولاړو، کله يې چې په (۱۰۰۱) عيسوي کال دلومړي ځل له پاره هند ته دتلو نيت وکړ

نو په دغه وخت کې دسلطان محمود لښکرې لس زره سپاره اود پلي پوځ شمير يې تردې هم لږ وله بلې خوا دپنجاب دوالي راجه جيپال له دولس زره تنه سپرو شل زره تنه پليوسپايانو او درې سوه جنګي پيلانو

سره دغه زورور پاچاه سره دمقابلې له پاره دسند له رود نه تير اود هغه لاره يې ونيوله دپيښور په شاو خواکې (۳۹۲) هجري کال دمحرم دمياشتې په اتمه نيټه چې د (۱۰۰۱) عيسوي کال داګست دمياشتې له

پنځمې نيټې سره سمون خوري ددواړو لښکرو ترمينځ سخته جګړه پيښه او سلطان محمود دزابلي جنګياليو په مرسته دغليم دلښکرو په نړه يرغل وکړاو بريالي توب يې په برخه شو. راجا جيپال ماته وخوړه او دخپلو دوو زامنو او شو تنو خپلوانو سرمخوندي ونيول شو اود محمود لښکرو ته دغنيمت بې شميره مالونه په لاس ورغلل، اوبريالي غزني ته ر استانه شول.

غزنوي سلطان محمود په جيپال او نور جنګي اسيرانو باندې تحرګلن (عمري) خراج او جزئي ورکول ومنل او بيا يې خوشې کړل. او هغوی څو

---

* سبکتګين د ۳۸۷ ه ق کال دبرات په مياشت (اګست ۹۹۷ع) دمدرموی په رباط کې مړشوی دی ــ دمدرمو ی رباط ذبلخ او باميان تر منځ وا قع دی په ترمز کې دسبکتګين دمرګ پېښه محمدقاسم هندو شاه استرآبادي په تاريخ فرشته کې راوړې ده ، دغې تيرو تنې حيات افغا نی ته هم لار کړېده . ( رشاد )

تنو سرکشو افغانانو ته یی چی لـه راجا جیپال سره یی سازش کړی ود مرګ‌سزا ورکړه .

کله چی جیپال له بند نه خلاص‌شو نود بی عزتی ژوند یی‌ونه مانه او خپل زړه‌ور زوی انند پال یی‌خپل ولیعهد وټاکه اوپخپله یی ځان‌ژوندی وسوزاوه، دهغه په ځای انند پـال‌دلاهور په تخت کښیناست.

غزنوی سلطان محمود په (۱۰۰٤)عیسوی کال راجا بهاتیا* او پـه (۱۰۰۵) عیسوی کال دملتان حاکـم‌ابو الفتح لودی مطیع کـــړل .

ددغو نظامی عملیاتو په وخت کی نندپال یوځل بیا په مقابلـــه لاس پوری کړ خوماته یی وکړه اود کشمیردغرونو خواته فراره شو، کله چی سلطان محمود غزنوی دتاتار له والی‌اکبر بیك خان سره له جګړی نه فارغه شونو ځلورم ځل‌یی دپسرلی په موسم‌په (۱۰۰۸) عیسوی کال چی‌د (۳۹۹) هجری کال سره سمون خوری دانند پال بغاوت نه‌د غچ اخستلو پـه منظور دیری لښکری راټولی ا و د پنجاب په خوا روان شو، انندپال هم دغه کار ته متوجه واو دمخـــه یی دډیلی ،اجمیر، قنوج، او چین‌او کالنجر را جاګانو ته یی استازی‌لیږلی‌اود مسلمانانو دمخ نیوی له پاره‌یی چمتو کړی وو، په دغه وخت کی‌ټولو هندی راجاګانو او سردا رانو سره اتفاق کړی او دبی شمیره لښکروسره‌دافغا نستان په خوا روان شول،هغه وخت چی دواړه پوځونه دپیښبور شاوخواته راورسیدل‌نو خیمی‌یی ودرولی، کله چی محموددښمن بی شمیره پوځونه چی‌ده یی قطعاء توقع نه لرله ،ولیدل نو حیران شواو دخپل عادت په خلاف‌یی ددښمن پر پوځونو یرغل ونکړ،چی دواړو پوځونو تر ځلویښت ورځـــوپوری په یو بل باندی دحملی کولـــو جرئت ونکړ، چی په دغه ترڅ کی‌دانندپال دلښکروشمیر ورځ په ورځ‌ډیریده ،د ګهکړو قوم چی په هغه وخت کی‌دسند او جیلم په دوابه کی اوسیدل دانند پال له لښکرو سره یو ځـای‌شول، ځکه چی‌په هغه وخت کی‌ددوی مذهبی عقیده داسلام په خلاف وه.

لنډه داچی ددغی جګړی له پـاره‌ټولو هند وانو داسلام دخپرێـــدو دمخنیوی له پاره داسی اتفاق وکر چی‌ان ښځو خپلی ګاڼی دلښکرود ضرورـ یاتو او نورومصارفو له پاره له لیری‌لیری ځایونو نه رالیږلی، کله چـی

---

*بهاتیه داوسنی بهاولپور په سیمه کی واقع وه. بهاول پور دپنجاب او سندهـ ترمنځ‌په پاکستان کی‌واقع‌دی. (رشاد)

محمود د دښمن کثرت او دهغو سر تیرنه ولیده نو په ډیر احتیاط سره یې د لښکرو
دقرار گاه دواړو خواوو ته خندقونه کینده او په دې خیال چې له مخامخ نه
یرغل وشي، نود غشو ویشتونکو یوه ټولگی د پاچا د حکم سره سم
وړاندې تګ وکړ او په نظامي تاکتیک سره یې علیم جنډری نه وهڅاوه او خپلې
قرار گاه ته یې وړاندې راوستل په دغه وخت کې د محمود لښکرو په ډیر
زړه ورتوب سره پر هغو یرغل وکړ خو نتیجه برعکس شوه، ځکه د ککړو
د قوم شو زره تنو ځوانانو چې سرونه او پښې یې لڅې او له دوی سره نا
منظمې وسلې وې د اسلامي لښکرو له دواړو خواو نه تیر او غزنوي سپرو
ته یې ځانونه ورسول او هرڅه په چې مخې ته ورتلل له به انسان و
یا حیوان ټول به یې له تیغ نه تیرول. ان تردې چې په دغه وخت کې تقریباً
څلور زره تنه مسلمانان شهیدان شول او گړی په گړی جګړې پراختیا
موندله او نږدې وچې سلطان محمود د ککړو دپلې پوځ د برترۍ په سبب
ځان گوښه او جګړه دهغې ورځې له پاره بس کړي خو بخت له محمود
سره دومره یاری وکړه چې ناڅاپه هغه پیل چې انند پال وربانديسپور
ود توپونو، ټوپکو د ډزو* او غشو د لگیدو له کبله وار خطاء او په شا و
تښتیده، نو هندي لښکرو فکر وکړ چې گواکې انندپال وتښتیده، نو
دوی هم په تیښته پیل وکړ او یو له بل نه مخکې کیدل او محمود د جګړې
په میدان کې بریالیتوب ترلاسه کړ د شاهي امراوو له جملې نه عبدالله
طایي د شپږ زرو تنو عربو سپرو سره او ارسلان جاذب د لس زرو ترکي او
افغاني لښکرو سره د انند پال لښکر تر دوو ورځو پورې تعقیب او د انندپال
ډیرې لښکرې ووژل شوې او د غنیمت بې شمیره مالونه د محمود بریالیو
لښکرو ته په لاس ورغلل، تر هغه وروسته نوموړی واکمن په (۴۰۲)
هجري کال کې د ملتان په حاکم داوعد بن نصیر بن حمید لودي** د بې ادبۍ له
کبله په هغه باندې یرغل وکړ او تر نیولو وروسته یې د غور په کلا
کې بندي کړ. ***

---

*د ۴۰۰ هق سنې په شا و خوا کې د توپو او ټوپکو جنگ د تأمل وړ دی ـ نه
یم خبر چې مؤلف دا مطلب له کومه کړی دی؟ (رشاد)

** دابو الفتوح داوعد لودي دپلار نوم دلته نصیر راغلی دی خو په نورو
کتابونو کې «نصر» لیکلی دی. (رشاد)

*** ابو الفتوح داوعد لودي یې د غورك په کلا کې بندي کړی و، غورك
په غور کې نه دی، په کندهار کې دی، د کندهار د ښار شمال ته پنځوس
میله لیرې واقع دی. (رشاد)

کله چې دلاهور راجا انندپال مړشو د هغه زوی په تخت کښیناست، په دغه وخت کې (٤٠٤ هجری کال) دننددونه کلا چې دبالناث په غره او د جیلم په ضلع کې یی موء قعیت درلود دسلطان محمود له خوا ونیول شوه او په (١٠٢٣) عیسوی کال یی چې د (٤١٤) هجری کال سره سمون خوری لاهور فتح او سلطان محمود دپنجاب لومړی اسلامی پاچا شو.

دجیپال لمسی داجمیر راجاته پناه یووړه، سلطان محمود په (١٠٢٤) عیسوی کال چې د (٤١٥) هجری کال سره سمون خوری ددولسم ځل له پاره دیوه لوی پوځ سره چې دوه زره تنه افغانان (پښتانه) هم په کی وو په هندوستان یرغل وکړ اود دکن په کجرات کی یی دسومنات مشهورمعبد په خپله قبضه کې راوست اودلوی بت خواته ورغی او پخپل گرز سره یی د هغه پوزه او خوله ماته کړه.

تر هغه وروسته سلطان محمود لویدیځ خراسان فتح کړ او تر دومره فتوحاتو وروسته د (١٠٣٠) عیسوی کال داپریل دمیاشتی په (٢٩) نیټه ددری شپیتو کالو په عمر مړشو. دده دواکمنی په وخت کی د افغانستان په ختیځه برخه کې د بت پرستی او برهمنی مذهب له مینځه ولاړ او داسلام دین خپور شو او هغو مشرکانو چې داسلام دین یی نه مانه یوشمیر یی ووژل شول او یو شمیر یی هم جلاوطنه شول.

## سلطان مسعود:

دسلطان محمود تر مړینی وروسته دهغه مشر زوی امیر محمد دپاچاهی دعوه وکړه* ، خوځرنګه چې مسعوددخپل پلار په وخت کی دهرات صوبدار و امیر محمد یی ونیوه او ړوند یی کړاو پخپله په تخت کښیناست. دهغه په وخت کی دغزنوی واکمنی زوال پیل شو. که څه هم هغه دخپلی واکمنی په پیل کې په هندوستان باندی په زوورتیا سره یرغلونه وکړل اودختیځ خواته یی هم یو څه بریا لیتوبونه تر لاسه کړل خو دلویدیځ لوری نه دسلجوقیانو قوم یعنی ترکمان تاتاریان مینځ ته راغلل او دی یی تر سخت فشار لاندی ونیوه همدا راز افغانانو (پښتنو) هم دسختو او صعب العبوره غرونو په دننه کی په بغاوتونو لاس پوری کړ، چې دهغوی دټکولو له پاره شهزاده ایزد یار وټاکل شو او هغه افغانان (پښتانه) یو څه تنبیه کړل.

خود سلجوقیانو قوم دومره زورتر لاسه کړچې پاچا ته په غزنی کی

*امحمد تر مسعود مشر نه و، دوی دواړه په یوه ورځ زوکړی و، دساعتونو په شمیر مسعودترمحمد مشرو. (رشاد)

پاته کیدل گران شول. نو ځکه ده دخپل پلار دوخت خزانه له ځانه سره واخیستله. او په دغه نیت چې له هندوستان نه به له ځان سره یوځونه.

ملکری او دغه مضر قوم به سمیلاری ته راولی دلاهور خواته لاړاو خپل رونډ وروو امیر محمد یې هم له ځان سره ملکری کړ، دلاری په اوږدو کې

په مارگله نومی ځای کې چې له حسن ابدال نه (۹) میله ختیځ لور تـه موقعیت لری دخپل نمک حرامه پوځ له لاسه چې د خزانی دلوټولو نیت یې لری وونیول شو او بندی کړای شو. سلطان مسعود پـه (۱۰٤۰) عیسوی کال د خپل ناپوه وراره دحکم له مخی ووژل شو.

## سلطان مودود بن مسعود:

کله چې دبلخ صوبدار مودود دخپل لار دوژل کیدوخبر واوریده نوسمدـ لاسه غزنی ته راغی اود هغه ځـای خلکو ده ته دده دمور وثی تخت مبارکی ورکړه او په تخت کښیناست، ده دامیر محمد له زامنو سره چې مشر یې دملتان او پیښور صوبدار وجګړه وکړه او بریالیتوب یې تر لاسه کړ

او بیا یې دخپل پلار له قاتلینو نه بدل واخیست. ده (۹) کاله پاچاهی وکړه مودود په (٤٤۱) هجری کال چې د (۱۰٤۹) عیسوی کال سره سمون خوری دقولنج په ناروغی اخته شـوا وله دی نړۍ نه یې سترگی پټی کړی.

## سلطان ابوالحسن علی:

د مودود تر وفات وروسته لوړی دهغه شلور کلن ځوی په تخـت کښینول شو خو تر پنځو ورځو وروسته ایرنه لیری ړی شواو دمودود وروو

ابوالحسن علی بن مسعود د (٤٤۱) هجری کال دشعبان دمیاشتی دجمعی په ورځ په تخت کښیناست، په دغه وخت کې علی بن ربیع دشاهی خزانی دوکیل میرك نه دقدرت په اندازه زراو جواهر تر لاسه او پیښور تـه وتښتیده اود افغانستان په ختیځه برخه کې یې تر ملتان نه پوری خپله قبضه ټینګه او افغانان یې دتوری په زور تابع کړل.

## سلطان عبد الرشید بن محمود:

دهماغه کال په پای کی دسلطان محمود زوی عبد الرشید چې دخپل وراره مودود دحکم له مخی په یوه کلا کی بندی کړای شوی وه ،دمودود دمړینی خبر واوریده، نو دعبدالرزاق او نورو په مرسته له زندان نـه خلاص او غزنی ته یې ځان ورساوه.

او وواندی تردی چې ابوالحسن علی ته یې دتوری زور وروبښودلای وی هغه له تخت او تاج نه گوښه شوی و. هغه وخت چې عبدالرشید

غزنی ته ورسیده دځپل پلارپه تخت کښیناست او نوشتکین حاجب ته یې
دهند دامیرالامراء منصب ورکړ اوهغه یې دلاهور صوبدار ی‌ته ولیږه تر
یوه کال وروسته نمك حرامه طغرل‌چې دشاهي امراو څخه و عبدالرشید
یې دمحمود له (۹) تنو نورو اولادونو سره وواژه، هغه وخت چې نوشتکین
حاجب ته دغه زړه بوګنونکی اوخواشینونکی‌خبرپه پیښور کې‌ورسیده
نو ډیرپه قهرشواو دهغه دتدبیرله مخې نوموړی طغرل دنوی کال‌په
لومړی ورځ کله چې په محمودی‌تخت باندې ناست و ووژل شو.

## فرخ زاد ابن مسعود:

په دغه وخت کې فرخ زاد ابن‌مسعود په کومه کلاکې بندی و نود
نوشتکین په صلاح دځپل مور وثی‌خود نوشتکین دپوهی‌او زړه ور تیاپه
پاچا پخپله یو لایق اوپوه سړی‌نه وسلطنت خاوند شو، که څه هم‌دغه
وجه دوه څله د سلجوق یعنی‌د ترکمان‌دقوم دسردارانو سره په جګړه کې
بریالی شو. کله‌چې ددریم ځل لپار دهغوی پوځ دده له لاسه ماته‌وخوړه
نوپه دغه وخت کې فرخ زادد نیك‌نیتی له مخې دسلجو قیانو بندیانو
ته‌دانعامونو په ور کولو سره‌هغوی‌خوشې کړل اود سلجوقیانو پاچا ته یې
واستول. سلجوقیان دفرخزاد له نیك نیتی نه خوشحاله اود غزنوی قیدیانو
سره یې اخلاص اوښه سلوك وکړ. فرخزاد تر شپږ کاله واکمنی‌وروسته
په (٤٥٠) هجری کال دقولنج په ناروغی مړ شو.

## سلطان ابراهیم بن مسعود :

دفرخ زاد ابن مسعود تر مړینې‌وروسته سلطان ابراهیم دپاچاهی‌په
تخت کښیناست دی ډیر پرهیزګاره‌او پا تقوی سړی و. سره له دې چې
ځوان و،خو بیا یې‌هم نفسانی غوښتنې ترپښو لاندې کړې ده په هر کال کې
دری‌میاشتې روژه نیوله هغه ځینی‌قرآن شریفو نه پخپل خط خطاطی او په
مکې شریفې‌اومدینې منورې کې یې کیښودل .

ده دځپلی واکمنی په پیل کې له سلجو قیانو سره سوله او داسې
تړون سره وکړ چې یو به د بل په کورنیو چارو کې لاس وهنه نه کوی
تردې تړون وروسته ،مسعود ثا نی‌بن سلطان ابراهیم دسلطان ملك
شاه سلجوقی دلور سره واده وکړچې ددغه وصلت په سبب ددوی‌تر
مینځ سوله لاپسې ټینګه شوه.

هغه وخت چې سلطان ابراهیم بن مسعود دلویدیځو دښمنانو نه په
دې ډول خلاصون وموند نودهندانو له مینځه وړلو او مانولو په لټه
کې شو اوددې مقصد له پاره یې‌ختیځ‌خواته پوځونه ولیږل اوپه هندوستان

کی یی تر لیری لیری ځایونو پوری دومره سو بی په نصیب شوی چـی هغه وخت پوری دده له اسلافو څخه هیڅ یوه هم دومره فتحی نه وی کړی او یولك هندوان یی دقیدیانو پـه ډول له ځان سره غزنی ته راوستل، ابراهیم بن مسعود څلویښت کالـه واکمنی وکړه اوپه (۱۰۹۸) عیسوی کال کی یی له دی نړی نه سترگـی پټی کړی.

## سلطان مسعود ثانی بن ابراهیم:

تر ابراهیم وروسته یـی زوی مسعود چی یو زړه سواند او نیـك سیرته سړی و پاچا شو، هغه دلاهور حاکم امیر تغیا تگین ته دسپه سالاری، رتبه ورکړه اوپر هندو ستان یـی یرغل وکړ. دی دگنگا له دریاب نه تیر او هرځای به یی چی نیوه نـولوټاوه به یی اوهغه وخت چی دلوټ له لاری یی ډیر مالونه ترلاسه کړل بیرته لاهور ته راستون شو.

دویم سلطان مسعود تر شپاړس کاله واکمنی وروسته چی په سوله او آرامی کی یی تیره کړه له دی نړی نه سترگی پټی کړی.

## ارسلان شاه:

دمسعود زوی ارسلان شاه د پلار له مړینی سره جوخت.خپل نور ورونه بندیان اوپه تخت کښیناست. خـو بهرام شاه و تښتیده او خپل دـاما سلطان سنجر سلجوقی ته یی پنـاه یووړه .سلطان سنجر هم له بهرام شاه سره مرسته وکړه اوپر غزنی یـی یر غل وکړ.

ارسلان شاه دوه ځله ماته وخوړه اود سلیمان دغره افغانانو (پښتنو) ته ورغی ،خودسنجر دسپاهیانو له خوا تعقیب او ونیول شو ارسلان شـاه دخپلی واکمنی په دریم کال دبهرام شاه دحکم له مخی ووژل شـــو.

## سلطان بهرام شاه:

سلطان بهرام شاه ابن مسعود بن ابراهیم ،په دغه وخت کی دیوه بی مدعی سلطنت مالك شو ،دی شو ځله دهندوستان خواته ولاړ او محمد باهلیم چی دارسلان شاه له خوا دلښکـر وسپه سالار ودبهرام په ضد په بغاوت لاس پوری کړ او تباه شو. سلطا بهرام شاه دخپل سلطنت په وروستیو وختو نو کی خپل زوم قطب الدین غـــوری دسلطنت ددعیی له کبله ووژه، کله چی سیف الدین غوری داخبر واوریده او دخپل وژل شوی ورور دغچ اخیستو له کبله یی پر غزنی باندی یرغل وکړ. بهرام شاه پخپل ځان کی دمقابلـی توان ونه لیده نو ځکه یی د افغانستان ختیځو غرونو ته پناه یـــووړه او

سیف الدین په غزني باندي پرته له کومې مقابلې قبضه تینګه کړه، هغه دغزني
په خلکو باندي اعتماد وکړ او خپل ورور علاوالدین یې دخپلو یو شمیر
پخوانیو امراءو سره ،دغور خواتـه ولیږه اوده پخپله دغزني رعیت راضي
وسو سه ښلا ی ، للـه چـــــــی رمی په موسم لی دواوری د اوریدو
په سبب دغور لاري بندي شوي نـو په دغه وخت کي بهرام شاه دغزني
دخلکو په اشاره دافغانانو (پښتنو) لښکري له ځان سره ملګري او ځان
یې دغزني نیږدی سیموته راورساوه.

دغزني خلکو په چل ول سره سیف الدین ونیوه او بهرام شاه ته یــې
وسپارلو بهرام دنا پرمی له امله سیف الدین دغور دامیرالامرا سیدمجدالدین
سره یو ځای په ډیره رسوایـــــی سره و وژل او ددی جـا هـلانـه
کار په اساس یې پخپل نوم دتل لـه پاره تور داغ ولګاوه. بهرام شاه په
(۱۱۵۲) عیسوی کال تر پنځه دیرش کاله سلطنت وروسته مړ شـــو.

## خســـرو شاه:

دبهرام شاه تر مړینې وروستـه یې زوی خسرو شاه دغزني په تخت
کښیناست په هغو ورځو کي ده ته داخبر راورسیده چي علاوالدین غوري
دخپل ورور دمرګ دغچ اخستلو په منظور له ډیرو لښکرو سره راروان
دی نو په دغه وخت کي خسرو شاه پرته له کومې مقابلې غزني پریښود
او لاهور ته ولاړ او هغه ځای یې خپل پایتخت وټاکه ،کله چي علاوالدین
غوري غزني ته راورسیده نود عام قتل حکم (یې وکړ او اکثره عالیشانه
ماڼۍ یې وسوزولې او په تورو ایرو یې بدلې کړې، هغه دسلطان محمود،
سلطان مسعود او سلطان ابراهیم دقبرونو نه پرته دسبکتګین دکورنې
دپاتې پاچاهانو قبرونه وسوزول او خپله بیرحمې یې دښځو په وړلو سره
پای ته ورسوله او خپل ځان ته یې دعلاوالدین جها نسوز لقب ورکـــړ.
خسرو شاه تر اوو کاله پاچاهۍ وروسته په لاهور کي له جهان نـه
سترګي پټې کړې.

## خســـرو ملك:

تر خسرو شاه وروسته هغـــه زوی خسرو ملك دلاهور په تخـــت
کښیناست خسرو ملك دهند وستان په ټولو هغو صوبو باندي قبضه ټینګه
کړه، چي په یوه وخت کي دهغـه داسلافو له خوا فتح شوي وې، خو

شهاب الدین محمد غوری پوازی دغزنی په نیولو چی ددغه کورنی پایتخت و اکتفاونه کړه او دپنجاب دنیولو تکل یی وکړ او په (۱۱۸۵)
عیسوی کال کی یی په پیښور باندی چی په پښوانیو کتابونو کی یی دافسر ساور ، بکرام او پرشور په نامه سره راغلی دی ،لښکری ولیږدولی او د
افغانستان ختیځی برخی یی دملتان په گډون ونیولی اودغه کال په
پای کی دلاهور خواته ولاړ خومایوس بیرته راستون شو، خو په ختیځ افغانستان او ملتان کی یی علی کرماج حاکم وټاکه.

## شهاب الدین محمد غوری :

په (۱۱۸۹ ) عیسوی کال په لاهور قبضه وکړه اودغزنوی کورنی واکمنی ته یی خاتمه ورکړه اوخسرو ملک یی دهغه دزوی ملک شاه او نوروخپلوانو
په گډون ونیول اوخپل ورور غیاث الدین یی دغورمربوطه سیمی فیروز کوه ته ولیږل اوهغوی یی دغرجستان په کلاکی بندیان کړل اودخوارزمشاه
دحادثی په وخت کی ددور اندیشنی له امله نی دوی تول ووژل شول او ددغی نیکمرغی کورنی حتی آثارهم پاتی نشول.

# دغوری کورنی بیان د(۱۱۸۵) ع کال له پیل نه تر(۱۲۰۰)ع کال پوری

ښرګنده ده چې موږ رخين دغوری کورنی پاچا هان دضحاك، تازی له نسل څخه بولی ، دا هغــــــــــــه ضحاك دی چې د جمشيـــــــد پاچا یې مات کړی اود ایران سلطنت یې غصب او قبضه یې وربانده کړی وه او بیا داصفهان کاوه اهنګر چې یو ډیر زړور سړی او وروسته سپه سالار شوی دی دخپل همت اوشجاعت له مخی له فریدون سره مرسته وکړه. کله چې فریدون په ضحاك بانــدی غلبه وموندله او ضحاك یې وواژه نو په دغه وخت کی دضحاك له اولادی نه دوه ورونه چې یو سوری اوبل سام نومیده دفریدون ملازمان وو،د ضحاك ترتباهی وروسته فریدون د هغه دنسل دعام قتل حکم وکړ، پــه دغه وخت کی دغه دوه ورونه دځان له ویری دخپلو خپلوانو سره یو ځــای فرار او په نهاوند کی میشته شول خرد توربن فریدون له خوا تعقیب کړای شول او څرنګه چې په سختو ځایونو کی میشته وو نو ځکه یــی هغوی ته کوم زیان ونشو رسولای.

دسام تر مړینی وروسته دمغـه زوی شجاع * دخپل تره سوری نه خپه او دغور غره ته لاړ اوهلته یـــی استوګنه غوره کړه او ویی ویـــل زومیند یش یعنی له هغه مه ویریږه له همدی کبله هغه ځای په زومیندیش سره مشهور شو** لنده داچی دهغه کورنی پښت په پښت دغور واکمنان وو، تر څو چی دځلورم خلیفه حضرت علی بن ابو طالب له خواشنسب نومی دغور دواکمنانو مورث اعلی یعنی لوی نیکه په کوفه کی دغور دحکمرانی فرمان تر لاسه کړ.

## عزالدین حسین:

دشنسب په اتم پښت کی دسلطان ابراهیم دغزنوی دحکمرانی دوخت سره سم عزالدین حسین چی ددغی کورنی بانی ګڼل کیږی دامیر حاجب منصب تر لاسه او په غزنوی کورنی کی یی واده وکړ او مسعود بـــن سلطان ابراهیم دخپلی واکمنی په وخت کی هغه ته دغور ملك په مورثی دول وباښه ، عزالدین حسین له ځپلی غزنوی میرمنی نه (۷) زامن لرل، په دی ترتیب لومړی فخرالدین چـــی دبامیانو حکمران ودویم قطب الدین چی دغزنوی بهـــرام شاه زوم وء .دریم شجاع الدین چی دځوانی په دوره کی مړشو، ځلورم ،ناصر الدین چی دداور دسیمی حاکم وء ،پنځـم سیف الدین، شپږم بهاو الدین سام،اووم علاو الدین حسین.

---

*دسام دزوی نوم شجاع نه و، شجاع یی صفت وچی دزړه ‌ور معنا لـری، منهـــا ج الســراج جــوز جا نی په طبقات ناصری (۱-۳۸۰ مخ) کی کښلی دی:«سام وفات کرد وپسراونیك شجاع ومبارز رسیده بود . » دغی تیر وتنی دتاریخ فرشتـــــی(٥٤مخ) له لاری حیات افغانی تـه لار کړیده. (رشاد)

** زومیندیش چی دمنهاج سراج په فکر د «از اومیندیش» مخفف دی او دمندیش نوم له هغه شخه جوړدی ځکه دخندا وړ داتسیمی وجه ده چی دجمشید دلسمی فریدون په وختو کی زړه پاړسی لانه وه زیږیدلی او (از ـاو ـ میندیش) داوسنی پاړسی کلمی دی اوبل دمندیش په نامـه ځای یوازی په غور کی نشته ،بلکه په نورستان کی هم دمندیـــــش (ممدیش ) په نامه یوځای ستته زمـا په خیال ددغو نومونو وروستی جـزء دیش دی چی دملك او وطن معنا لری(رشاد)

دحسین تر مړینې وروسته دغه اووه زامن چې دهغه ځای خلکو دوی دسبعه سیاره یاد اوو ستور و په نامه بلل په دووړ لو باندې وویشل شول یوډ بامیانو واکمنان چې دلته دهغوی ذکر ته چندان ضرورت نه لیدل کیږی، دویم دغور او غزنی واکمنان.

## قطب الدین:

دغور او غزنی دواکمنانو لومړی واکمن قطب الدین وء، ده دسلطان بهرام شاه غزنوی له لور سره وا ده کړی و، خود سلطنت دداعیی له کبله په ښکاره ډول وژل شو، چې ددغې پیښې په سبب دغوری او غزنوی کورنی ترمینځ جګړی را منځته شوی چې ددغو جګړو په نتیجه کې غزنوی کورنی تباه شوه.

## سیف الدین:

کله چې سیف الدین دخپل ورور قطب الدین دوژل کیدو خبروا وریده نو ځان ته یې دسلطان لقب ورکړاو دخپل ورور بدل یې واخیست او تر شه مودی پوری یې په غزنی باندی قبضه ټینګه کړه. په دغه وخت کی بهرام شاه په ناڅاپی ډول غزنی ته راغی او دغزنی دخلکو دچل ول په سبب یې سیف الدین ونیوه او دمجد الدین سره یې یوځای وواژه.

## بهاوالدین سام:

دی دغیاث الدین او شهاب الدین غوری پلار و. بهاو الدین سام دخپل ورور دبدل او غچ اخیستلو په منظور دلښکر په راټولولو بوخت وچې مرګ ده ته دده دخیالاتو دترسره کولو مهلت ورنکړ، او له جهان نه یې سترګی پټی کړی.

## علاو الدین حسین:

تر بهاوالدین سام وروسته علاوءالدین چې په جهان سوز سره ملقب و دغزنی، کندهار او ګرمسیر سیمی فتح کړی او دغزنی تر ورانیدو وروسته یې دامفتوحه سیمی خپل وراره غیاث الدین ته وسپارلی او په خپله بیرته غور ته ستون شو.

ترشه مودی وروسته دخپلو وریرونو غیاث الدین او شهاب الدین نه په ویره کی شو او دواړه یې د جرجستان په کلاء کی بندیان کړل او په خپله په یوه جګړه کې د سلطان سنجر سلجوقی دسپاهیا نو له خوا ونیول شو، خو سنجر په هغه باندی رحم وکړ او دپخوا په شان یې خپلی مقبو ضه سیمی بیرته ورکړی او خوشې یې کړ. تردی پیښې وروسته ده ډیره موده

ژوند ونکړ په پای کې په (۵۵۱) هجري کال مړاو له فاني نړۍ ئه يې ستر ګې پټې کړې.

### سيف الدين:

دی دعلاوالدين جهانسوز زوی وچې دخپل پلار تر مړينې وروسته په تخت کښيناست او غياث الدين اوشهاب الدين يې خوشې کړل تر يوه کال سلطنت وروسته نوموړی دترکانو له لاسه په يوه جګړه کې ووژل شو.

### غياث الدين محمد:

کله چې دعلاوالدين جهانسوززوی سيف الدين دترکانو سره په جګړه کې ووژل شو نوپه دغه وخت کې غياث الدين محمد پاچا شو، هغه خپل ورور شهاب الدين محمد چې په حقيقت کې پاچاو سپه سالار وټاکه، غياث الدين محمد په (۵۹۹) هجري کال وفات شو.

### سلطان شهاب الدين محمد:

تر سلطان غياث الدين محمد وروسته سلطان شهاب الدين محمد پاچا شو. ده دخپلې سپه سالارۍ په وخت کې د خپلې کورنۍ دهريوه واکمن په نسبت زيات فتوحات وکړل. دی دلوړعزم خاوند اودير زړور سړی وده په (۱۱۸۹) عيسوي کال دغزنوي کورنۍ تباه اود افغانستان سلطنت يې ترلاسه کړ نوموړی په (۱۱۹۱) عيسوي کال پر هندوستان حمله وکړه اوماته يې وخوړه او دراجاپرتهي راج سره په لومړنۍ جګړه کې سخت ټپي شو خو دويم ځل دنو يو لښکرو په لګرتيا داجمير اوډيلي په راجاگانو باندې بريالی اود ختيځ هندوستان پوري سيمې يې په خپل تصرف کې راوستې اوخپل مريي قطب الدين ايبك يې په ډيلي کې پريښود قطب الدين په پوهه اوزړ ورتيا کې دخپل بادار په شان و له همدې کبله د هندوستان واکمن شو.

لنډه داچې شهاب الدين تر دغه بري وروسته بيرته غزني ته راغی اود افغا نستان او خراسان سيمه يې د خپلو خپلوانو تر منځ داسې وويشله چې تخت فيروزه کوه اوغوريې خپل وراره محمد بن غياث الدين ته ورکړ په بست، فراه، اسفراين اوګرمسير کې يې د خپل تره زوی ضياء الدين حاکم وټاکه دهرات حکومت او دهغه توابع يې خپل خوريي

ناصر الدین ته ورکړ او کابل، کندهار او پاتې افغانستان یې دغزني په دارالسلطنت پورې وتړل، له دې کبله چې ده نارینه اولاد نه درلوده نو ځکه یې پورتنی ویش عملي نه کړ.

نومړي پرسلجو قبایلو حمله وکړه خو دهغو له لاسه یې ماته وخوړه او لاهور ته لاړ په هماغه کال یې دګهکړو په قوم چې دسند ساګر په دوابه کې میشته او شخړې او فسادونه به یې رامینځ ته کول یرغل وکړ.

چې له دوی نه یې یو شمیر مسلمان کړل او اکثراء یې ووژل، او دتیراهه قوم چې دتیرا اوسیدونکي او دمسلمانانو دښمنان او مشهور غله وو د نومړي قوم نه هم هغه څوک چې مسلمانان شول هغوی ته یې امان ورکړ.

خوله ملک نه یې وشړل خو هغه چاچې داسلام دین ونه مانه هغه یې ووژل. تر دې انتظام وروسته یې په ترکستان باندې د یرغل نیت وکړ او هغه وخت چې له لاهور نه بیرته غزني ته ستنیده نود سند دریاب په ختیځه څنډه په برمهیک نومي ځای کې چې غالباً به نیلاب ته نږدې* وي دشلو تنو ګهکړو له لاسه دخوب په حال کې په چړو ووهل شو او په داسې حال کې چې دوه ویشت ټپونه یې خوړلي وو د(۶۰۲) هجري کال دشعبان دمیاشتې په دریمه نیټه چې د(۱۲۰۶) عیسوي کال سره سمون خوري شهید کړی شو او د هغه امراوو دده تابوت غزني ته یوړ. دغه شخص د غوري کورنۍ د ترقۍ باعث و چې په مرګ سره یې کورنۍ هم پای ته ورسیده.

### ملک تاج الدین یلدوز:

د شهاب الدین تر مړینې وروسته اکثرو شاهي اراکینو او امراوء سره اتفاق وکړ او محمود بن سلطان غیاث الدین یې چې د شهاب الدین وراره و له غور نه د غزني په تخت باندې د کښینا ستلو لپاره راوغوښت خو هغه د فیروز کوه او غور تخت دخپل ځان لپاره مناسب وګانه او ملک تاج الدین یلدوز ته یې چې د شهاب الدین محمد له

* دغازي سلطان شهاب الدین سام غوري رحمة الله علیه دشهادت ځای «د همیک» نومیږي او په لویدیځ پنجاب کې د جهیلم درود پر جنوبي غاړه واقع دی د راول پنډۍ ښخه چې کومه لار لاهور ته تللې ده دغه لار چې تر ګوجر خان تیره سي دد همیک نومي ځای لویدیځې خواته تیریږي. (رښتاد)

نړدی مړیا نو څخه و د مریتـــوب‌څخه د آزادی‌لیك ولیږه او د غزنی تخت‌یی هغه ته وسپاره. تاج‌الد یـــن‌یلدوز دنوموړی فرمان له مخی دغلامی نه آزاد او خپل ځان ته یی دسلطان‌لقب ورکړ او دافغا نستان دسلطنت په تخت یی تکیه وکړه. دی،وروسته دپنجاب دنیولو په نیت چی دشهاب الدین دمړینی وروسته دقطب‌الدین‌ایبك په لاس کی و لاهور ته روان شو اود غزنوی سلطان دنوم دعظمت‌او د پنجاب دحاکم دبی همتی له کبله یی په‌لاهور باندی قبضه ټینګه کړه. کله چی سلطان قطب الدین داخبر واوریده نوله ډیلی نه په ده باندی‌دیر غل‌په‌منظور راروان او تاج‌الدین یلدوز یی په‌یوه جګړه کی تیښتی‌ته مجبور کړاو په داسی سرعت‌یی تعقیب کړ چی هغه ته حتی په غزنی‌کی پاتی کیدل هم ګران کار وبریښیده او په شلوزان نومی سیمی یی چی‌دسپین غره په سویلی برخه کـــی موقعیت‌لری‌استو ګنه غوره‌او قطب‌الدین ایبك په غزنی باندی قبضـه ټینګه کړه اود شرابو په څکلـــو‌او عیشونو باندی بوخت شو دداسی غفلت اوزیات عیش‌په سبب سلطان‌تاج الدین یلدوز د سلطنت داراکینو په سلا د افغا نانو (پښتنو) اونورو‌لښکرو سره له شلوزان.نه غزنـــی ته راغی، کله چی قطب الدین دغه‌خبر واوریده نووارخطاء شوځکه کله چی په داسی نازکه مرحله کـــی‌یی د مقا بلی توان نه لاره نو ځکه دسنګ‌سوراخ (سوری تیری) پـــه‌لاره لاهور ته وتښتیده ، تر هغـه وروسته تر څه مودی پوری تاج‌الدین‌یلدوز د افغا نستان واکمن و، خـو دده دظلم او استبداد په سبب رعیت‌له ده نه خپه وو.

### سلطان محمد شاه خوارزم:

دتاج الدین یلدوز له واکمنـــی‌نه لس کاله نه و تیر شوی چـــی د خوارزم پاچا چی د مخه یی دغزنی‌سلطنت ته سترګی پټی کړی وی د یوه زړور لښکر ـره‌پر غزنی یرغل‌وکړ او تر یوی لنډی جګړی وروسته یی دغه ځای ونیوه او تاج الدیـــن‌یلدوز خپل پخوانی جاګیر یعنـــی د شلوزان سیمی ته وتښتیده اوله‌هغه ځای یی په پنجاب یرغل وکړ او هغه ځای یی ترتهانیسر پـــوری‌ونیوه ددی فتنو په اثر د ډیلی‌واکمن سلطان شمس الدین التمش تر یوی‌سختی جګړی وروسته دی ونیوه او بندی یی کړ او سلطان تاج الدین‌په دغه زندان کی له جهانه سترګی پټی کړی او افغا نستان د سنـــدتر روده پوری د خوارزم دپاچا لاس ته ورغی.

# دمغولي كورنئ دواكمنئ بيان

ددې قوم مورث (لوی نیکه) مغل خان نومیده چې دیافث بن نوح (ع) له اولادې څخه و. دمغلو دواكمنئ پیل او ددوی چټکه وده او وړاندې تګ دتاريخ يوه ډيره عجيبه پيښه ګڼل کیږي. په هغه وخت کې چې دغزنوي کورنۍ واكمنئ مخ په ځوړ تیاوه، نو په همدغه وخت کې دتاتار له ملك نه چې په پخوا زمانو کې به اسکو تهيا بلل کیده دغه جنګيالي قوم راووت چې دهغي نه په (۱۲۱۰) عیسوي کال تموز خان چې هغه ته ددغه قوم لوی پير کوکزاد چنګیزخان یعنی سترخان یا شاهنشاه لقب ورکړ، دخپلې پوهې او زړور تیا له مخې دخپل قوم، سردارشو او په ټول تاتار یې سلطه ټینګه کړه، هغه دنورو ملکونو دنیولو په منظور خپل پوځ ته دجنګي قواعدو او تاکتیکونو په ښودلو او زده کړه پیل وکړ. او هغه وخت چې دپوځ شمير یې له شپږو لکو نه واوښت نود ملکونو دنیولو تکل یې وکړ او د ختا ملك یې چې دچین په شمالي برخه کې موقعیت لري ونیو او په دې ګلت چې محمدشاه خوارزم دافغانستان او خراسان واكمن دمغولو وکیلان او څو تنه تاتاري سوداګران وژلي نو دې خواته يې هم مخه وکړه.

**چنګیز خان:**

هغه وخت چې دمغو سوداګرانو د وژل کیدو خبر چنګیز خان واوریده نو خپل پوځو نه یې راټول او دغه اخستلو له پاره د خوارزم په څوا

راروان شو او دخوارزم پاچا دخپلولښ شمیر پو ځو نو سره سرحد تـه ورغی اود هغه سره یې مقابله وکړه،ددوی تر منځه سخته جګړه پیښـه شوه چې تردیرې‌مودې پورې دجګړې لمواره خواوی سره په مساوی ډول جنګیدلې ، خو کله چې د چنګیزخان‌دحکم له مخې دمغلودپوځ یوه‌تازه‌دمه ډله چې د مرستې په منظور ساتـل‌شوې وه د غلیم د پو ځو نو په ښی اړخ یرغل وکړ. نو په دغه وخت‌کې دخوارزمیا نو مقاومت مات کړای شو خو سره له دې هم یې د شاه لـــه خوا د سپا هیا نـــو دصفو نـو پـــــه انتظا م بو خـــــت‌وو، خوزیات شمیر سپا هیـــان یې وو ژل شول ، تـــــر دې‌ما تې ور و سته سلطـــا نـ

محمد شاه خپل همت له لاسه ورکړاو تر لندو لندو جګړو وروستـه ، چنګیز خان کوچنی ځایو نه فتح‌کول‌تر څو بخارا ته نږدې شو. دبخارا محافظ چې د محمد شاه له خوا ټاکل‌شوی و دهغه د بې همتی او بې‌تدبیری په وجه دبخارا ښار چې په‌هغه وخت‌کې دټولې اسیا د علم او فرهنـــګ مرکز و دمغلو له خوا ونیول شـواو دوی په ډیرو ظلمو نواو زورزیاتی پیل وکړ.

په همدې ډول تاتار یانو دخپلې ناپوهۍ او جهالت په سبب په سمر- قند، هرات او نورو ملکو نو کـــې په لکو نو بیګناه خلك ووژل.

کله چې سلطان محمد شاه پـه ځان پسې داسې ظالم لښکر ولیده نو د ځان په وژلو سره یې له هغوی‌نه خلاصون ومونه.

## جلال الدین شاه :

تر محمد شاه وروسته دهغـــه پوه زوی جلال الدین شاه چې یو زړه‌ور سړی و د خپل پلار ځای ونیوه اوپه‌ډیر شجاعت او میړانه له چنګیزخان سره وجنګیده او نږدې و چې په جګړه‌کې بری یالیتوب تر لاسه کړی، خود هغه خپلوا نو او نږدې کسانو دهغه‌درایو په خلاف کارونه تر سره کول او دده ټدا بیر به یې نه عملي‌کول.او مغو لو به په پر له پسې ډول فتحې کولې او دیوې صوبې ترنیولو‌وروسته به یې بله صوبه نیوله، او د خپلې واکمنۍ په قلمرو کې‌به یې داخلو له خو سره له دې هـــم جلال الدین د هغوی سره په نږدې‌نږدې واټونو کې جنګیده او په پای کې دسندرو دغاړې ته چـــې دده‌دملك وروستنی برخه وه ورسیدل، دلته که څه هم د جلال الدین پوځ‌دغلیم د پوځ په پرتله لسمه برخه

هم نه و، خو د میړانی له کبله دومره لږ شمیر پوځ په ډگر کی ثابت قدمه اوټول مرگ ژوبلی له پاره چمتو شوی وو.

جلال الدین خپل ټول پوځ په یوه ځای سره راټول کړ او تر دولسو ساعتو پوری یی ددښمن دلوی پوځ په مقابل کی جگړه توده ساتلی وه. په پای کی د مغلو دپوځیوی ډلی د لښکر په ښی خوا فشار راوړ او په یوه غره باندی یی چی دخو ارز میا نو پناه گاه وه قبضه وکړه او ډیره تباهی یی را منځ ته کړه، تردی وروسته دجلال الدین سپاهیان تیت او پرك شول او هغه خپل آس دریاب ته ور لا هو کړ. جلال الدین حقیقتاً یو زړ و رپا چا وء خو له بده مرغه چی بخت او د هغه ملگرو ورسره یاری اومرسته نه کوله، لنډه دا چی د خوارزمیا نو د ماتی وروسته دسندتر رود پوری په ټول افغا نستان مغلو قبضه وکړه او له بلی خوا دفارس شمالی برخی هم د هغو لاس ته ورغلی، تردغو فتو حاتووروسته چنگیز خان دختا شهزاده خپل ولیعهد وټاکه او په (۱۲۲۷) عیسوی کال یی له نړی نه سترگی پټی کړی.

## د شیر خان یرغل :

د چنگیز خان تر مړینی وروسته یو ځل شیر خان چی د هند دواکمن سلطان محمود بن شمس الدین التمش امیرالامراءاودملتان اوسند صوبه دارو په افغا نستان باندی یرغل وکړ اودلوړی مودی له پاره یی غزنی د مغو لو له لاسه ونیوه اوخطبه او سکه یی دهند د واکمن په نوم جاری کړه خو لا یی خپله قبضه په سمه توگه نه وه ټینگه کړی، چی د چنگیز خان لمسی هلاکو خان دغه ځای بیر ته ورنه ونیوه.

## هلاکو خان :

دی دمغولی کورنی لومړنی شخص وچی د اسلام په سپیڅلی دین مشرف شو. ده د عباسی خلفاء وو له جملی نه وروستی خلیفه المعتصم بالله دبغداد له تخت لیری او د هغه سلطنت باندی یی هم خپله قبضه ټینگه کړه دهلاکو خان دلمسی ارغوان خان د واکمنی په وخت کی تیمور خان چی دافغا نستان دسترو چنگیزی امراءو څخه گڼل کیږی پر ملتان یرغل وکړ او دډیلی دواکمن غیاث الدین بلبن زوی محمدشاه شهید ته یی چی د ملتان حاکم وماته ورکړه، خو په خپله هم د تعقیب په وخت کی ووژل شو، تر هغه وروسته افغا نستان دمغولو په قبضه کی وچی د هغوی له جملی نه دغه کسان دیادولو وړ دی.

## گور گانی تیمور :

دی چی د صاحب قران خطاب لری په (۱۳۳٦) عیسوی کال دامیر تر-
منای په کور کی زیږدلی دی ، کله چی سلطنت دده لاس ته ورغی نو په
مرگ او ژوبله کی یی له چنگیزخانانه هم پښه واړوله که دده دسلطنت
تولی پیښی په مشرح ډول ولیکل
په لنډ ډول باید وویل شی چی ده د خپل لوی عزم او زړور تیا په
وجه افغانستان او ایران فتح کړل ، په اصفهان کی یی عام قتلونه وکړل.
او بغداد یی لوټ کړ. همدا راز دهدروس ملك ته هم لښکری ولیږلی
تر دغو فتحو وروسته هغه دهندوستان دنیو لو نیت وکړ او هغه وخت چی
دکابل او پیښور له لاری یی سر کښی افغا نان (پښتا نه ) وټکول هند ته
ننوت او دغه ملك یی لوټ کړ اوویی سوزاوه او په (۱۳۹۸) عیسوی کال
یی ځان ډیلی ته ورساوه او دډیلی پا چا سلطان محمود ماته وکړه او د
ډیلی کلایی تیمور ته پریښوده ،او تیموری پوځ په خپل زړه دډیلی
ښار لوټ او تر نیمایی زیات یی وسوزاوه – کله چی تیمور د ډیلی
په تخت کښینا ست نو خپل ځان یی د هند واکمن ونوماوه دی یواځی
پنځلس ورځی په ډیلی کی تم شو او د شمالی برخو په لوټولو
یی پیل وکړ.دهدمیر ته هه کلا په خاورواړو بدله کړه او له ډیرو هندی
بند یانو سره بیرته خپل دارالسلطنت سمرقند ته ستون شو ، کله چی
هغه ځای ته ورسیده تر څو فتحو وروسته یی دچین دملك خوا ته
دتگ دتیاری په نیو لو بوخت وچی اجل مهلت ورنکړ اوله دی فانی نړی
نه یی ستر گی پټی کړی .

### میرزا شاهرخ خان سعید :

د تیمور تر مرگ وروسته یی زوی شاهرخ چی د هرات صوبدارو
افغا نستان ، خراسان او سیستان سره یوځای وددغو ځایو نو واکمن
شو ، کله چی دی هم مړ شو نو په دغه وخت کی د افغا نستان په
څو سیمو کی څو تنه لوی لوی سرداران پخپل سری شول لکه چی په هرات
کی دشاهرخ زوی میرزا بایقراء او وروسی شاه حسین بایقرا حکمران
شول په کندهار کی امیر ذوالنو نحاکم و او په کابل او غزنی کی لومړی
میرزاعمر شیخ او وروسی میرزا الغ بیگ قدر ت په لاس کی درلود.

## میرزا الغ بیک :

کله چې دابو سعید میر زازوی میرزاالغ بیک دکابل په تخت کښینا ست نو دده د واکمنۍ په وخت کې دیو سفزیو قوم اودخښې نوره اولاده له کابل نه وشړل شول او د پیښور خواته لاړل . میرزاالغ بیک په (۹۰۶) ه کال وفات شو.

## میرزا عبدالرزاق :

دمیرزا الغ بیک تر مړینې وروسته یې کوچنی زوی د کابل په تخت کښینا ست او د هغو له ملازمینو نه یو تن چې زکی نو میده دیر قدرت تر لاسه کړ او د هغه د کبراو غرور نه رعا یا او امر اء دیر په تنګ شول او دی یې دلوی اختر په ورځ وواژه دده تر مرګ وروسته هم د شاهی دربار داراکینو د بې اتفا قۍ او د پا چا دعمر د لږوالی له کبله د کابل خلکو په پریشانۍ او خپګان کې ژوند کاوه .

په داسې وخت کې دامیر ذالنون کوچنی زوی محمد مقیم چې د خراسان دواکمن سلطان حسین بایقرا لخوادګرمسیر دسیمی حاکم و، دهزاره او تکدو ردلښکر ویه ملګرتیا کابل ته راغی :

میرزا عبدالرزاق په خپل ځان کې دجګړې او مقا بلې توان ونه لیده نو ځکه د لغمان سیمې افغا نانو (پښتنو) ته ورو تښتیده او په کابل باندې پخپله محمد مقیم قبضه وکړه.

## محمد مقیم :

دعبدالرزاق تر تښتیدو وروسته محمد مقیم د کابل واکې تر لاسه کړې او د مرزا الغ بیک دلور سره یې واده وکړخو خپل رعیت یې خو شحاله ونشو ساتلای.

## محمد بابر :

په هغه وخت کې چې له محمد مقیم نه خلك ناراضه وو نو محمد بابر چې په ظهیر الدین سره ملقب دی دخپل پلار تر مړینې وروسته په ۱۴۹۴ عیسوی کال چې د (۸۹۹) هجری کال سره سمون خوری په دولس کلنۍ کې د فرغانې او اندیجان په تخت کښیناست خو دشیبانی خان ازبك دتسلط او دخپلو وروڼو د بې اتفاقۍ په وجه دپوهې او هوښیارۍ اوزیار کاللو سره سره یې بیا هم ونشو کړای چې خپل دغه سلطنت وساتی او کله چې له خپل سلطنت نه نا امیده شونو دامیر محمد باقر په سلا او مشوره دافغا نستان دنیولو په نیت د هندو کش د غرونو له لرې

نه راتیراو د کابل په لوري راوخوځیده په دغه وخت کي محمد مقیم پخپل ځان کي د مقا بلي توان ونه لید ه، لو مړی یې ځان په کلا کي محصور کړ خو وروسته یې امانوغوښت او کلایې خوشی کړه او ظهیر الدین محمد بابر د افغانستان‌په تخت کښیناست او په کابل یې د هندوستان تر فتح وړاندې دوه‌ویشت‌کاله ، حکومت وکړ. چې په دغه جمله کي یې شل کاله د کندهار په جگړو کي تیر کړل چې هلته شاه بیگ ارغون او محمد مقیم تـه‌ماته ورکړه او له کندهار نه یې د هغه لاس لنډ کړل همدا راز هغه مطیع او تابع کړل او تر هغـه تر هغه ځایه چې لاس‌یې ی رسیده وکړځوله هغه د مهمندو او یوسفزو وروسته یې پاملرنه ختیځ خواته دهزاره قوم او لو یدیځ افغانستان یو سره‌ډیری‌جگړی وکړی او د باجوړ ملك یې ونیوه. او د یو سفزیو په قوم باندی یې خراج مقرر کړ او دشاه منصور یوسفزی له لور سره یې واده وکړ، تر هغه وروستـه یې دهندوستان دهغه وخت موجود لات په پام کي نیولو سره ددولت‌خان لودی په اشاره د پنځلس زرو سپرو په ملگرتیا د ډیلی سلطنت‌دنیو لو په نیت هغې خواته روان شو. له بلې خوا هم ابراهیم شاه ودی دیر لك سپرو په مشری پـه داسی حال کي چې زر پیلان هم‌ورسره‌وو په پانی پت کي د مقا بلي لـه پاره تیار او ددوی تر مینځ سختـه جگړه پیل شوه ، ابراهیم د جنگ په چل او فن نه پوهیده نو ځکه یـې‌خپل لښکر په یوه ځای کی‌دصفونو په شکل سره غونډ کړی و مگـر بابر دیوزړه ورسپه سالار پـه توگه د خپلو لښکرو قیادت کاوه‌اوهغو ته یی لارښوونه کوله او په ډیر معقولیت او هوښیارۍ سره‌ددښمن له بی شمیره عسکرو سره جنگیده ، په دغه وخت کي د مغولی‌لښکرو هغه‌دوی ډلې چې‌د «تیولقمه» په* نامه یا‌ ‌کیدلی دلښکر ددواړو خواڅخه ووتلی او ددښمن په شایی برید وکړ، کله چې ددغه برید په‌نتیجه کی د غلیم په پوځ کی گډوډی او تزلزل مینځ ته راغی نو د پوځ‌کیني او ښی خوا هم په زړه ورتیا سره په حملی پیل وکړ. په دغـه‌غم لړلي جگړه کي ابراهیم شاه د پنځو شپږو زرو خاصه سپاهیانوسره‌ووژل شو او پاتی لښکری یې چې له مرگ، څخه بـــــــچ پاتی شوی خـــــوری وری

---

*دغه کلمه د بابر نامي په پارسي ترجمه کي تو لغمه لیکلــــی ده (وگ۱۲۵مخ)

شوی او نصرت او سوبـــــــه دبابر په نصیب شوه او ځان یــې اګرې ته ورساوه په (۱۵۴۶) عیسوي کال یې دهند په دارالسطنت قبضه ټینګه او دډیلي په تخت کښیناست.

ظهیر الدین محمد بابر وروسته تر (۲۸) کلو پاچاهی چې بیلو بیلو ملکو نو کې یې وکړه په (۹۳۷) هجری یا (۱۵۳۰) عیسوی کال د پنځوس کلنی په عمر په اګره کې له فاني جهانه ولاړ اومړی یې دده د وصیته سره سم کابل ته راوړل شواو پر دغه ځای کې خاورو ته وسپارل شو.*
دی دپیر زړورا ولوړ همته پاچاو نوموړی په (۱۴۸۳) عیسوی کال کې زیږیدلی او د پلار له خوایی نسب تیمور ته او دمور له خوایی نسب چنګیز ته رسیده، په ځوانی کې یې له شرابو سره ډیره مینه لرلــه تر هغه ځایه چې له کابل څخه دباندی چې په یوه ښنګلی بڼ کې یو وړوکی ډندوکی (حوض ګی) په تیږه کی کیندلی او له ارغوانی شرابـو څخه به یې ډکاوه په دغه ځای کې به یې دعیش بزم جوړاوه او خپل یو بیت یې ددغه پلیت ډنډو کـــی پـــه غاړه کیندلی و:
نوروزنو بهار نومی دلبری خوش است
بابر به عیش کوش که عالم دوباره نیست **

مګر کله چې دهند په تخت باندې کښیناست نو دشرابو له څکلو څخه یې توبه وکړه اود سرو زرو هغه پیالی چې شراب به یې په کې څکل په نغدی پیسو بدلی او دخدای په نوم یې په غریبانو باندی وویشلی او بیا به یې ټل له شرابو څخه پرهیز کاوه.

---

*دده مقبره دکابل په ګذرګاه نومی سیمه کې په یوه بڼ کی موقعیت لری چې اوس دباغ بابر په نامه یادیږی او غالباً به داهغه بڼ وی چــې ده پخپله جوړ کړی دی.
(ژباړونکی)

** دابیت دکابل دپاچا ظهیر الدین بابر (۸۸۸-۹۳۷هق) نه دی ـــ ددی بیت ویونکی ابو القاسم بابــــر (۸۶۱ هـ.ق.مړ) دی چې دظهیرالدین بابر تر زوکړی اوه ویشت کالــه پخوا مړ شوی دی ابو القاسم بابر دګوډ تیمور کړوسی او ظهیرالدین بابر دنوموړي تیمور کوډي و.
دغی تیر وتنی نورو کتابو نــــو ته هم لار کړیده .(رشاد)

## همایون :

دبابر تر مړینې وروسته په (۱۵۳۰) عیسوی کال دده زوی همایون چې په پلار باندې ډیر ګران او پخپله هم یو پوه پاچا و دهند پر تخت کښیناست. او افغانستان دده وړور میرزا کامران ته په لاس ورغی، کله چې دورو ترمینځ نفاق مینځ ته راغی نو شیر خان پښتون چې دشیر شاه لقب یې ګټلی او دسورله قبیلې څخه و همایون له هند څخه وشاړه او د هند تخت دده لاس ته ورغی. همایون دهند ستانیانو څخه ډیر مصیبتو نه ګاللی وو او کله چې مجبور شو دسند له لارې افغانستان ته راشي نو دهغه بې مروتو او نامردو ورونو دې دلته پرې نښود. کله چې شاه طهماسب صفوی دغه خبرو اوریده نو هغه یې ایران ته وروغوښت او په اصفهان کې یې هغه دیوه میلمه په توګه وساته تر یوه کال وروسته له همایون سره نوموړي پاچا لښ زره تنه سپاره ملګرې کړل او په کندهار او کابل یې یرغل وکړ او تر ډیرو جګړو او شخړو وروسته په خپلو ناپوهو ورونو باندې بریالی شو او د هغوی سیمې یې ونیولې او (۹) کاله یې په کابل باندې پاچاهي وکړه مګر په دغه موده کې کامران هغه ته حتی دیوه لحظې ارامې اجازه هم ورنکړه او څنګه چې کامران د همایون په وژلو پسې و نو د هغه له خوا ونیول شو او ړوند کړای شو، دویم ورور یې میرزا هندال چې د همایون په نسبت وفادار و د همایون د مخالفینو سره په جګړه کې ووژل شو کله چې همایون د کورنیو جګړو څخه لږ څه آرامه شو، نو د پنځلس زروسپرویو پوځ یې برابر او په هند باندې دحملې له پاره هغې خواته وخوځیده په دغه لښکر کښې کې له نوموړي سره یو شمیر پنجابیان هم ملګرې وو او په هغه جګړه کې چې دسکندر شاه سور او دده لښکر ترمینځ پیښه شوه، همایون ته بریالیتوب وز په برخه شو او دیارلس کاله وروسته ددوهم ځل له پاره د هند په تخت کښیناست، خو یو کال وروسته په (۱۵۵٦) عیسوی کال دبام نه راولویده او له جهانه یې سترګې پټې کړې.

## جلال الدین محمد اکبر :

دهمایون تر مړینی وروسته دهغه زوی جلال الدین محمد اکبر پاچا شو . مور یی حمیده بیگم نومیدهِ اوسیده وه. * نوموړی د ۹٤۹هجری کال د رجب دمیاشتی په پنځمه یاد(۱۵٤۲) عیسوی کال د اکتوبر دمیاشتی په څوارلسمه په امرکوټ کی‌زیږیدلی ودی‌دپنجاب‌د کلا نور په بنارکی‌دهندپه تخت‌کښیناست. ته وغواړو د دغه پاچا د دوری تولی پیښی‌ولیکو نو یو لوی دفترغواړی، د افغا نستان په هکله یوازی دومره باید ولیکل شی کله‌چی دهمایون دمړینی خبر خپورشو، میرزا سلیمان دبدخشان‌والی دهندوکش له غرو نو څخه د کابل دنیولو په مقصد راواوښت مگر د کابل دحکمران منعم خان دهو شیاری او زړه ورتیا په سبب یی ونشو کړای‌چی کوم بریا لیتوب تر لاسه کړی. نو بیر ته ستون شو. کله چی بیرم خان داکبر پاچا سپه سالار له هیمون بقال سره په جګړه بوخت‌و نو په دغه وخت کی د پارس پاچا صفوی شاه طهماسب دقزلبا شانو یو لوی لښکر دسلطان حسین‌میرزا بن بهرام بن شاه اسمعیل صفوی ترقیادت لاندی د کند هار د نیو لو له پاره دغی خواته راولیږه ،سلطان حسین‌میر زا په ډیره هوښیاری‌او کوښښ سره شاه محمد کندهاری‌چی‌داکبر شاه د سلا کار بیرم خان لخوا د کندهار حکمران و مغلوب کړای‌شواو کند هار د هرات سره یو ځای او په ایران پوری وتړل شو، دکابل‌صوبه اکبر خپل ورور محمدحکیم‌میرزا ته وسپارله او منعم‌خان د هغه‌سره‌دسلا کار په توګه مقرر کړای‌شو، محمد حکیم څو ځله بغاوت وکړ خوداکبر په ذریعه وتکول شو، خواکبر دنوموړی دښه سلوک او عالی‌همت په وجه محمد حکیم میرزاوبښل

---

*حمیده بیگم سیده (دفاطمی اولاد)نه وه، په سیرالمتاء خرین (۱/۱۵۲ مخ) کی لیکلی دی حمیده بیگم دشیخ‌الا سلام احمد النا مقی الجا می (۵۳٦هـ.ق مړ)له اولادی څخه وه_په نفحا ت ا لا نس (۲۲۸مـخ کی ) شیخ‌الا سلام احمد جامی‌النامقی‌احمد جامی النامقی دجریر بن عبدالله له اولادی څخه بلل شوی دی چی د حضرت محمد «ص» د وفات په کال مسلمان شوی دی . (رشاد )

شو ، کله چی نوموړی په کابـــل کی په خپل طبیعی مرگ مړ شو نـو اکبر پاچا د هغه زامن هندوستـان‌ته وروغوښتل او دراجه بگوانداس زوی کنورمان‌سنگ‌چی دجیپوررئیس. دکابل صوبه دار وټاکل شو، په هغه وخت کی یو سړی چی جلا له نومیده، داور مړ له قوم څخه او د پیر تاریك زوی و دتیرا او خیبـر په شاو خوا کی یی ډیر پښتانـــه بی لاری کړی او په غلا لار وهلو اونورو فسادو نو یی پیل کړی او لـه سلطنت څخه یاغی شوی و، نو کنورمان سنگ ددوی غرنیو سیمو تـه لښکر ورولیږه او څینی بریالیتوبونه یی ترلاسه کړل هغه وخت دزین خان کوکه ،راجه بیربل او نورو لـو یـو امراءو تر قیادت لاندی یو لښکـر د یو سفزیو پښتنو د ټکو لو له پاره‌سوا ت، بونیر او باجوړ ته واستا وه شو، دغه پوځ دیو سفزو سیمی ته ننوت اوپه هغه ځای کی‌یی په لوټ او مرگ – ژوبلی پیل وکړ او کلـه‌چی بونیرته ور ننږدی شول یوسړی راجه بیربل ته چی د خپل وخت یوډیر مشهور او پوه انسان و او نوم یی حتی ترنن ورځـی پوری هـــم په عوامو کی دمتل په ډول اوریدل کیږی، دغه خبر ورکړ چی افغا نان(پښتا نه ) نن شپه د شبخون فکر لری از دغه لاره له‌دری څخه یوازی‌څلور کوسه دی او که چیری راجه په دغه وخت حرکت وکړی او لـه‌کوتل څخه تیر شی نو د مخالفینو د شبخون پلان به دناکامی سره مخامخ‌اوبیا به دسوات ملك نیول اسانه شی په دغه وخت کی راجا بیربـل‌سره له‌ډیری پوهی وغولیده او بی له دی چی ددغه حال دواقعیت پته‌یی ځان ته څرگنده کړی وای پـه دغه فکر چی فتحه دده په نوم تمامه شی پرته له دی چی دزین‌خان سره‌یی مشوره کړی وی پوځونه یی ترخپل‌قیادت لاندی ولیږدول، او دمرلویدو په وخت کی دملندری په نوم غرنی‌دری ته ورسیدل افغا نانو (پښتنو) په دغه غره کی ښه تیاری نیولـی‌او ځای په ځای شوی وو، نوددوی تر مینځ سخته جگړه پیښه شوه‌اوپه دغه جگړه ،کی پښتنو د غرونو له سرو څخه دوی په ډبرو ویشتل‌چی دغو ډبرو هم د گولی کار کاوه، همدا راز یی دغو تیرو او توپکـو په ذریعه شاهی لښکری په ډیر ه سختی سره وټکوالی ،کله چی شپـه راورسیده ،له یوی خوا دشپـــی تیاری او له بله پلوه دلارو سره‌نا بلدی او هم د لارو خرابوالی‌دشاهی لښکر څخه لاره ورکه کړه او غلیم دڅلورو خواوو څخه دوی محاصره او دوی یی له لویی ماتی ســره‌مخا مخ کړل او دغه اووه یا اته‌زره کسیز لښکر ددغه بی تدبیره عمـل‌په نتیجه کی له مینځه ولاړ، پخپله راجا بیربل، راجادهرم چند، خواجه‌عزت بخشی، ملاشیرین شاعر اونور نامتو شاهی سرداران په دغه شپه ووژل شول .زین خان کوکه او حکیم

ابولفتح ، په ډيرى سختنى او خـراب حالت سره ځانونه اټك ته د پاچـا حضورته ورسول چې ددغه ماتى له کبله اکبر ډير سخت خواشينى شو او راجا تو درمل يې ديوه لوى لښکرسره د سوات اوباجوړ دنيولو لـه پاره وليږل او په ډيره لږه موده کې يې ديوسفزيو څخه سخت بدل واخيست او سوات، باجوړ او بونير يې ونيول او په مناسبو ځايو نو کې يې شاهى تانې جوړې کړى ، هغه يوسفزى چې له تباهى څخه خوندى پاتى شول په (۱۶۰۳) عيسوى کال ميرزا رستم چې د سلطان حسين زوى او دشاه اسمعيل صفوى کړوسى *او دکندهار حاکم و د خپل وروړ د مخالفت په اثر او د اوزبکو د فشار په سبب يـې کند هار اکبر پاچا ته ورکړ او پـه خپله يې دپنځه زريز منصب قبول او د ملتان حاکم شو. په همدغـه کال راجامان سنګ لاهور ته راغى او دهغه په ځاى يې زين خان کوکـه دکابل صوبې ته راوليږه نوموړى دغه صوبه تر کندهاره پورى پـه ښه وجه اداره کړه.

جلال الدين محمد اکبر ورو سته تر پنځوس کاله پاچاهى په ۱۶۰۵ عيسوى کال په (٦٤) کلنى کې په اکبر اباد کې له جهانه ستر ګـې پټې کړې. او اوس يې قبر همدلتـه په سکندره نومې ځاى کـې دى . دغه پاچا ډير عادل، رعيت پالونکى او د ملکى او نظامى چارو په ترسره کولو کې يې ښه استــعداد لاره .

## ابوالمظفر نورالدين جهانګير :

دجلال الدين محمد اکبر تـــر مړينى وروسته دده يوازينى زوى شهزاده سليم (۱۶۰۵) عيسوى يـا(۱۰۱٤) هجرى کال د هندوستـــان او افغا نستان پاچا شو او داکبـــرآباد (آګره) په کلا کې په تخت کښينا ست او ځان ته يې دجها نګيرلقب غوره کړ .

دده په وخت کې دفارس پاچـــا شاه عباس په کندهار حملـه وکړه او عبد العزيز خان د کند هار کلاداريې محاصره کړه نومـــــــــــــوړى ترڅه مودې پورې د ايران له پو ځ سره مقابله وکړه اوکله چې دمرستى له رسيدو څخه نا اميده شو نوپناه يې وغو ښته او د کندهار کلايــــى هغوى ته پريښوده او کند هار ايرانيانو ته په لاس ورغى .

نور الدين جهانګير په (۱۶۲۷)عيسوى يا(۱۰۳۶)هجرى کال دوروستى ځل له پاره کابل وليده اوپه لاهورکې دشاه لنډى په مرض وفات شــو

---

*ميرزا رستم د سلطان حسين زوى دبهرام ميرزا لمسى او دشاه اسمعيل صفوى کړوسى و ـ (رشاد)

او دلاهور ښارته نږدې د راوي د رود په لويديځه څنډه د شاه‌دره په سيمه کې ښخ شو.*

**شاه جهان:**

دجهانګير تر مړينې وروسته شهزاده‌خرم دشاه جهان په تخت کښيناست هغه دخپل سلطنت په پيل کې شهزاده‌داراشکوه د کندهار دنيولو له پاره راوليږه . نوموړی په افغانستان کې څو ياغي سيمې ايل کړې، مګر ډير زر د هندوستان د عياشي بزمونه ور په ياد شول او سره له دې چې غزني ته رسيدلی او هم يې‌دايران پاچا د مړينې خبر اوريدلی و مګر سره له دې هم بيرته هندوستان‌ته ستون شو په دريم کال دشهزاده مراد بخش په سرداری او د علي‌مردان خان ، اصالت خان او بهادرخان په قوماندانۍ يو لښکر د بلخ دنيولو له پاره د نذر محمد خان او زبيك سره مرستې په نامه د افغانستان‌په لور راوليږه کله‌چې شهزاده‌پيښور ته راورسيده نوخليل ،مومند، ګګياني، محمدزي، اپريدي، ختك‌او اورکزي افغانانو (پښتنو) څخه يې هم‌ايله‌جاري (حشري) سپاره او پلي‌پوځونه راټول اود کابل له لوري د هندوکش‌په خوا روان شو، خو د واوري د اورښت، اذوقې او نورو ضروري‌موادو کم والی له امله دغه پوځ‌ډير ربړو نه وګالل، په دغه وخت کې‌يوسير غله چا حتی په يوه روپۍ هم سپاهيانو نه ورکوله ، دنذرمحمد خان زوی خسرو سلطان هم ددغه لښکر سره يو ځای شو، کله‌چې دغه پوځ بيله کومې مقابلې د بلخ ښار ته ورننوت نو شاهي‌امراوعداسې فيصله وکړه چې په دغه ځای کې دې سکه او خطبه دشاه جهان‌په نوم جاري کړای شي، نو څرنګه چې دوی ښار ته ور داخل شول نو داسې‌جار يې وواهه چې دلته دشاه جهان پاچاهي او حکم چليږي، کله چې‌دغه‌خبر نذر محمد خان واوريده چې دمرستې په ځای دوی د هغه ملك‌نيولی و نو هك حيران شو، نو دځان دخلاصون له پاره ايران ته وتښتيده‌اودغه غزل مې ديران پاچاته وليکه:

تاج ازهدهد مازاغ ربوده است به مکر

من به درګاه توای شاه ازان امدام

---

*دجهانګير مغول مرګ د ۱۰۳۷هق‌کال د صفري په اته ويشتمه پيښ دی (رشاد)

شاه جهان د شاهزاده مراد بخش‌دغه سست انتظام خوښ نه شو او شهزاده اورنګ زیب ته یی امروکړچی دهماغه لښکر په واسطه بخارا ونیسی ،ددغه امر سره‌سم اورنګ‌زیب دبخارا دنیولو په نیت رهی شو. مګر دازبکو د قوم یرغلونه ورباندی‌پیل شول او ددغو یرغلونو څخه تر هغه اندازی په تنګ شوچی حتی‌په بلخ کی اوسیدل هم ورته ګران شول، دښمن ورځ په ورځ غښتلی‌کیده تر څو په پای کی امیرالا مراء علیمردان خان نذر محمدخان له ایران‌څخه راوغوښت او عذر ئی ورته‌وکړ او بلخ یی بیرته هغه ته وسپاره‌او شاهی لښکری بیرته کابل ته راستنی شوی.

بیا یو لښکر دکند هار دلانجی داوارولو له‌پاره هغی‌خواته ولیږل شو ددغه لښکرمشر شهزاده اورنګ‌زیب و، دکلاد کلکوالی او په کلاکی ددفاعی وسایلو دزیاتوالی له امله یی کوم بریا لیتوب تر لاسه نکړ او شهزاده بیرته راستون شو،په‌غه وخت کی شاه جهان ډیر ناروغ شو، کله چی دده زامنو دغه خبر واوریده نو دځلور واړو یعنی دارالشکوه ،شجاع، اورنګ زیب‌او‌مراد بخش ترمینځ شخړی رامنځ ته شوی اوددغو شخړو اور په‌هغه اندازه قوی‌وسره‌له‌دی‌چی شاه‌جهان جوړ شو، بیاهم دغه اور مړ نه‌شو،اورنګ زیب چی تر ټولو زړه‌ور وتر ډیرو جګړو وروسته یی په خپلو وروڼو باندی غلبه وموندله او له بده مرغه یی خپل پلار هم ونیوه .

## عالمګیر :

کله چی اورنګ زیب په تخت‌کښینا ست نو د عالمګیر لقب یی غوره کړ او پلار یی په (۱٦٦٦)عیسوی کال وروسته له اتو کالو زندان څخه له جهانه سترګی پټی‌کړی .

اورنګ زیب د خپل پلار په شان‌خپل ټول ورونه او حتی ددوی نارینه اولادونه هم ووژل، دده په دوره‌کی د افغا نستان خلکو په بغاوتونو، لاس پوری کړ، چی له ټولو څخه لوی اغتشاش په کابل کی پیښ شو، دیوسفز یو قبیلی په مسلسله توګه‌دچچ هزاره په ضلعی یرغلونه پیل کړل او شاهی انتظام اواداره‌له داسی بی نظمی سره مخامخ‌شوه، چی په نتیجه کی یی حکومت له لوی‌مصیبت سره مخامخ شو. د کابل صوبداران او حاکمان زرزر تبدیلیدل،له بله پلوه دیوه قام سردار ته په بل قوم کی د ټیکی او (اجاری)ورکو لو دغه بی نظمی لا پسی زیاتی کړی .

کله به چی د یوی سیمی حاکم یا صوبدار بلی سیمی ته بدل شو، نو هغه به د نوی حاکم دبدناموولو له پاره خلك فساد ته تشویقول، په دغه وخت کی یو بیگا نه سړی د یو سفز یو سیمی ته لاړ اوهلته یی ادعا وکړه، چی دی شهزاده شجاع دی، داورنگ زیب څخه یی د ځان ژغورلو له پاره له دوی څخه دپناه غوښتنه وکړه، مگر د شجاع په باب حقیقت داو چی نومړی ددکن خواته تللی او هلته د راجا اراکان د بد عهدی او بی همتی له امله له منځه تللی و او غرنی افغانان (پښتانه) بی له دی چی کوم فکر یی کړی وی هغه یی اصلی شجاع وباله او یو لوی لښکر یی راټول کړ او توربیلی ته مخا مخ دستا نی تر څنگ یی جگړی ته تیاری ونیوه. دوی دزړه ورتیا په سبب د سند له رودو څخه پوری او د چهچه سیمی ته ورننوتل. دا ټیك کلادار (کوتوال) کامل بیك دمراد قلی گهکړ په ملگر تیا ددوی مقابل ته راووت او ددواړو خواو تر مینځ سخته جگړه پیل شوه په دغه جگړه کی دیو سفز یو دهقا نی (قومی) لښکر سخته ماته وخوړه ددوی زیات شمیر د جنگ په ډگر کی ووژل شول او ځینی یی چی ژوندی پاتی شول هغوی د تیښتی په وخت کی دسند په رود کی ډوب شول او پاتی یی په تیښته سوات ته ورسیدل او هلته څه موده وروسته مصنوعی شجاع په خپل مرگ مړ شو.

کله چی د عالمگیر له خوا شهزاده بهادر شاه دافغا نستان داداری، د منظمو لو له پاره کابل ته راولیږل شو نو هغه دخپل نیك تدبیر اوښو اخلاقو په وجه اکثره خلك مطیع کړل او حتی دبنو، دوړ، خوست او شلوزان دوره یی وکړه او دغه سیمی یی یوازی تش په نامه تابع کړی.

په (۱۱۱۸) هجری کی چی د (۱۷۰۷) عیسوی کال سره سمون خوری عالمگیر د (۹۳) کلو نو په عمر وروسته له دی چی څلویښت کاله پاچاهی یی وکړه* له فانی جهان څخه ولاړ.

---

*داورنگزیب عالمگیر د پاچهی موده په قمری حساب پنځوس کاله واووه ویشت ورځی ده، د ۱۰۶۸هق کال د میا نی په لومړی ورځ کی دخپلی پاچهی اعلان کړی او د۱۱۱۸هق کال د میا نی په اته ویشتمه مړ شوی دی. (رشاد)

**شاه عالم:**

شهزاده بهادر شاه دخپل پلار ترمړینی وروسته کله چې خپل دوه وا‌ړه ورونه یې مغلوب کړل دشاه‌عالم په لقب‌دډیلي په تخت کښیناست او افغانستان کابل او ختیځې سیمې‌یې تر واکمنی لاندې وې، مګر په کندهار کې یو ډیر پوه‌مشرچې حاجي‌میر خان نومیده مینځ ته راغی.

**حاجي میر خان:**

دی چې په میرویس باندې مشهوردی دغلزي قبیلې دهوتکو له بناخ څخه وااووړځ‌ په ورځ په کندهار کې دنفوذپه زیاتو لو بوخت و. په دې ډول چې په کندهار کې د خانی او اربابی منصب له مخکې څخه په ابدالی قوم پورې تړلی و. کله‌چې ددغه کورنی څخه حیات سلطان د کندهار له صوبدار سره وجنګیده‌او د ایران پا چا دښمنی یې پخپله غاړه واخیسته اوله داره داو رنګزیب عالمګیر دربار ته ور وتښتیده، اورنګزیب په کندهار باندې دیرغل‌پخاطر ده ته د پنځه سویز منصب ور کړ او حکم وشو چې د ملتان دښخړی داواریدو پورې دی، دی‌په ملتان کې واوسی.

کله چې حیات سلطان له کندهارڅخه ووت نو په هغه وخت کې د کندهار د صوبدار د غوښتنی‌او دایران پاچا دحکم سره سم میرویس ته د کندهار دښاوخواسیمو د پښتنو سرداری ورکړای‌شوه مګر تر لږې مودې وروسته دده‌دغرور او تکبر په وجه د کندهارحاکم ناراضه شو او پا چاته یې د هغه دلاسه یو له شکا یته ډك لیك واستاوه، پا چا میر ویس خان خپل‌دربار ته ور وغو ښت څه موده یې چې ملته تیره کړه نو د پاچا څخه یې حج ته د تللو اجازت واخیست او له حجازه کندهارته راستون شو.او نو موړی خپله پخوانی رتبه ساتلی وه، په دغه وخت کې دایران پاچا له خوا په کندهار کې ګرګین شاهنواز خان صوبداوپه پوځ کې‌هم‌دده د قوم او هم قزلباش سپاهیان ډیر زیات را ټول کړای شوی وو.

شاهنواز خان ګرجی ډیر تند مزاج(قهرجن) او بې انصافه سړی و، دی د خپل قوم دتر قسمی او عزت غوښتونکی و مګر افغانانو (پښتنو) او قزلبا شا نو ته یې په سپکه سترګه کتل نو ځکه دغو دوو قومو نو له ده‌سره مینه نه لرله او د هغه سلطه یې نه غوښتله.

په دغه وخت کې شاهنواز خان د بلو چستان د داوی د تنظیمولو له

پاره یو لښکر هغې خواته ولیږه کله چې دده اعتباری پوځ له ده څخه جلا شو نو په دغه وخت کې میر ویس‌خان له قزلباشو سره سلا اومشوره وکړه او په کندهار یې یرغل وکړاو بریالی توب یې په نصیب شواو د کندهار صوبدار شاهنواز خان یې وواژه او په دغه ځای یې قبضه ټینګه کړه، او هغه لښکری چې د شاهنواز خان په حکم بلوچستان ته تللی وی کله چې یې دا زړه بوګنوونکی خبر واوریده نو د هرات او مشهد په خوا روان شول په دغه وخت کې د ایران سلطنت لخوا دری ځله په کندهار برید وشو، خو ددغه ځای په نیو لو بریالی نشول، کله چې میر ویس خان د کندهار استقلال تر لاسه کړ نو د توری په زور یې نیول شوو سیمو ته پراختیا ورکړه او ددور اندیشی په سبب یې خپل وراره د شاه عالم پاچا حضورته ور ولیږه، نوموړی په سرهند کې چې د امبالې له نوا حیو څخه و پاچا سره وکتل او د هند پاچاتش په نامه د پنځه زره کسیز منصب میر ویس ته او دری زره کسیز په خپله ده ته ورکړ او کندهار یې ده ته په دې شرط وسپاره چې په خطبه او سکه کې د شاه عالم نوم ذکرشی. میر ویس خان څو کاله دقوم مشری په غاړه درلوده او څنګه چې د ډیر عمر خاوند و مړشو او دده څخه وروسته عبد العزیز دده ځای ونیوه.

**عبد العزیز:**

عبد العزیز د میر ویس خان ورور او دده ترمرګ وروسته یې شپږ کاله دده په ځای حکومت وکړ* او هغه وخت یې چې له نړی څخه سترګې پټې کړې نو شاه محمود مینځ ته راغی.

**شاه محمود:**

عبدا لعزیز تر مړینې وروسته دمیر ویس مشرزوی شاه محمود دهغه ځای ونیوه او هغه دایران دولت له ضعف او بې نظمی څخه په استفادی کولو سره په هغه ځای یرغل وکړ.

نوموړی دغه لوی ملک ونیوه او څه موده یې په اصفهان کې تیره کړه. تر څو یې له جهانه سترګې پټې کړې.

---

*دعبدا لعزیز خان دپاچهی موده دیوه کال په شاوخوا کې وه، په حیات افغانی (٦٦مخ) کې چې دده دپاچهی موده شپږ کاله ښوول شوی ده صحی خبره نه ده. (رشاد)

## شاه اشرف:

د شاه محمود تر مړینې وروسته دمیرویس ورور شاه اشرف پاچا شو * له سطحي څخه وزغوره، او یوازې دنادر په سپه سالاري ایران دغلجیو خو دایران پاچا شاه حسین صفوي کندهار صوبه دشاه اشرف په لاس کې پاتې شوه ، ** په پای کې شاه اشرف له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

## شاه حسین:

دشاه اشرف هوتکي تر مړینې وروسته *** دمیرویس زوی شاه حسین پاچا شو. نوموړي دیره غازي خان فتحه او لوټ کړ دهوتکي کورنۍ

دسلطې سره سره کابل او ختیځ افغانستان دپخوا په شان دهندوستان سلطنت تر اداری لاندې وو.

دلویدیځ افغانستان حالات خو په هغه شان وو چې وړاندې بیان شول خو په هندلی کله چې شاه عالم په (۱۷۱۲) عیسوی کال مړ شو نو د معز الدین جهاندار شاه د شخړې دله منځه وړلو وروسته فرخ سیر پاچا شو.

## فرخ سیر:

فرخ سیر د شاه عالم لمسی وچې د سید عبد الله او سید حسین په مرسته په (۱۷۱۳) عیسوی کال په تخت کښینا ست ، د نوموړي په وخت کې د انګریز د استعمار نیالګی دهندستان په ځمکه کې کیښنو د ل شو اوزیښې یې وځغلولې. فرخ سیر په (۱۷۱۸) عیسوي کال دنوموړو دوو سیدانو له خوا ووژل شو .او د شمس الدین او رفیع الدوله

---

* شاه اشرف دمیرویس نیکه ورور نه و ،وراره یې و- دشاه اشرف پلار عبدا لعزیز (یادځینو په قول عبدا لله) نومیده .(رشاد)

** کندهار دشاه اشرف په لاس کې نه و، شاه حسین (دشاه محمود ورور) دکندهار والي و. (رشاد)

*** شاه حسین دشاه محمود هو تک تر مرګ وروسته په کند هار کې جلا پاچهي جوړه کړله! او د شاه اشرف تر لاس لاندې نه و.

(رشاد)

له شخړی وروسته *د شاه عالم بل لمسی دروشن اختر په نامه
او د محمد شاه په لقب دپاچاهۍ په تخت کښېنېا ست .

**محمد شاه :**

کله چی محمد شاه پاچا شو نوسلطنت له ډیری تباهی سره مخامخ شوی و. په ختیځ افغانستان اوکابل کی صوبدارانو او فوجدارانو ته د ځان خلاصون هم مشکل و او په دغسی وخت کی نادری بلا رامنځته شوه .

**ایرانی نادر شاه :**

نادر شاه اصلاً ترك او د افشارله ښاغ څخه ؤ. پلار یی رضا قلی نو میده چی د یوی کوچی قبیلی مشرواو په خراسان کی اوسیده . نادرخپله پلر نی وظیفه پرېښی او په لوټاوغلایی لاس پوری کړی و او د خپل زړه ور توب په وجه کله چی غلزی (غلجیو) افغانانو (ښېنو) په ایران سلطه ټینګه کړه ، سپه سالارمقررشو او د ایران سلطنت یی دپښتنو له منګلو څخه وژغورو .

نادر په (۱۷۳٦) عیسوی کال به ډیره بی رحمی سره د ایران پاچا له تخته راکوز اوستر کی یی ورباندی وایستلی او پخپله د پا چا هی په تخت کښېنېا ست. نوموړی کله چی دایران چاری منظمی کړی نو دافغا نستان د نیو لو تکل یی وکړ او دهرات په شاو خوا کی یی ابدالی پښتنو ته ماته ورکړه اوایل یی کړل. ترهغه وروسته چی ده ابدالی لښکری هم له ځان سره یو کړی نو دکندهارخواته چی په هغه وخت کی دغلزائی کورنی ارالحکو مت وراروان شو .غلجی شاه حسین د نادرسره د مقابلی په منظور تیاری ونیوله او دکندهارپه ښار کی یی ځان محاصره کړ او کله چی په محاصره کی تنګ شونو خپله مشره خور یی چی زاینب نومیده** او یره پرهه ښځه وه دځو تنو نورو مشرانو سره د نادر

---

* شمس الدین او رفیع الدوله یوسړی دی- حقیقت دادی چی د فرخ سیر تر وژلو وروسته - سیدانوورونو د شاه عالم لمسی د رفیع الشان زوی رفیع الدرجات چی محمد نومیده پا چا کړ. رفیع الدرجات دوی میاشتی شمس الدین رفیع الدوله پا چا کړشو. سیدا نو ورو نو دده مشر ورور او یوولس ورځی پاچهی وکړه ،مړده دری نیمی میا شتی پاچهی وکړله دی هم ومړ، تر ده وروسته سیدانوورونو دشاه علم لمسی دخجسته اختر زوی روشن اختر پا چا کړاو د محمد شاه لقب یی ور کړ .
(رشاد)

** اصل- زینت

دربار ته ولیږل اوامان یې وغوښت،نادر هم امان ورکړ هغه د خپل قوم له نورو سردارانو سره نادري دربار ته ور غله او عذر یې وغوښت نادرهم هغه ټول وبخښل اوخپلو خپلوانـو سره یې مازندران ته ولـــیږل . همدارازابدالي قبیله یې د هرات له شاو خوا څخه کندهار ته ولیږ دوله او دهغو په ځای یې دهوتکواو توخي غلجیو قبیلي هرات تـــه ولیږلې په دغه ډول نوموړي یـــو نظم او نسق منځ ته راوړ دکندهار زوړ ښار یې متروك او دهغه تـــر څنګ یې یو نوی ښار دنادر اباد په نامه جوړ او ددغه ځای اداره یـــی عبدالغني-خان علیکوزي ( الکوزي )

امیر افغان ته یې وسپارله او پـــه خپله دکابل په خوا روان شو ، د دغه ځای رئیس شاه درګاهي تریوی لنډی جګړی وروسته تسلیم شـــو

اوپه (۱۷۳۸) عیسوی کال پـــه کابل باندی دنادر قبضه ټینګه شوه نوموړي یو استازی ددیلي پاچـــا محمد شاه ته ورولیږه ، خودغــه استازی په جلال آبادکي ووژل شواو دغه خبري په هند باندی دحملي

زمینه برابره کړه ، دهند دپاچا له خوادکابل صوبدار ناصر خا ن چـــي په پیښور کي اوسیده یوسفزیوا و نور پښتانه یې سره یو کـــړل او د خیبر په دره کي یې دنادر د لښکر ومخه ونیوه او ددري دبندوالي لـــه امله یوه میاشت اوخو ورځي دنادر لښکري دلته تم شولي ترڅو پــــه

پای کي دملك سروړ اورکزي افغان (پښتون) په مرسنه اولار ښوو نه نادر دلسوز رو سپرو په ملتیا په هغه لار رهنمایي کړ چي امیرتیمور ور باندی هندوستان ته تللی و .

په دغه ترتیب یې دنادر لښکرد ناصر خان دلښکرو وروستیو برخو (شاو خوا ته ) ورسولي او په دغه وخت کي دنادر او ناصرخان دلښکرو ترمینځ سخته جګړه وشوه چي پـــه نتیجه کي ناصرخان ماتي وکــړه ، ټپي او ونیول شو ځوموده نظربندو او په پای کي دلاهور په شاو خوا کي دکابل او پیښور صوبه داري‌ده ته ورکړل شوه او دنادر له حضوره رخصت کړی شو .

نادر په (۱۷۳۹) عیسوی کال کي ډیلي ونیوه اوخلك یې قتل عـــام کړل تقریباً دشلو کروړو - روپیـــو په اندازه مال یې لوټ اوهم یې تخت فیروزه * له ځانه سره راوړ، نـــوموړي داټك له سیند څخه راپوري او دسیندرود یې دخپل سلطنـــت سرحد وټاکه .

تردغو سوبو او فتوحاتو وروسته کله چي نا در بیرته ایرا ن تـــه ستون شو په ظلمونو یې پیل وکړاو خلك د دغه بې ځایه ظلـــم په

---

* ددغه تخت نوم تخت‌طاوس و. (رشاد)

اتره له ده څخه ناراضه شول تردیچې دی یی د (۱۱٦۰) هجری کال دجمادی الاخر دمیاشتی په یوولسمه دیکشنبی په شپه ،دمحمد خان قاجار ایرانی، موسی بیک افشارخلجانی، کوچه بیک افشار رومی او ځو نورو ملکروچې دشاهی سراپردی‌سا تونکی وو، نمك حرامی وکړه او په نیمه شپه دده دخوب کوټــی (ځای) ته ورننوتل او ددغه سرکش انسان سر یی له تنی څخه بیل اودغه خبر په اردو کی هم خپورشو.

شبانګاه سرتخت وتاراج داشت

سحرګه نه تن سرونه سرتاج‌داشت

بیك ګردش چرخ نیلو فــری،

نه نادر بجاماند ونه نــادری

په دغه وخت‌کی احمدخان سدوزی‌چی دنادر دابدالی پوځ افسر ودغه خبر واوریده پخپل دری زره کسیزه‌ابدالی سپور پوځ یی تیار او ټوله شپه یی په ولاړی تیره کړه اوکله‌چی سهار شو افشاری او قزلباشی اله کوله کوونکو سره په جنـــګ بوخت شو، په دغه جګړه کی بریا لیتوب احمد خان ته ور په برخــه‌شو او دنادرشاه دلښکر ټول مال او شته یی له ځان سره کندهارته‌راوړل .

# وسدوزایي کورنی واکمنی د (۱۷٤۷) عیسوی کال له پیل څخه تر (۱۸۰۹) عیسوی پوری او په هرات کی تر (۱۸٤۲) عیسوی پوری

د سدوز یانو د اصل او نسب په باب معلو مات په دو یمه برخه کی راغلی دی .

**سدوزی یا ابدالی احمد شاه :**

دنادر تر مړینی وروسته ده‌تولو خزانه او مالونه احمد شاه ته په لاس ورغلل .

نوموړی هغه له ځان سره کندهارته راوړل او دلته د (۱۷٤۷) عیسوی کال داکتوبر په میاشت کی *دافغانستان پر تخت کښیناست او داصابر **شاه مجذوب درویش** د لارښوونی په اساس یی داحمد شاه‌در دوران **القاب غوره کړل او دغه فقیر ته** احمد شاه ډیره عقیده لرله اودخپل **قوم‌نوم یی له ابدالی څخه په** درانی واړاوه **له افغا نانو څخه** نوموړی لومړی سړی دی چی پـه افغانستان کی یی دنوی افغانستان دسلطنت بنسټ کیښود .

---

*لوی احمد شاه بابا د(۱۷٤۷) ع کال د جولائی د ۱۵ د مخه پاچا شوی دی یعنی ددغه کال **تراکتو بر دری میاشتی دمخه پاچهی ته** رسید لی دی. (رشاد)

احمد شاه د سلطنت په لومړی کال دکابل نیو لو او د پیښور صوبدار ناصر خان د تکو لو لپاره د کابل‌خواته را روان شو، په یوه یرغل سره نوموړی غزنی ونیو او هم یې‌له کومې مقاومت بلې فتح کړ. ناصر خان هم د جنګ له پاره‌تیاری ونیوله خوهغه وخت چې تول افغانان (پښتانه) له نوموړی‌څخه وګرځېدل او د خپل همقومه پا چا احمد شاه په خوا ودریدل اوهمدا راز عبد الصمد خان چې دپیښور له لویو زمیندارانو (ځمکه والو) څخه‌او په قوم محمدزی او د دوابې او اشنغر رئیس و له ده څخه وتښتیده‌او په جلال آباد کې د احمد شاه له لښکرو سره یو ځای شو نو په‌دغه وخت کې ناصر خان په خپل ځان کې د مقا بلې توان ونه لیده‌له پیښور څخه دراولپنډی ضلعې د چهچه علاقې ته وتښتیده. او داحمد شاه د حکم سره سم انوموړی دده درانی پوځ د سپه سالار سردارجهان خان لخوا د چهچه او هزاره سیمې پورې‌تعقیب کړای شو او دلاهور خواته وتښتیده.

کله چې احمدشاه دافغانستان‌داخلی چارې سمبال او منظمې کړې نو دغه زړور پا چا شپږ ځله په پرلپسې ډول په هند او پنجاب باندې یرغلو نه وکړل، لومړی‌ځل‌انبا لی ته نږدې د هند او درانی پا چا لښکری سره مخا مخ شوي اود دوی ترمینځ جګړه پیښه شوه که څه هم په دغه جګړه کې نواب‌قمر الدین خان دهند وزیر الممالك و وژل شو، خو احمد شاه بیله نوم‌ښکاره بریالیتوب څخه راوګرځیده. په دویم کال ده هرات ونیوه او دخپل هیواد په قلمرو کې یې شامل کړ.

احمد شاه د هندخواته په دویم‌یرغل کې ملتان او لاهور فتح کړل او د لاهور صوبدار میر منویې دځان‌لخوا دپنجاب ګور نر مقرر کړ.

په دریم یرغل یې په ډیلی (شاه جهان آباد) باندې‌قبضه ټینګه کړه ده سپه سالار سردارجهان خان‌او وزیر شاه‌ولی خان دیوه لوی‌لښکر سره د متهرا خواته ولیږل دوی نوموړی ښار لوټ اوډیر مالونه یې د غنیمت په ډول‌له ځانو سره‌راوړل.په دغه وخت‌کې احمد شاه د ډیلی دپاچا دویم عالم ګیر‌په سلادمحمدشادلور نکاح کړه او دنوموړی عالمګیر ثانی لور یې خپل زوی تیمور ته واده کړه.

په دغه ډول یې د تیموری‌کورنۍ‌له پا چا یا نو سره د خپلوۍ ریښې او مزی ټینګ کړل او بیرته‌ افغانستان ته راستون شو.

دده څلور مه حمله د (۱۷٦۱) عیسوی کال * د جنوری د میا شتی په اوومه نیته تر سره شوه، پـه دغه جګړه کی دده لښکرو په پانی پت کی دمرهټی بی شمیره لښکر و ته ماته ورکړه او دجنګ ډګر یی دهغوی په وینو رنګین کړ، په دغه جګړه کی بی شمیره لښکری تباه شولی، دده پنځم او شپږم یرغلو نه د یاغـــی سکا نو د ټکو لو په منظور تر سره شول، او کله چی یی په دغو یرغلونو کی بر یالیتو بو نه تر لاســه کړل نو له پنجاب څخه بیر ته راوګرځیده .

احمد شاه تر دغه یرغلو نـــــوورووسته نور څو کاله هم په آرامی سره په کند هار کی پاچاهی وکړه ترڅو په پای کی تر (۲٤) کاله واکمنی وروسته د پوزی په ناسور اختــه شو او ددغه مرض له امله یی له فانی جهانه سترګی پټی کړی**، ددغه پا چا ډیر ښه او حمیده صفات تر اوسه هم په افغا نستان کی مشهوردی .

**سدوزایی تیمور شاه :**

داحمد شاه تر مړینی وروستــه له ده څخه دغه څلور مشهور زامن تیمور، سلیمان، سکندر او پرویز پاتی شول***، تیمورچی ترټولو مشرو د پلار له خوا دهرات صوبدار ټاکل شوی و او شاه ولی خان بامی زی د احمد شاه وزیر المما لك له تیمورڅخه خپه و نو ځکه یی سلیمان د کند هار په تخت کښیناوه، کلــه چی تیمور شاه چی واقعاء دپاچا هی مستحق و دغه خبر واوریده دجنګ په مقصد د کندهار خواته راروان شو، څنګه چی شاه ولی خان غوښتل تیمور بی له جنګه په چل ول سره ونیسی نو د دوه نیم سوه سپروسره مخی ته ورغی او په فراه کی دده نظامی کمپ ته ورننوت خو وړاندی تر دی چی د تیمور شاه سره وکتلای

---

*دغه سنه په اصل کی ۱۸٦۱ چاپ شویده . (رشاد)

** دلوی احمد شاه باباد پاچاهی موده په شمسی حساب تقریباً څلیرویشت کاله اویو ولس میاشتی ده چی پـه قمری حساب پنځه ویشت کاله و او وه میاشتی څو ور ځی ځینی جوړ یــږ ی . ( رشاد )

*** دلوی احمد شاه بابا دری نــــورزامن هم ووچی دشهزاده سنجــــر، شهزاده شهاب او شهزاده دا را ب په نو مو نو یادیدل دشهزاده شهاب واده په ۱۱۸۵ هـ ق کال دحسن خان الکوزی له لور سره شوی و، دده عمر دواده په وخت کی تر اوه لســـــو کالو لږ و .

(رشاد)

شي دئوموړی تیمور په حکم او دقاضی فیض الله په مشوره وزیر شاه ولی خان د خپلو دوو ځوانو (ژنو) زامنو او دوو خوریو نو سره یو ځای ووژل‌شول او کله چی‌دتیمور شاه فکر دوزیر شاه ولی‌خان له خوا مطمئن شونو کنده هار ته ورننوت، ده د سلیمان شاه عذرومانه او عفوه یی کړه او په خپله دافغانستان په تخت کښینا ست .

کله چی تیمور شاه پاچا شو په کابل کی عبد الخالق خان نومی‌درانی دپاچاهی دعوه کړی وه او یولړوالی‌کولی یی راامینځته کړی وی نو تیمور له سپه سالار خان‌جهان سره دکابل‌خواته راغی اوپه هغه جګړه کی‌چی په دغه ځای کی ددوی تر مینځ پیښه شوه، عبدا لخالق خان ونیول شو او دتیمور شاه دامر سره سم‌ړوند کړای شو، او تیمور شاه‌دهغو خدمتو نو څخه خوښ شو کوم چی‌په دغه جګړه کی یی تر سره کړی وو، له دی امله یی پاینده خان بارکزی‌ته دسرفراز خان‌لقب ورکړ .

تیمور شاه به عموماء ژمی په پیښور کی تیراوه په اوړی‌کی به کابل ته راته، یوځل فیض الله خلیل دپیښور رئیس بغاوت وکړ . مګر ددوی دغه بغاوت ناکام او نوموړی دخپل زوی سره، یوځای ووژل‌شو.

تیمور شاه دوه ځله په پنجاب یرغل وکړ او د سکانو غوبن ونه یی تا وا و هغوی یی‌متنبه کړل . او ارسلا خان مومند چی د ډکی او سیدو نکی وسره له دی چی پناه یی اخستی وه دتیمورپه ذریعه ووژل شو او د اده په لمنی یو تور داغ شو، همدا راز کله چی فتح خان اتمان خیل‌طاهر خیلی دګهند کر دغره رئیس دفیض طلب محمدزی‌په اعتباردتیموردربار ته حاضرشو، هغه هم‌ووژل‌شو.

تیمور شاه دیرزامن لری چی‌کاله سلطنتد (۱۲۰۷) هجری کال دشوال دمیاشتی په او ومه چی د ۱۷۹۳ عیسوی کال سره سمون‌خوری له دغه جهانه کډی بار کړی او په کابل کی ښخ شو.

## شاه زمان:

تیمور شاه ډیر زامن لری چی دمشهورو زامنو نومونه یی په دی ډول دی :

لومړی هما یون چی‌تر ټولو مشرو، دویم محمود، دریم شاه زمان، څلورم عباس ، پنځم شجاع الملك ، شپږم شاپور، اووم حاجی فیروز الدین .
دتیمور تر مړینی وروسته دهغه‌دریم زوی شاه زمان دامیرانو په سلاپه تیره بیا ددوست محمد خان‌بارکزی پلار پاینده خان بارکزی په مرسته په تخت کښینا ست ،به دغه وخت کی همایون په کندهار او

محمود په هرات کی حکمرا نان ووه‌کله چی همایون دشاه زمان دپاچا
کیدو خبرواوریده نو داعترا ض نـه وروسته یی په جگړه لاس پوری کړ،
مکر په دغه جگړه‌کی یی ماته وکړه‌او وتښتیده، خو ددیره اسمعیل‌خان
په لیه نومی ځای‌کی دنواب‌محمدخان سدوزی لخوانیول‌شو، اود شاه‌زمان
په امر یی دواړه ستر کی وایستل‌شوی ځرنګه چی شاه زمان یو ساده
پاچا ونودغه په‌وخت کی بارکزیانودیر نفوذپیدا کړاو خصوصاء پاینده
خان ته ډیر اختیار ورکړای شـــو،دوروښو تر مینځ نفاق ډیره تباهی
رامینځ ته کړه او د سردار پاینـــده‌خان پـــه سلا ډیر درانـــی سرداران
دشاه محمودسره دسازش اویوکیدوپه پلمه ووژل شول. نو ځکه دقوم
سردارا ناو دسلطنت دربار یان لـــه‌پاینده خان څخه ناراض وو، په‌تیره
بیا رحمت الله کامران خپل سدو زی‌دوفادارخان لقب ورکړ شـــوی ا و
وزیر المما لك وڅو ښتل چی په هره‌ښه وی پاینده خان ته ضرر ورسوی
او پاچایی په‌دغه خبره‌چی پاینده‌خاز او شاه شجاع الملك غواړی هغـــه
معزول کړی، د پاینده خان وژلوته چمتو کړ.

سره‌له‌دی چی‌پاینده خان د پاچاله دغی ارادی څخه خبـــر و او دده
زامنو لکه فتح خان او نورو ده‌ته خپل اصلی وطن یا ګرشك خواتـــه
دتښتید لو مشوره ور کړه، خو دغه‌زړور سردار تیښته شرم وګڼله نو
ځکه یی دغه سلاونه منله، شاه زمان‌هم بی تدبیری وکړه‌او پاینده خـــان
بارکزی چی د سر فراز خان لقـــب‌یی ورکړی و ، قمر الدین خـــان
امین الملك، هزار خان غلجی، محمد عظیم‌خان الکوزی ،اسلم‌خان اونور
څو تنه سرداران یی ووژل*، اوددغه کار نتیجه داشوه چی په ټول افغا-
نستان کی الی ګولی او فسادو نـــه‌را مینځ ته شول دمرحوم ســـردار

---

*دا نو مونه په حیات افغانی کـــی‌سم نه‌دی کښلی (وګ ۷۲مخ)ددغو
نومونو صحی بڼه داسی ده.

۱- نور محمد خان امین الملك (باېړ)د قمر الدین خان امین الملك پـــر
ځای

۲- محمد عظیم خان دمیرهـــزارخان‌الکوزی زوی-دهزارخان غلجی اومحمد
عظیم خان الکوزی پر ځای

۳- اسلام خان پوپلزی ضبط بیګـــی‌داسلم خان پر ځای
په دغه سازش کی د لاس لرلو په‌ګناه نه تنه نور هم ټیول شوی‌وو.
(رشاد)

پاینده خان مشر زوی فتح خان دشاه‌زمان له وروړ ، شاه محمود سره‌یو ځای شو، دوی دواړو ډیری لښکری‌را ټولی او په کندهار او غزنی باندی یی قبضه ټینګه کړه او په کابل باندی یی یرغل وکړ، کله چی

دغه خبر په پیښور کی شاه زمان‌واوریده نو دغی خواته راروان شوه دلته دی له یوه ډیر زړور سپه‌سالارسره مخامخ شو، څرنګه چی دده د پوځ وړاندی برخی نمك حرامی وکړه،نو موږی ماته وخوړه او ونیول شو او دجګ دلك (چکدلك) په دره کی‌دشاه محمود په امر ړوند کړی شو،او وزیر وفادار خان چی د پاینده خان‌دمرګ پلان یی جوړ کړی و د خپل وروړ سره یو ځای دکابل دبالاحصارپه کلا کی ووژل شو.

## شاه محمود:

دشاه زمان تر ړندیدو وروسته‌دامیر دوست محمد خان مشر وزیر فتح خان بارکزی په مرسته اوکمك‌شاه محمود په تخت کښیناست‌نوموږی فتح خان خپل وزیر اعظم وټاکه اودشاه دوست لقب یی ورکړ.

فتح خان خپل کشر وروړ دوست‌محمد خان له ځان سره ستوی او د هیواد دچارو په تر سره کولو بوخت‌شو.

## شاه شجاع الملك:

نو موږی چی د شامزمان سکنی‌وروړ و کله چی یی دمغه دله منځه تلو خبر واوریده د حافظ شیر محمدخان بامیزی په مرسته چی دی داحمد شاه د مشهور وزیرشاه ولی خان‌زوی‌و، د خیبر له شاو خوا څخه یی ډیری لښکری راټولی او په شاه‌محمود باندی یی یرغل وکړ.

په هغه جګړه کی چی ددوی ترمینځ پیښه شوه بریا لیتوب شجاع ته ورپه برخه‌او شاه محمود ونیول‌شو او غوښتل یی چی هغه د خپل وروړ شاه زمان‌په بدل‌کی ړوندکړی‌خو په خپله شاه زمان هغه له‌دغی ګناه څخه منع کړ چی هغه ددی له پاره چی محمود د خپل سکه وروړ

هما یون په بدل کی شاه زمان ړوندکړی واو اوس‌نوبدل پوره شوی‌و.*

شاه شجاع‌هلور کاله‌او څومیاشتی‌سلطنت وکړ، مګرکله چی‌دی‌دکشمیر صوبدار عطاء محمد خان دټکولو له‌پاره چی یاغی شوی وه هغی خواته

---

*هما یون او محمود سکه وروڼه نه و،د شهزاده هما یون مور افشاره او دشاه محمود مور بارکزۍ پښتنه‌وه.

(وهـــــاد)

ولاړ او يرغل يې ور باندې وکړ، پخپله مغلوب او ونيول شو. په دغه وخت کې شاه محمود له قيده خلاص او په افغانستان باندې يې قبضه ټينګه کړه، او دهرات صوبدار يې حاجي فيروز الدين ته ورکړه، همدا راز شاه شجاع هم دکشمير له بنده خلاص شوی و او په کابل او پېښور کې په پاچاهي بوخت و، په دغه وخت کې په افغانستان کې دوه پاچايان موجود وو، يو شاه محمود او بل يې شاه شجاع.

شاه شجاع څه موده پاچايي وکړه او شاه محمود يې هم له تخته را کوز کړ.

مګر تر ډېرو اوږدو لرو وروسته او د بارکزيو دقدرت موندلو له امله شاه شجاع له پاچاهۍ څخه وشړل شو، خو بيايي هم هڅې کولې، کله به يې له يوې خوا او کله به يې له بلې خوا په حملو لاس پورې کاوه.

په (۱۸۰۳) عيسوي کال وزير فتح خان دکشمير په صوبدار عطاء محمد خان باندې له دې امله يرغل وکړ چې هغه له شاه محمود څخه ياغي شوی او شجاع سره يوځای شوی وه او په هغه جګړه کې چې ددوی تر مينځ پېښه شوه فتح خان ته فتحه وزيه برخه او عطاء محمد خان ونيول شو دهغه ورور غلام محمد خان لاهور ته ولاړ او د رنجيت سنګ په خوښه يې خپل کوچنی ورور جهاندار خان ته چې د اټک کلا دار وليک وليږه او په هغه کې ور څخه وغوښتل چې د اټک کلا دې په سکانو باندې وپلوري، هغه هم ديولک روپيو په بدل کې دغه کلا سکانو ته ورکړه.

له (۱۸۰٤) عيسوي کال څخه د اټک ختيځه برخه د رنجيت لاس ته ورغله، او کله چې دغه خبر کابل ته ورسيده نو فتح خان او دوست محمد خان د اټک کلا د بير ته نيولو له پاره هغې خواته د لښکرو سره روان شول او په (۱۸۱۳) عيسوي کال د رنجيت له (۳۰) ديرش زره کسيز پوځ سره مخامخ شو خو ماته يې وخوړه. کله چې درانيان بيرته راستانه شول نو هلته خبر ورورسيده چې شاه شجاع دشهزاده حيدر په مرسته ددېره غازي خان په صوبدار نواب عبدالجبار خان باندې يرغل کړی خو نواب عبد الجبار هغوی په شاتمبو لې دی، په دغه وخت هرات ته دايران پاچا دلښکر دراتلو او دهرات د نيولو خبر هم خپور شو.

له بله پلوه شهزاده کامران له خپل پلار شاه محمود څخه غوښتی و چی هرات دی له حاجی فیروز الدین څخه واخیستل شی او ده ته دی ورکړای شی. نو ددغه شخړو د حلولوله پاره فتح‌خان اوامیر دوست‌محمدخان هغی خواته روان شول، هغــــوی‌دوست محمد خان‌چی په هغه وخت کی هم په منصوبه بازی کی بــی‌مثاله و په هرات کی پریښود په خپله فتح‌خان او حاجی خان کاکــړدایران والی فتح علی شاه قاچارسره د مقا بلی لپاره وړاندی تک وکړ. په دغه جګړه کی سره له دی چی د ایران دفوځ شمیر دریو لکوتــه رسیده ماته وکړه او تر مشهد پوری دافغا نی قواو له خوا تعقیب کــړل‌شوله بله پلوه دوست محمد خان هرات ونیوه او د فتح خان پـــه مشوره یی حاجی فیروز الدین پـه دغه پلمه ونیوه چی د شاه محمودسره یی دده د سرګردانی او اوارکی په وخت کی مرسته نه ده کړی. اودخپلی بی ځایه تمی له امله. یـی شاهی حرم سرای هم لوټ کړ اوپرته له دغه بی همتی یی داګستاخی هم وکړه‌چی د شهزاده محمد قاسم لــه میر منی څخه یی چی دشهزاده کامران خور وه د هغی مرصع کمر بند یــی‌چی دوه لکه روپی بیه یی لرلــه په جبر سره دوست محمد خان دخواجه سرایا نو په ذریعه تر لاسه کړاو هغی‌کامران ته داحال‌وروليږه. کامران‌ډیر په غصه شو او قسم یی وکړ چی له دوست محمد خان څخه بــه بدل واخلی او کله چی فتح خان دغه خوا شینو ونکی خبر واوریده دی‌هم‌ډیر په غصه شو او دوست محمدخان یی ملامت او ورته ویی لیکل کلــه‌چی ډرستون شم نو تا به ژونــــدی پرینږدم، او دوست محمد خان هم له دغه تهد ید څخه وبیریده او خپل ورور محمد عظیم خان ته چی پـــه کشمیر کی و ورغی.

شهزاده کامران چی له وړانــدی‌څخه هم د فتح خان له جاه او جلال سره یی حسد لاره ، په دغه فکرچی‌د شاهی حرم په نسبت به دغه بی حرمتی او ګستاخی دوزیر فتح خان‌په مشوره شوی وی، دغه زړه ور سردار چی دایران بی شمیره لښکروته یی ماتی ورکړی اوپه خپله هم زخمی شوی و په هرات کی ړونــدکړ. هغه وخت چی ړوند وزیر فتح‌خان کند هار ته ورسیده او شاه محمودد شاه دوست دغه حال ولیده پـــه ښکاره یی ډیر افسوس وکړه

خو کله چی بارکزی قبیلی هغه تیری ولیده‌په تیره‌بیا دپاینده خان زامنو چی شمیر یی اوولس تنو ته‌رسیده او ټول ځوانان او د قــوی ارادي خاوندان‌وو، داسی‌سلااومشوره یی وکړه‌چی‌دشاه‌شجاع اودسدوزی کورنی‌جړی‌له بیخه‌وباسی اوله درانی‌کور نی ځخه هیڅ یو به هم پا چــا یی‌ته نه پریږدی او سید میر واعظ*چی د صحیح نسب خاوند اوسید دی پا چا کړی او ټول له هغه ځخـــه اطاعت وکړی چی دغه خبر شاه‌شجاع چی په دغه وخت په پیښور کی وواوریده کابل ته راغي او هغه یی نکو افغا نانو (پښتنو) چی نوموړی‌سید ته یی عقیده لرله دغه خبــر واوریده ، نو له شاه شجاع ځخـــه وګر ځیدل او دده په ضد راوپاریدل په دغه وخت کی شاه شجاع په دی‌وپو هیده چی د هغه اوسیدل نورنو په افغا نستان کی ګران دی، نوځکه یی په (۱۸۰۸) عیسو ی کال د افغا نستان له سلطنت ځخه لاس په سرشو او پنجاب ته لاړ له بلله پلــوه شهزادم کامران د فتح خان دږوندولوسزا لږه وګنهله او په ډیره بی رحمی سره یی هغه غزنی ته نږدی پـــه حیدر خیلو کی وواژه، او دده پـــه مرګ سره ټو لو افغا نا نو (پښتنو)سدو زیان د ملك دښمنان وګنهــل او هری‌خواته د بغاو تو نو اوفسادونو لمبی بلی شوی چی محمود او کامران دغه اور مړ نشو کړای، نو ځکـــه دواړه هرات ته لاړل هلته محمــود شه موده وروسته مړ شو او کامران‌د هرات د صوبی حکمران شو.

تناه سیدیی وواژه * هغه وختچی کابل اودهغه د شاو خوا اوسید ـ

---

*میرواعظ د کابل د شمیه کالو له خوا وواژه شو، زیارت یی د کابل د ښیار په بارانه کی دی.
(رشاد)

# د بارکزی قبیلی حکومت

د سدوزی کورنی د له مینځ تللو وروسته دسردار پاینده خان بارکزی، زامنو کابل ،غزنی، کندهار او پیښور پخپلو منځو کی سره وو یشل چی کابل او غزنی ددوست محمد خان په برخه ورسیده چی په حقیقت لی د ټو لو ورونو سر کښی و، ددغو شخړو په نتیجه کی د افغانستان سلطنت د ډیرو کړاوونو سره مخامخ شو او له اټك ځخه ختیځ خواته ملکو نه او کشمیر رنجیت سنګ و نیول او بلخ د بخارا پاچا د خپلی واکمنی په قلمرو کی شامل کړ او د سند امیران هم بیل شول، یوازی هرات دمحمود زوی کامران په قبضه کی پاتی شو، په نور افغانستان بارکزیانو سلطه ټینګه کړه.

هغه وخت چی شاه شجاع له افغانستان ځخه خارج شو دلاهور والی رنجیت سنګ ځخه د کوه نورالماس واخیست او په (۱۸۰۹) عیسوی کال یی د لودیانه په ښار کی انګریزانو ته پناه ور وړه ، نو انګریزی سرکار هم د ترحم له مخی‌ده ته د میاشتی ځلور زره روپی وټاکلی خو خرنګه چی د شاه شجاع په سر کی د پاچاهی فکر

وتل‌یی دافغانستان دنیولو نیت‌لاره‌په دغه تر تیب یی په (۱۸۳۳عیسوی کال ) د مارچ دمیاشتی په (۱۲)نیټه‌درنجیت سنگ سره سلا وکړه او دواړو سره هم فکر او دافغانستان‌نیو لو په هکله یی یو تړون لاس‌لیك کړ.

انگریزانو یوازی د څلورو میاشتو تنخواه په پیشکی ډول ورکړه.او بل هیڅ ډول یی په دغه تړون کی اشتراك و نه کړ.

شاه شجاع د رنجیت سنگ په مشوره د سند له لاری چی د سند امیران یی هم خپل کړی وو، کندهارته ورننوت او دکندهار کلا یی محاصره کړه، په دغه وخت کی امیر دوست محمد خان په ډیره سختی یو لښکر راټول او ځان یی کندهار ته ورساوه، کهن دلخان (کندل خان) پردلخان او نور هم له محاصری نه خلاص او له ده سره یو ځای شول او په جگړه یی پیل وکړ په دغه جگړه کی شاه‌شجاع ماتی وخوړه او د هرات خواته ولاړاو له دغه ځایه بیر ته هندوستان ته ستون شو.

# په ختیځ افغانستان باندې دسکانو تسلط

دسکا نوپه فرقه کی لومړی سړیچی ډیر شهرت یی وموند دمهان‌سنگ زوی رنجیت سنگ و دغه داقبـــال‌څښتن سردار په (۱۷۸۰) عیســوی کال کی زیږیدلی و ،کله چی کوچنیو نو ددانو (چیچك) په ناروغـــی اخته او په هغه اندازه دانی وربا ندی راوختلی چی دژوندی پاتی‌کیدوطمع یی نه وه،خو وروسته له دغی‌ناروغی‌جوړ مگر خپله یوه ستر گه یی لـــه لاسه ورکړه.

په (۱۷۹۷)میلادی‌کال کله‌چی‌شاه‌زمان دکابل پاچاشو پرپنجاب‌یی‌یرغل وکړ خو په (۱۷۹۸) عیسوی کال‌له‌لاهور نه دبیرته تگ په وخت کـــی رنجیت سنگ هغه وخت‌له شاه‌زمان‌سره مرسته وکړه او دهغه توپونه یی دجیلم له سین څخه راوا یستل،ددغه خدمت په بدل کی شاه زمان هغه ته په لاهور باندی د قبضـــی‌اجازت ورکړ .

په دغه وخت نی چیت سنگ اونورو په لاهور باندی تسلط درلود، ر نجیت سنگ د پا چا پـــــــه ا جا ز ه یـــــــــو پو ځ بر ا بــــر

او لاهوريي ونيوه او ورځ په ور ځ‌يي دتوري په زور خپل قلمرو پراخاوه په (۱۸۰۱) عيسوى كال يې داټك كلا له پښتنو څخه دپيسو په مقابل ني واخيسته .

د (۱۸۰٦) عيسوى كال دجنورى دمياشتي په دريمه نوموړي له شاه شجاع سره چي له افغانستان څخه يې لاس‌وهلى و او هند ته تللى و، ونتل حودبى سمتي او طمع له امله نوموړي له شاه شجاع څخه دكوه نور، الماس په زور واخيست .

په (۱۸۱۸) عيسوى كال كښي نوموړي د يوه پوځ په ملګر تيا داټك لويديځ خواته يرغل وكړ او دسه يې خيراباد او جهانګيره نلوى ونيول ، د نوامبر دمياشتي په شلمه پيښور ته ورسيده هلته ددوست محمد خان ورور يار محمد خان دده سره د مقابلې توان په ځان كې ونه ليده او د خيبر خواته وښتيده، مګر د رنجيت سنګ د تګ سره سم نوموړي بيا په پيښور قبضه ټينګه كړه .

په (۱۸۱۱) عيسوى كال رنجيت سنګ د منكيرا كلا اوليه ونيول د منكيرا نواب ته يې داسمعيل خان ديره ورکړه ، په (۱۸۲٤) عيسوى كال د سردار هري سنګ نلوا په سلا او مشوره چي نوموړي يو سپه سالار و رنجيت سنګ بير ته پيښور خواته راو خوځيده او دلته تر يوي سختي جګړي وروسته چي په هغې كې پهولاسنګ اكالي هم ووژل شو، د هري سنګ د زړور تربله ديده محمد عظيم خان دراسی نيښتي ته مجبور شو. او (۱۸۲۵) عيسوى كال د مارچ د مياشتي په اوسمه نيته پيښور بير ته دسكانو لاس ته ورغى .

سكانو په (۱۸۲٤) عيسوى كال دبنو ضلعي ته هم لښكر وليږه په (۱۸۲۹) عيسوى كال دسيد احمد صاحب په نامه يوه هندوستاني سړي دسكانو په خلاف دجهاد چنده ور پوله او ديوسفزيو په سيمه باندي يې قبضه ټينګه كړه. له دغې ورځې دستا نه سيمه چي دمهابن دغره په لمنه كې موقعيت لري او دسندرود په غاړه پرته ده دمجاهدينو په مركز باندي بدله شوه، په (۱۸۳۱) عيسوى كال نوموړي سيد چي خلكو په ميا صاحب باله دهزاره ضلعي په بالا كوټ نومي سيمه كې تر ښوجګړو وروسته شهيد شو. تر هغه وروسته دافغانستان ختيځي سيمي يعني پيښور، هزاره او ديره جات د سكانو لاس ته ورغلى، خو د پيښور څخه پرته يې په نورو ضلعو كې پوره تسلطنه درلود او هلته يې چاوني موجودي نه وي، په پيښور كې هم ددوست محمد خان معاند ( )

وروور سلطان محمد خان د هشتنگر(هشننغر) ، دوابه کوهاټ د سیمو په ور کولو سره د سکانو قبضــه او تسلط ټینګ کړ، همدغه سلطان محمد خان و چی د خپلی منصوبــه بازی او غلط تدبیر په وجــه یی د امیر دوست محمد خان اراده دسکانوسره د جهاد په مقصد شنډه کړه د رنجیت سنګ دحالاتو له خیر نــی څخه دا خبره څر ګند یږی چی دی د

زړور تیا او پوهی سره سره دراتلونکی له پاره د ځان سره کوم فکــر نه لاره، پخپل ژوند کی یی د خپل نوم د لوړولو له پاره یی ډیر کوښښ

وکړ، مګر داسی هیڅ کار یی ونکړچی دده ترمړینی وروسته یی پــه کار شی. داتلك دلوید یځو څنـــدوپه سیمو باندی دده یرغل نو موړی ته ډیر زیا نونه ورواړول، او دبی‌شمیره پیسو دمصر ف سره سره یی خپـل

زړه ور سپه سالار هری سنګ هــم له لاسه ورکړ چی دا هم دده لپاره لوی زیان و. که دغه مهاراجا لږ دراتلو نکی په فکر کی وای نو دده‌د واکمنی له پاره اټك یاد سند رودلوید یځه خوا یوه معقوله او ښــه

پوله وه، ددغه زیان له سببــه درنجیت سنګ وینا ده چی هری سنګ زما په غاړه کی پیښور دحیوانا تو په شان‌په‌غاړه کی‌غړوندی راواچاوه.

# دکابل په سلطنت اولو پیرځ
# افغانستان باندی دانگریزانو یرغل

تر اوسه داسی کوم قوی دلیل نه شته چیءد هغه له مخیءدبل ملك په واکمنی کی لاس وهنه منا سبه او ضرور وگنل شی ، مگر په هغه وخت کیءچی ځینی کارونه د فوځ اوزور له لاری باید حل شی، چیءهغه دلایل په لنډ ډول لیکل کیږی.

**کله چی سکانو په ختیځ افغا**نستان قبضه ټینگه کړه، نودوست محمد خان غوښتل پیښور بیر تــه ونیسی خو څرنگه چی ده **یــوازی نشواى کولای دغه کشا له حـــل کړی نو ځکه یی دبخارا او ایــران** پا چا ها نو څخه د مـــر ستوغوښتنه وکړه .په ایران کی دفتح علی شاه ترمړینی وروسته دمیرزاعباس زوی محمد شاه پا چا و.دغــه نوی او کم عمره پاچا هیله من وچیءد خپل مر حوم پلار اراده د هــرات نیو لو په باب عملی کړیءاو داســیءفکر یی کاوه چی د هرات تر نیولــو وروسته به په افغا نستان باندیءدایرا نیا نو واکمنی داتك تر سینده پوری ټینگه شی او مخکی تــر دیءایرا نیا نو د روس پا چا د یرغـــل له ویری د انگلستان له پا چـــاڅخه مر سته غو ښتی وه. ددغـــه

مقصد له پاره چی دی خپل ملـــكـ د بهر نيو دښمنا نو څخه وژغوري نه داچي په خپله په نورو هيوادو باندی يرغل وکړی، نو موږی تـــه دانګلستان څخه نغدی پيســی او دايرا نی لښکرو د روزلو له پاره څو تنه انګريزی افسران راليږل شوی‌وو، چی د هغوی د نظا می روزنـــی په اثر ايرانی پوځ که څه هـــم دروسانو له پوځ سره نشوپر تله کيدای خو د افغا نستان له سپاهيانوڅخه ښه وو.

کله چی محمد شاه د هرات دنيولو نيت وکړ نوهرو مرو يی بايد دروس پا چا اجازه تر لاسه کړی وای ياپه بل عبارت دروس پاچا اجازه ضرور وه، انګريزا نو غوښتل چی دايـــران‌پا چا د افغا نستان د نيولـــو اراده ونکړی خو دوی دروس دنماينده‌په مشوره او تشو يق په هرات باندی ديرغل‌نيت وکړ، او پـــه (۱۸۳۵)عيسوی کال يی دهـــرات، کابـــل‌او کند هار دنيولو په نيت پوځونـــه‌راتول کړل، څرنګه چی وړاندی تر دی دروس او ايران تر مينـــځ نفاق‌موجود و اوپه دغه يرغل کی دروس له نماينده سره سلا او مشوره شوی‌وه، نو ځکه دلته شك مينځ ته‌راغی چی له دغه يرغل څخه به دروس‌کوم بل مرام او مقصدوی، په همدغه‌وخت کی دکندهاری سردارانو چی ددوست‌محمد خان ورونه وو. خپل يومعتمد ايلچی، لی ددی پيغام سره دايران پاچا ته ورولیږه چی‌دير غل‌په‌وخت کی به موږ‌ له تا سره يوشو او دايرانی نادر شاه په څير به ترډيلی پوری وړاندی تګ وکړو، دايران‌پاچا دربار کی‌ددغه نماينده ډيرتودهر-كلی وشو او دكند هاری سردارانوخبره ومنل شوه که څه هم دايران دپاچا وزير دانګلستان نماينده‌ايلس‌ته ويلی وو چی دا ايلچی ليونـــی دی او، دايران پاچا اصلاء په هندوستان باندی ديرغل نيت نـــه لری.

لنډه داچی‌د (۱۸۳۶) عيسوی‌کال‌دسپتامبر په مياشت کی دايران‌پاچا دهرات خواته خپلی لښکری ولیږلی، دهرات والی شهزاده کامران خپـــل استازی دسولی له پاره ورو لیږه‌دانګلستان نماينده‌هم دسولی مشوره ورکړه او بلکی په دغه بـا ب یـــی‌ټينګار هم وکړ. خو کله چی دروس نماينده راورسيده اود دواړو پـــه‌خلاف يی‌سوله ونه منله اوايرانيانو ته يی دجګړی مشوره ورکړه ،پـــه نتيجه کی ايرانيانو دغوريانو كـــلا ونيوله او ايرانی پوځ هرآت تـــه‌مخامخ خيمی ودرولی، په دغه وخت

کی دکابل والی امیر دوست محمدخان نظر بنکاره نه و، له دی کبلـــه دهند گورنر جنرال لارد اکلنـــد ، یو نماینده چی میجر سکندر بر نس نومیده کابل ته راولیږه چی دکابل امیر* اراده ځانته معلو مه کړی ، مگر ددوست محمد خان نیت بل څه و، هغه دایران داستازی درسیدوله امله برنس ته مجهول مکتوب ورکړاو رخصت یی کړ، ددغه لیك پــه ځواب کی د هند گور نر جنـــرال دوست محمد خان ته ولیـکل چی د سولی په مقصد به انگریزی سرکاردرنجیت سنگ سره منا سبه مرسته وکړی او ته به هم د پخوا په شان په خپله مقبو ضه سیمی سلطـــه ټینگه وی، خو په دغه شرط چـــیدافغا نستان په ختیځو ملکو (سیمو) څه غرض ونکړی خو ددغه لیك ځواب هیڅ ونه لیکل شو، په هغه وخـت کی داسی فکر کیده چی په هـــرات باندی به ضرور دایرا نیانو تسلـط ټینگ شی او همدا راز به د هیواد ، لویدیځی سیمی د رو س لاس تــه ورشی او بیا د انگریزی هند سره مزا حمت دمینځ ته راتللو امکا نات مو جود و، له دی امله داخبره ضروری معلومیده چی دلوید یځو سیمو پــه چارو کی یو څه مداخله وشی پــه داسی حال کی چی د روس یا چا په واو وار لیکلی وو چی په دغو شخړوکی زه هیڅ مقصد نلرم نو د هنـــد اراده ** خو یو نـــا ممکن کار دی.

له بله پلوه شاه شجاع د کابل سلطنت داعی او حقدار و او هــــم داسی پوهول شوی و چی دافغانستان تول خلك دده غوښتو نکـــی دی او دده پلو یان د پارکزیو په پرتله زیات او تر هغو پیاوړی او زورور دی او هم رنجیت سنگ چی په دغه وخـــت کی ددوست محمد خان سره په جګړه بو خت و، د شاه شجاع سره یـــی دوستی لرله، په دغه فکر چی که چیری انگریز رنجیت سنگ او شاه شجاع سره یو شی نو په اسانی سره به وکړای شی چی شاه شجاع دافغا نستان په تخت کښینو ی ، نو پــه هغه وخت کی به د افغا نستان حکومت دهند تابع وی او دهندو ستان او لویدیځو سلطنتو تر مینځ بــــه یو حایل مینځ ته راشی نو له دی

*دلته موء لف د امیر د کلمی پــه ځای د پخوا په شان د والی کلمـه استعمال کړی ده. (ژ بـــا ړ ونکی)

** دلته ښایی د موء لف یا کاتب نه کومه کلمه لوید لی وی اودروس یاچا مقصدد هندنیول وی .(ژ باړ ونکی)

امله د(۱۸۳۸) عیسوی کال د جون د میا شتی په (۲٦) نیټه ددوی درو (شاه شجاع، انګریزانو او رنجیت سنګ) تر مینځ په لاهور کی یو تړون لاسلیك شو. او ددغه تړون له مخی یو انګریزی پوځ له بنګال څخه دسند رود په خوا واستول شو او هلته له هغه سره د بمبئی دمرکز خاص پوځ یو ځای شو په دغه موده کی ایرانی محمد شاه د هرات په تسخیر او نیو لو بوخت و، لکه څنګه چی د (۱۸۳۸) عیسوی کال د جون د میا شتی په (۲۳) یی دروس دولت نما ینده په مشوره په یوه لوی یرغل لاس پوری کړ. خو پـه دغه جګړه کی یی نه یوازی ماتـه وخوړه بلکی زیات زیانو نه هـم ور وړسیدل ، او افغا نانو (پښتنو) په ډیره میړانه هغه په شا وتمبول، خو سره له دی هم ایرانی پوځ هرات محا صره کړی و تر څو د همدغـه کال د جولای د میا شتی په لسمه مستر مکنیل د انګلستان نما ینده کرنیل استادهد له دغه پیغام سره دایران پاچا ته ورواستاوه چی کـه چیری په هرات باندی تیری تـه دوام ورکړی شی نـو دا بـه دانګلستان پا چا د نارضا یت اوخپکان سبب شی، دغه پیغام دایران پـه والی تاء ثیر وکړ.

لکه څنګه چی یی داګست دمیاشتی په څلیرویشتمه نیټه د پوځ بیرته تګ منظور او د (۱۸۳۸) عیسوی کال روس پاچا هم خپل نماینده راوغو- پوځ بی له دی چی د کامران سره یی کومه سوله او یا عهد نامه امضاء کړی وی، دایران په خـوا روان شود روس پا چا هم خپل نما ینده راوغو ښت او د هغه په ځای یی یو بـل نما ینده په ایران کی وټاکه او د کند هاری سردارانو عهد نامـه ونه منل شوه او ددغه پیښی خبر انګلستان ته واستول شو اوځرنګه چی دا امر د (۱۸۳۹) عیسوی کال دمارچ د میا شتی په پنځمه نیټـه تر سره شو چی په دغه وخت داسی ویل کیدل چی انګریزی پوځ افغـانستان ته د راتلو نیت لری نو له دی څخه دا خبره څرګند یږی چـی دروس پا چا نه غوښتل ددوی پـه مقا بل کی کوم مزاحمت مینځ تـه راوړی. لنډه دا چی د انګریزی سرکار پوځ ورووسته تر هغه چی د سنـداو بلو چستان باغی او متمرد امیران یی وټکول په همد غی لار پـه (۱۸۳۹) عیسوی کال د فبروری د میاشتی په (۲۲) نیټه د سیوان څخه د بولان دری لـه لاری د کند هار خواته راروان شول، په داسی حال کی چی نولس زره ، دری سوه او پنځوس تنه دانګریزی سرکار پوځ او شپږ زره تنه د شاه شجاع پوځ

ور سره و داوبو دکمبنت له املــه دغه پوځ دډیرو دبرونو له کاللــو وروسته دهمدغه کال د می د میاشتی‌په څلورمه نیټه کندهارته ورننوت، ددغه ځای سردار وتښتیده او دهمدی کال دمی د میا شتی په اتمه شـاه شجاع په کند هار کی ددوهم ځــل‌لپاره د افغا نستان په تخت کښینول شو او وروسته تر دی چی دغه پوځ‌شپږ اونی په کند هار کی تم، شو بیا دترنك له لاری دغز نی په خــواوروان شو او تر یوی سختی جګړی وروسته د (۱۸۳۹) عیسوی کال دجولای د میا شتی د (۲۳) نیټی په سهار انګر یزی لښکرو په یوه‌سخت‌برید پیل وکړ او کله چی د غزنــی دروازه یی دبارو تو په ذریعه ماته کړه نوغزنی ښاریی ونیوه اوهغه وخت چی دغه‌خبر دوست محمد خان‌واوریده‌نو هك حیران‌ شو او سمد لاسه یی د ســو لــی پیشنهاد وکــړ.

خو کله چی د انګریزا نو دسولی‌شرایط ده ته وویل شول هغه یــی دسختی په اثر ونه منل او ځر نګه‌چی‌یی په ځان کی د مقا بلی تــوان ونه لیده نو ځکه د ترکستان خواته وتښتیده، او توپ خانه یی انګریزی پو ځو نو ته په لاس ورغله اودوی‌په داسی حال کی چی له دغی فتحی څخه ډیر خوشحا له وو کابل تــه‌ننو تل او د ځینو غلجی سردارانــو پرته یی ټول ملك تابع شو.

دامنیت د ټینګو لو لپاره جنرال‌سر جان کین د کلات کلا ونیو له‌او تر هغه وروسته د یوه پوځ پــه‌ملګر تیا د اټك له لاری بیرته دهند خواته ولاړ او یو څه پوځ یی د شاه‌شجاع دساتلو له پاره په کابــل کی پریښود.

امیر دوست محمد خان بخارا ته‌ولاړه او د بخارا له پاچا څخه یــی د مرستی غوښتنه وکړه، خو دبخاراپا چا ددی پر ځای چی مرسته ورسره وکړی هغه یی بندی کړ. امیردوست‌محمد خان د (۱۸۴۰) ع کال داګست په میا شت کی‌له زندان څخــه‌وتښتیده، هغه یو څه پوځ راټــول کړ. لومړی یی د بامیانو سره نږدی‌او دوهم ځل یی دغور بند دری تــه نږدی دانګریزی پو ځو نو سره پــه جګړه لاس پوری کړ خودواړه ځلــه له ماتی سره مخا مخ شو. کله چی‌امیر دوست محمد خان ځان افســر ته سپاره. انګریزانو ته یوازی دیوه‌تن په ملګر تیا کابل ته راغی اوځان یی دانګریزی پوځ افسر ته وسپاره.انګر یزانو دی له هغه ځای څخــه هندو ستان ته ولیږه او هلته دهنددحکو مت لخوا دکال دوه لکه روپی تنخواه ورته وټاکل شوه او پــه لودیانه کی داوسیدلو امر ورتــه

وشو، تر هغه وروسته په افغــانستان کی واره واره جنګونه موجود وو، د هما غه کال داکتو بر پـــه میا شت کی افغا نا نو (پښتنو) د کابل او جلال آباد تر مینځ لاره بنـــده کړه او کله چی د انګریزی پوځ یو تولګی د جنرال سیل په مشری دلاری دخلاصولو له پاره له کابل نـــه جلال آباد ته روان و نو له هغوی سره په ډیره زړورتیا وجنګیده او ځان یی جلال آباد ته ورساوه، خــوهلته بیا محاصره شو، په دی وخت کی په ټول افغا نستان کی دشورشونوجنډی پورته شوی. د ۱۸٤۱ عیسوی کال د نوامبر د میا شتی په دویمه سر الکساندر برنس د کابـــل پـــه ښار کی ووژل شو که په هغه وخت کی د کابل د پوځ کما نیر (قوماندان) ددی فسادونو مخه نیولی وای. نودومره ستو نزی به مینځ ته نــــه وی راغللی، مګر زړه نا زړه هغـــه خپل وخت له لاسه ورکړ او وروسته ددوست محمد خان د زوی محمد اکبرخان په چل او وعدو باندی داعتبار ځخه دا نتیجه حاصله شوه چـــی د(۱۸٤۲) عیسوی کال د جنوری پـــه میا شت کی (٤٥۰۰) جنګیا لـــی سپاپان او دولس زره بهیر کی خلک دکابل نه د هند په خوا روان شول* چی له هغو ځخه ځینی یی دواورو د اوریدو له کبله او ځینی یی دمحمداکبر خان دچل او فریب له امله له مینځه ولاړل، یوازی یو ډاکتـرژوندی پاتی شو. **

ددی خوا شینوونکی خبر داوریدوسره په کندهار او غزنی کی هـــم شور شونه مینځ ته راغلل د بـــی وفایی خبره خولا داده چی صفدرجنګ چی د هغه پلار شاه شجاع دانګریزانوپه زور د افغا نستان واکمنی ګټلی وه هغه هم د جنرال ناټ د لښکروسره په کند هار کی وجنګیده، خو ماته یی وخوړه .شاه شجاع دانتظام دمنځ ته راوړلو له پاره د کا بـــل د بالاحصار له کلا ځخه ووت، پـــه دی وخت کی ددوست محمد خـــان

---

*دغه شمیر انګریزا نو پخپلـــــوکتا بو کی لیکلی دی خو غلام محمد غبار ددوی شمیر اوه‌لس نیم زره بولی (وګ. افغا نستان در مسیـــر تاریخ ٥٦۱ مخ) او احمد علی کهزادیی په بالاحصار کابل ۲/۳۱٦ مـــخ کی اولس زره ښیی. (راشـــــاد )

** دغه ډاکتر برایدن نومیده پـــه ۱۸۷۸ع کال د اووشپیتو کالو پـــه عمر (مړ) یعنی تر دغی غزا وروسته ۳٦ کاله نور ژوندی و. (رشـــاد)

دپلو یانو له خوا چې ورته د مخه پېژندل شوي وو د توپك په ذریعه په نو موړي ځو ډزي وشوي چې له هغو څخه دوي ګولی دده کوم حساس ځای ته ور برابری شوی وی چې د هغو د تپ له امله مړشو. په دغه وخت کې دلارډ اکلینډ پر ځای لارډ البنرا دهندو ستان ګورنر جنرال وټاکل شو. او هندوستان ته راغی نوموړی ته د شاه شجاع تر مړینی وروسته دا مناسبه ښکاره شوه چې په افغانستان کې باید هیڅ ډول مدا خله ونه شي او ددی هیوادخلك هر څوك چې غواړی خپل پاچا

وټاکي مګر دومره امر یې وکړ چې جنرال پالك دی د جلال آباد له لاری او جنرال ناټ دی د کندهارله لاری کابل ته ور شی، اکبرخان دی له کابل نه وشړی انګریزی بندیان دی خوشی، نږدی کلی دی وران او سرکاری پوځ دی بیر ته راستون شی ددی حکم مطابق د (۱۸٤۲) عیسوی کال دسپتمبر د میاشتی په (۱٦) نیټه جنرال پالك تر یو څو

جګړو وروسته کابل ته ورسیده اوجنرال ناټ هم دغلزایی کلات، کرشك، او غزنی کلا ګانو تر ورانو لو وروسته کابل ته ننوت. انګریزی بندیان چې صالح محمد دمحمد اکبر خان په حکم ساتلی وو، نو موړی د شلو زرو نغدو روپو او د میاشتی د زرو روپو پنشن داخستلو په بدل کې (۷۰) اویا تنه انګریزی قید یان د جنرال ناټ لښکرو ته ورسول او محمد اکبر خان له کابل څخه کو هستان ته وتښتیده په دی ډول انګریزانو تش په نامه افغانستان ونیوه او له کابل څخه بیر ته ولاړل او د (۱۸۷۲) عیسوی کال د نوامبر د میاشتی په شپږمه پیښبور ته ورسیدل.

تر هغه وروسته دوست محمدخان د خپلو ټولو خپلوا نو سره یو ځای ددوستی د شرایطو د منلو سره خوشی او د افغانستان دغه لویه لانجه پای ته ورسیده.

په تحریری ډول ددغی جګړی بیان په تیرو پاڼو کې راغلی، خو په افغانستان ددغه جنګ په باب په شفاهی ډول داسی ویل کیږی، کله چې انګریزی پوځ د کندهار له لاری افغانستان ته رانوت ددی سره سمه داسی آوازه شوه چې د سکانو پوځ د پیښبور له لاری افغانستان ته راځی ددغه خبر په اوریدو سره ځینو شاعرانو په پارسی او پښتو ژبه په دغه باب د شعرو نو په ویلو پیل وکړ او خلك یې جهاد ته راوبلل او داسی یې ورته ویل چې له دواړو خوا وو څخه ددین دښمنان راغلی دی، دغو شعرو نو د خلکو په افکارو تاءثیر وکړ، همدا راز

علماء وو هم سپینی جندی وتړ لړد جهاد په باب یی کلی په کلـــی وعظو نه پیل کړل چی د مذهبـــــی تعصب په اساس د خلکو وینی په غورځنگ راغلی له دی امله د کندهار پوځ سره د مقا بلی له پـاره خوارلس زره سپاره او دیرش زره پلی مسلما نان د مقر او غزنی لـه شاو خوا څخه راټول شول، انگریزان تر یوی سختی جگړی وروسته پـه دی بریالی شول چی غزنی ونیســی او غلام حیدر خان د غزنی له بالاحصار څخه دیوه پری (رسی) په ذریعـه راښکته شو او وردگو ته یی پنـاه وروړه* سره له دی چی غزنی نیول شوی و خو بیا هم افغا نان (پښتانه) تر دولسو ورځو پوری د انگریزانوسره وجنگیدل، په دغه وخت کی شاه شجاع الملك د غلجیو مشرانـو اود پښتنو نورو سردارانو ته لیکونه ولیږل او هغه یی داسی وپوهول چی انگریزان زمونږ په هیواد کی غرض او مدا خله نه کوی، یوازی زما دمرستی له پاره راغلی دی او د کابل د چارو دمنظمولو څخه وروسته به د پیښور له لاری بیر ته هندوستان ته ولاړ شی ،نوریی ددوی دخـو شحالی له پاره دا هم لیکلی وو چی د کابل د نیو لو څخه وروسته بـه خیبر د لاری په پیښور یرغل وکړی او مونږ به د سکانو له شر څخـه خلاص کړی چی دا خبر هغوی تـــه ورسیده نه یوازی تسلی بلکـــــی دشاه شجاع په راتلو خوشحال هم شول او دیرو د هغه اطاعت ومانه او ایله جاری او قوی لښکری بیر ته خپلو کورو نو ته ستنی شوی. په دغو جگړو کی د غلجی قبیلی داندړ ښاخ لوی ملکان چی د خپلو قبیلو دلښکرو په سر کی جنگیدلی وودادی:

بخشی خان ، سکندر خان، سراندازخان ، عبد الله خان او بهاول خـــان او د نو موړی قبیلی دترکی ښـاخ مشران مرتضی خـان او میر زاخان او دسلیمان خیلو ملکان مهتر موسی اولوت خان و اودورد گــو ښاخ لښکری دخدای نظر خان، اکرم خان او میر علم خان تر مشری لانــدی جنگید لی وی دفارسیوا نا نو مشر سردار محمود خان اودهزاره قــوم افسران جعفر علی او بختیار علـــی نومیدل .

دغزنی دشخړی تراواریدو وروسته شاه شجاع له انگریزی پوځ سـره کابل ته راغی او امیر دوست محمدخان د څلورو سوو تنو سپا هیانـو سره د کوهستان په خوا وتښتیده اودهغه زوی او ولیعهد محمداکبر خان

---

*حقیقت داسی نه دی ، سردار غلام حیدر خان غازی دجنگ په میدان کی نیول شوی دی ، ددی پیښی تفصیل دتعلیقا تو په برخه کی وگـــوری.

هم د تر کستاق خواتــــه ولاړ .شیر علی خان‌او محمد امین خان هم دزرمت په خوا وتښتیدل او هلته یې پناه یووړه ، شمس الدیـــن خان، محمد افضل خان او سلطان خـان دغلجو، ملك ته د بغاوت د مینځ ته کولو له پاره ولاړل.

شجاع الملك دخان شیرین خـان‌په معرفت دوست محمد خان پــه چل ول سره کابل ته راوغو ښت او انګریزانو ته یې داسـی وښود له چې دوست محمد خان په خپله راغلی‌دی ، کله چې دوست محمد خان‌ونیول شو او هند ته واستول شو، نــو بارکزي او جبار خیل غلجي چـــې ددوست‌محمد خان سره یې دوستي‌لرله د جګړي لپاره تیــار شول، له دوه نیم کاله آرامي وروستـــه ناڅاپه اغتشاش او شوز شو نــــه منځ ته راغلل او ددغه عام او مشهورشورش علتونه چې په دغه هیواد کي مشهور دی پـــــه لانـــدي‌ډول دی :

**لومړی :**

دامیر دوست محمد خان نیول چې‌دهغه په سبب محمد اکبر خان اود امیر نورزامن نورو قومونواو قبیلوته ورغلل او له هغو څخه یې دمرستي غو ښتنه وکړه او ددغو شور شونو په سر کی ودریدل .

**دویم :**

ځینو خلکو ویل چې شاه شجاع، عبدالله خان اڅکزی ، امین‌الله خان تاجك لوګري،مهترموسی خان، عزیزخان اومحمد شاه خان غلجي مشران ، دده افغا نانو اخوند ملا عزیز او د قــوم‌نور مشران راغو ښتي او پــه پټــه یې هغوی ته ویلی چې انګریـــزان‌غواړي دوی‌هم ونیسي او د امیـــر دوست محمد خان په شان یې لـــه وطن څخه وشړی او د شاه شجــاع ددغه بی وفایي علت بی اختیاري‌اود واك‌نه لرلوو نوځکه له انګریزانو څخه ناراض او هم پوهیدلی و چـــې‌انګریزان غواړی ځکو مت پخپل‌لاس کی وساتي او ددوی حکم جاري وی‌او دی‌یوازی تش په نوم پاچا وی .

**دریم :**

ځینو خود غرضبو خلکو داســـی‌تبلیغ کاوه چې انګریزا نو حکم‌کړی چې ټولی منکوحه او غیر منکوحـــه ښځی فاعل مختاری دی، یعنی هرڅـــه چې یې زړه غواړي هغسې ژونــــد کولای شی ،خو ځنګه چې په افغا نا نو کی د ښځی دا ډول آزادی تـــرقتله هم ګرانه ده ، نو لهٔ دی امله وارخطاء شول .

**خلورم :**

دانگر یزانو کمپو نو ته دښمن‌تګ ډانګ هم خلك په غیرت راوستل او په هغوی کی یې له انګریزانو څخه د کرکی او نفرت احساس راوپاراوه .

سر بیره په دغو عواملو د کابل ښار ترخنګ په باغ شاه کی دسید مهدی اتش نفس په خانقاه کی دلویو منصبدارانو د خبر تیا وو نه پرته څو تنو انګریزی سپاهیانو خپل‌آسونه تړلی وو او څرنګه چی د کابل په شاو خوا کی نوموړی ډیر معتقدین‌لرل چی د انګریزانو دغه عمل په دوی ډیرزیات تاءثیر وکړ او هم‌په دغه وخت کی محمد شاه خان جبار خیل یوه ورځ کله چی د سهار لخوا به راپاڅیده داسی وویل چی نن شپه ما دغه بزرګ په خوب‌کی‌ولیده چی راته یی وویل ، ددومره ډیرو مریدانو سره سره بیا هم زمامزار ته بی احترامی کیږی او پـه سپکه سترګه ورته لیدل کیږی نو اوس فوراء خپلی توری راواخلی او دښمن له ملك څخه وباسی فتح‌او سوبه به ستاسی په نصیب وی او دغه خبره چی نوموړی له خپل‌ځان‌څخه جوړه کړی وه. په خلکو ډیر تاءثیر وکړ، او دهغی جګړی په نتیجه کی چی په دغه وخت کی پیښه‌شوه دسر کاری‌پوځ‌ډیر کسان ووژل‌شول.

دسکندر برنس (الکسندر برنس) تر وژل کیدو وروسته دپوځ پاتـی برخه چی د جلال اباد په خوا روانه‌شوه په هغی باندی محمد شاه خان او د غلجی قبیلی نورو خانانو چـی‌دخپلی قبیلی او نورو قومونو څخه یی لښکری راټولی کړی وی یرغـل‌وکړ او د تیزین او کند مك په سیمو کی‌یی د انګریزانو سره په جګـړه لاس پوری کړ او څرنګه چی په‌دغه وخت واوره هم اوریدلی وه نو ځکه په دغه جګړه کی انګر یزانو ماتـه وکړه. همدا راز په غزنی کی مهتـرموسی خان سلیمان خیل دانګر یزانو سره په‌جګړه لاس پوری کـړ، اووروسته له ډیرو جګړویی انګریزانو ته دغزنی څخه دوتلو او کابل یـا کندهار ته دتللو پیشنهاد وکړ ،ور ته یی وویل‌چی تاسوته به کوم‌زیان‌ونه رسیږی کله چی انګریزی پوځ پر دغه خبره اعتماد وکړ او له‌غزنی‌څخه ووت، پر هغوی باندی‌هم افغانانو (پښتنو) یرغل وکړ په دغه وخـت‌کی په غزنی کی هـم ډیره واوره اوزیدلی وه، دافغا نانو ډیرغل پـه سبب دانګریز پوځ ته زیات تاوانونه واوښتل او هغه چی ژوندی پاتـی‌شول ونیول شول او ددغه قیدیانو دخلا صیدو تر ورځی پوری یی ډیری‌ستونزی وګاللی. تر هغی وروسته چی انګریزان په‌غزنی کی مات‌کړای‌شول، ټولو خلکو خصوصاء دغلزی

قبيلی دکابل په خوا یرغل وکړ.مهترموسی سليمان خيل ،سرانداز خان او بهاول خان اندړ، محمد شاه خان اوعزيز خان جبار خيل دخپلو قبيلو په مشری ددغه لښکر افسری په غاړه واخسته اود امير دوست محمد خان زوی وزير محمد اکبر خان د تولوهڅونکی او هم د ټولو په سر کی ودريده . کله چی شاه شجـــاع دشجاع الدوله خان په تدبير ووژل شو. نو په دغه وخت کی پرتـــه له بارکزيو څخه بل څوك د پاچايي وړ نه وو نو ځکه د کابل د قيام څخه ورو سته امير دوست محمد خان له بنده خلاص او بيرته خپل ملك تـه راغی او په تخت کښينا ست، ددغه قيام نتيجه دا شوه چی د انګريزانو نوم په افغا نستان کـــــی بد شو.

## لويديځ خواته :

تر دغه قيام وروسته په لويديځه برخه باندی د بارکزيو تسلط ټينګ و مګر هرات تر (١٨٤٢) عيسوی کال پوری د شاه محمود زوی شهـزاده کامران په لاس کی و چی وروسته نو مو ړی د خپل وزير يارمحمد خان عليکوزی (الکوزی) په واسطـــه په (١٨٤٢) عيسوی کال ووژل شو او يار محمد خان په هرات بانـــدی خپله قبضه ټينګه کړه. کله چی يار محمد خان مړ شو نو د هغه زوی سردار سيد محمد خان دخپل پلار ځای ونيوه او هغه وخت چی ده ته دماغی ناروغتيا پيدا شوه او پـــه نتيجه کی يی په ملك کی بی انتظامی منځ ته راغله نو په دغه وخـت کی عيسی خان کوهی په هرات باندی قبضه ټينګه کړه او له ده څخـــه هرات د سردار محمد عظيم خان زوی سلطان احمد جان د امير دوست محمد خان وراره د ايران شهزاده پـــه مرسته ونيوه .

سر بيره پردی بلخ او کندز چی د بخارا سهيل او د هندوکش شمال ته دجيحون درياب په څنډه واقع د ی په (١٨٥٠) عيسوی کال کـــی دامير دوست محمد خان مشـر زوی سردار افضل خان د پوځ په زوررونيوه او د خلکو د نه رضايت او د ورومشرانو د بغاوت او فسادونو پـــه سبب ميمنه، سرپل او شبر غـــان باندی يی هم قبضه ټينګه کړه، د کابل والی امير دوست محمد خـــان په (١٨٥٦) عيسوی کال دانګريزانو سره يو نوی تړون لاسليك کړ چی دلته يی دموضوع داوږدوالی په سبب له ذکره څخه ډډه کيږی، خو لنـدمطلب يی دادی چی نو موړی بـــه د انګريزی سر کار سره تل دوستی کښی په دی دول انګريزی سر کار دی دول انګريزی سرکار دهغـــــه سره د دوستی اړيکی ټينګی کـړی. د (١٨٦٢) عيسوی کال په پيل کی يوه تيمنی سردار چی عبد الغفور خان نو ميده او د غور د سيمی دتيوره د علاقی مشر و د کورنی دښمنی په

سبب یی خپل یو خپلوان چی دفراه‌د سیمی اوسیدو نکی و وواژه، دفراه مضبوطه کلا دکند هار او هـــرات په لار کی پرته ده، د تیمنی سردار ددغه ظلم او تیری په سبب دامیر دوست محمد خان زوی محمد شریف خان چی د نو موړی کلاء حکمران وپه قهر شو او له خپل پلار امیـــر دوست محمد خان څخه یی ددی اجازه وغوښتنه چی عبدالغفور خان ته سزاء ورکړی او امیر دوست خان تر څه ځنډ نه وروسته هغه ته اجازه ورکړه. کله چی دهرات والی سلطان جان ددغه حال څخه خبر شو نو اعتراض یی وکړ دسلطان، جان ښځه چـــی دامیر دوست محمد خان‌لرروه دخپل زوی شهنواز خان سره یو ځـای دهرات نه په دی غرض د فراه خواته ولاړه چی ددغو کور نیو تر منځ کوم فساد او جګړه منځ ته رانشی. دمحمد شریف خان تر لید لو وروسته داخبره داسی مشهوره شوه چی دامیر دوست محمد خان د لور د غوښتنـــی په سبب عبد الغفور خان وبخښل شو، عبدالغفور خان ددغی خبری پـــــه اوریدو سره خپلوملګرو ته دخوریدو او هری خوا ته دتللو اجازه ورکړه په دغه وخت کی محمد شریف خان ناڅاپه دشپی لخوا پر عبد الغفورخان باندی یرغل وکړ، او هغه تیښتی ته مجبور شو اود نوموړی ټول ملـــك محمد شریف خان ته په لاس ورغی. نوموړی عبدالغفور خان ،خپل موبی،دهرات والی سلطان جان ته ورغی.

دمارچ دمیاشتی په پیل کی سلطان‌جان دعبد الغفور خان سره دمرستی له کبله دسبزوار (شینډنډ) خواته چی دهرات او فراه تر مینځ موقعیت لری وخوځیده. دهغه سره اته زره‌سپایان، دری توپونه او ددغو پرته په زیات شمیر ایله جاری *سپاهیان‌هم ورسره وو کله چی دغه لښکـر خلعت ګاه ته چی له فراه نه څلورنیم میله فاصله لری ورسیـــــده په دغه وخت کی دامیر دوست‌محمدخان‌نوی ځوان شوی ځوی سردار سیف‌الله خان دفراه په کلا کی وله ده سره‌څلور ټولګی پلی سپایان، دوه سوه ایلیچیان*، دوه سوه سپاره اوڅلور اړه توپونه هم موجود وو، خودکلا

---

*جزا یلچی یا جزائر چی ـ تفنګداران
جزائل یو راز اوږد توپك و.سپك یی جنګیاً لو پراوږو اخیستل اودرانه یی پر اوښانو یا پیلانو بارول .
حمید مومند په نیرنګ‌عشق کی‌ویلی‌دی
جزائل چی واخلی اور کله پتیږی
که هر څو یی پټوی لا ځرګندیږی
داسرار صمدی په تعلیقاتو کـی دجزائل اوږده اووه‌ اته فوټه ښودل شوی دی . (رښاد)

دروازی دفراه دخانانو په لاس کی وی، تر نولسو ورځومحاصری شخه وروسته ددغو خانانو له جملی شخه خان‌محمدخان عیدوخیل ،جبارخان نورزی اومحمدخان.

اڅکزی دروازه‌خلاصه کړه سیف‌الله‌خان‌مجبور شوچی کلا پریږدی اما ددی له پاره چی ښځی په کلا کی وی نـــومحفوظ پاتی‌شو. خود سپایانو شخه وسلی وا خیستل شو ی‌اوله کلا شخه بهر وایستل شول او هغه وخت چی دغه خوا شینوونکی‌خبر په جلال‌ابادکی امیر دوست‌محمدخان ته ورسیده، نو نوموړی سمد لاسه دکندهارمشرانوته لیکونه ولیږل‌او دمحمد امین‌خان اطاعت ته یی راوبلل او دجلال‌ابادکابل، غزنی او کوهستان دسیمــــی خانان یی‌دلال‌پوری سعادت خان‌سرەدی ته راوبلل چی دخپلو ملګـرو، سره دنوکری له پاره حاضر شی اوخپله ترلږتم‌کیدو وروسته دکندهار پرخوا روان شو اود (۱۸٦۲)عیسوی‌کال دجون دمیاشتی په نهمه نیتـه ګرشك ته ورسیده، دجون په (١٦) له کومی مقابلی پرته دهلمند لــه سیند شخه پوری ووت* اود فراه‌خواته روان شو او تر یوی سختــی محــا صــــری نـــه وروستــه د کلا حاکم میر افضل خان ددغه کال دجون د میاشتی په (۲۹) فراه امیردوست محمد خان ته وسپارله او د دغه مطلب د تر لاسه کو لو وروسته امیر دوست محمد خان پریکړه وکړه چی هرات ونیسی او هغی خواتــه‌روان شو او د سلطان خان پوځ چی غوښتل یی‌فراه ته راشی‌په شاوتمبول‌شو .

د جولای د میا شتی په (۲۸) دامیر دوست محمد خان لښکرو دهرات په محاصری پیل‌وکړ ددغی اوږدی‌محا صری په دوران کی چل اودوکه مو جوده او له یوه لښکر شخه بـل‌لښکر ته د سپا یانو تیښته ډیره‌وه.

ددغی محاصری په دوره کـــی‌دسلطان جان میر من چی ډیره پوهه ښځه او د امیر دوست محمد خـان‌لور وه له جهانه ستر ګی پټی کړی. د (۱۸٦۳) عیسوی کال د اپریـــل‌د میا شتی په شپږمه پخپله سلطان جان هم مړشو، او اکثرو خلکوداسی‌فکر کاوه چی نو موړی ته په زهر

---

*دلته ګرشك او هلمند وړانــدی‌وروسته راغلی دی- څوك چی لــه کندهاره فراه‌ته ځی دهلمند تررودچی پوری وزی ګرشك ته رسیږی.

ورکول شوی وی او په دغه وسیله به وژل شوی وی. خو سره له دی هم امیر دوست محمد خان د هرات نیو لو کلکه اراده لرله. تر څه مودی پوری د مرحوم سلطان جان‌زوی شاهنواز خان په میرانه د هرات له ښار څخه دفاع وکړه، خو په پای کی د (۱۸۶۳) عیسوی کال دمی میاشتی په (۲۷) اوه ویشتمه امیردوست محمد خان په کلک یرغل لاس پوری کړ او د کلاء د دروازی د سپا هیانو دغداری په سبب هرات ونیول شو او دد غی فتحی خبر لاخپور شوی نه و چی د (۱۸۶۳) عیسوی کال دجون د میا شتی په نهه نیټه یا په (۱۲۸۰) هجری کال امیردوست محمد خان له جهانه سترگی پټی کړی * او تر ده وروسته امیر شیر-علیخان چی د خپل پلار له خوا ولیعهد تاکل شوی و پاچا شو.

امیر شیر علی خان، محمد شریف خان په هرات کی پرایښود او په خپله د شاهنواز خان سره چی په نظر بند دول یی نیولی و بیرته کابل ته راستون شو. او په دغه وخت چی امیر شیر علی خان د خپل پلار ځای ونیوه نو ورونو یی له ده سره دمخا لفت جندی اوچتی کړی او تر ټولو مخکی محمد اعظم خان چی د خوست او کرمی د سیمی حکمران و دشیرعلی خان په حکومت اعتراض وکړ او پاچایی یی دمحمد افضل خان حق وگڼله ځکه نو موړی دمحمداعظم خان سکه ورور او د مرحوم امیر دوست محمد خان تر ټولو مشرزوی و، خو شیر علی خان دغه خبره ونه منله، کله چی محمداعظم خان یاغی شو نو په دغه وخت کی دشیر علی خان زوی دمحمد رفیق خان په ملگری تیا مخی خواته یرغل وکړ او د خوست او کرمی سیمی یی چی محمد اعظم خان په لاس کی وی ونیو لی .او محمد اعظم خان د پوځ دنه رضایت او دار له کبله ددوی سره مقا بله ونه کړای شوه نو ځکه یی دځان دخلاصون له پاره خپل ټول شیان پریښودل او یوازی د (۲۵۰) سپرو سره د کوهات سیمی ته چی د انگریزا نو د سلطنت په حدود کی پروت و پناه یووړه او هلته یی له میجر هوجمش سره چی د پیښور دضلعی کمشنر و وکتل او د پنجاب دحکو مت دامر سره سم په ډیره مینه ده ته هر کلی وویل شو او په راولپنډی کی د کورنیو شخړو اوجگړو تر پای ته رسیدو پوری ده ته داوسید لو ځای ورکړل شو او دمیلمه په دول لومړی دوره ځی یو نیم سل

---

*دامیر دوست محمد خان دمړینی دتاریخ په باب د تعلیقا تو برخه وگورئ.

روپی خوځ ورته ورکول کیده، خوهغه وخت چی د سپروشمیر یـــی کم شو نو بیا انگریزی سرکار دورځی ورته پنځوس روپی وټاکلی او تر نن ورځی پوری په راولپنډی کی‌دی.

کله چی محمد اعظم خان په دی‌ډول د شیر علی خان په ذریعه له ملك څخه وشړل شو، نو شیر علی‌خان محمد افضل خان ته چی په دغه وخت کی دبلخ والی ومتوجه شو،اوهغه هم دکابل په لور شیر علی‌خان سره دمقابلی له پاره راروان شواوپه دشت سفید کی ددواړو لښکـرو تر مینځ خونړی جګړه پیښه شوه ،څرنگه چی محمد افضل خان زړه ور سپه سالار او پوځ یی هم ډیر منظم‌و نو ځکه شیر علی خان ونکړای‌شول هغوی ته ماته ورکړی. له دی‌امله شیر علی خان هغوی ته دسولـــی پیشنهاد وکړ او دخو وړو شرطونوپه منلو سره دُدواړو خواوو ترمنځ سوله وشوه او په مزار شریف کی دواړو ورو نوپه قر آن قسم‌وکړچی له دغو شرایطو څخه به سر نــه غړوی او کله چی په دوهمـه ورځ محمد افضل خان‌دشیر علی خان‌دلیدلو‌له پاره دهغه دربار ته ورغی نـو شیر علی خان له خپلی ژمنی څخه واوښت ،خپل قسم یی مات او محمد افضل خان یی ونیوه دهغــه زوی‌عبد الرحمان خان وتښتیده (دبخـارا پاچا ته ورغی او له هغه څخه یـی‌دمرستی غوښتنه وکړه. شیرعلی‌خان دخپلی دغی عهد شکنی په سبب په ټول افغا نستان کی بد نامه او خپل اعتبار یی له لاسه ورکړ.

دکند هار حاکم محمد امین خـان،محمد شریف خان او دشیر علی‌خان نور څو ورونه دده څخه بیـزاره اوخود مختاره شول چی ددوی په مقابل کی شیر علی‌خان پوځی تیاری نیسی،اوس باید ولیدل شی ددغو کورنیو شخړو او فسادو نو پای به څه وی.خو پیل یی ناقص دی.

دلویدیځ افغا نستان ټول عایدات‌دبلخ دسیمی په ګډون د ځمکـی حاصلاتو ، سودا ګری او نورو لـه درکه دکال تقریباٌ یو کروړ (لس میلونه) روپی دی چی لـــه دغـی‌جملی څخه پنځوس لکه دکابل کنـد هار او د افغا نستان له نورو اصلی بر خو څخه او پنځوس لکه د هرات او ددغه ځای له توابعو او پاتـــی‌دبلخ او نورو ځایونو څخه حاصلیږی، که څه هم په ځمکو باندی محصول‌وومره ډیر نه دی خو ډیره بی‌انتظامی پکی‌موجوده ده‌اود ځمکو دمالکانوحق‌یوازی د توری په زور کی خوندی

دی . د سودا گری دمال په محصول کی هم سخت‌گیری او بی تدبیری موجوده ده او که د انصاف له مخی‌دمحصو لاتو چاری په منظم ډول تر سره شی، دړعایاوو د حال دښه کیدواو د هغوی دسوکالی په څنګ کی به د عایدا تو اندازه هم لوړه شی.

دړعیت د قضایی چارو داجراءکولو له پاره دلویدیځ افغا نستان دحکامو له خوا په مر بو طو سیمو کی‌قاضیان‌مقرر شوی دی، که څه هم په‌ښکاره ډول داسی ویل کیږی چی دقرآن د حکم سره‌سمی‌فیصلی کوی، خوکله چی حقیقت دړعایاو څخه واوریدل‌شی داسی معلو میږی چی د قاضیانو اداره او څارنه دحکامو له خوا تش‌په نامه ده ، قاضی چی له هری خوا څخه خیټه مړه او څه تر لاسه کړی‌د هغی خوا په ګټه فتوی ورکوی‌او په دغه ډول دوی دظلم موجب‌ګرځی‌نو دړعیت دپالنی لپاره بایده باتدبیره او هوښیار حاکمان منځ ته راشی.

## د افغا نستان ختیځه برخه :

دانګریزا نو دیرغل سره سره دافغا نستان ختیځه برخه دسکا نو په لاس کی پاتی شوه، خو کله چی د (۱۸۳۹) عیسوی کال د جون دمیا شتی په (۲۷) د لاهوز والی‌رنجیت سنګ مړ شو، نو دده دمرګ سره یو ځای د سکا نو دعظمت دوره هم پای‌ته ورسیده. درنجیت سنګ تر مړینی وروسته دده زوی کهړک‌سنګ چی یو بی همته او ساده سړی و دچارو واګی په لاس کی ونیولی،خو دی دکنور نهال سنګه لخوا ونیول شو او پخپله یی دهغه ځای ونیوه.

د (۱۸۴۰) عیسوی کال دنوامبرپه میا شت کی کهړك سنګ مړ شو او په همدغه ورځ نونهال سنګ هم‌چی د خپل پلار له سوزولو څخه فارغ او غوښتل چی ښار ته را شی خودیوی دروازی ، د لویدلو په سبب سخت ټپی او مړ شو او دده مورانی چند کور درنجیت سنګ دزوی شیر سنګ له خوا چی دوزیر دهیان‌سنګ په مشوره په تخت کښینول شوی وو وژله‌شوه تر هغه وروسته‌په (۱۸۴۴) عیسوی کال شیرسنګ هم دلهنا سنګ او چیت سنګ سندهانوالیان په ذریعه ووژل شو او په همدغه ورځ وزیر دهیان سنګ هم‌مړ کړای شو،ورپسی په خالصه پوځ کی داسی بی اتفاقی رامنځ ته شوه‌چی هر سك سردار به چی هغوی‌ته زیاته تنخوا او ډیر انعامونه ورکول‌نو په هغو باندی به یی هر څوك‌چی

غوښتل هغه به یی وژل لکه چی په همدی ډول راجه سوچیت سنګ، راجه هیراسنګ کنور پشاور سنګ، سردار جواهر سنګ او نور څو تنه سك سرداران په خپلو منځو کـی د جګړو په سبب ووژل شول ، په پای کی ددلیپ سنګ مور رانی جنده په مشوری راجه لعل سنګ توشیخانیه ته دوزارت منصب ورکړای شو څوځ نګه چی دهم خپل ځان په خطر کی لیده نو له دی کبله یی له دربار ه سره سلاو مشوره وکړه او داسـی پریکړه وشوه چی دانګریزانو سره په جګړی لاس پوری کړی، نو ځکـــه پوځ ته داسی امر وشو چی دفیروزپور خوا ته حرکت وکړی د (١٨٤٥) عیسوی کال دنوامبر دمیاشتی پـه (٢٣) نوموړی پوځ هغی خواته وخوځیده او په داسی حال کی چی دخالصـه پوځ په بریا لیتوب باندی یی عقیده درلوده دستلج له سین څخه پوری وتل، کله چی دغه ناڅاپی خبردهند ګور نر جنرال لارډ هارد نګ تــه ورسیده نو دنوموړی له خوا ددغه کال ددسامبر دمیاشتی په (١٣) یواعلان خپور شو چی لنډ مقصد یـی داوه دسکانو پوځونه چی د (١٨٠٩) عیسوی کال دتړون په خلاف دجګړی په اراده دستلج له سین څخه تیرشوی دی نو په دی سبب دستلج دی خوا غاړی دی ضبطی او د انګریزی سرکار په نیول شوو سیمو پوری دی وتړل شی.

## دانګریزانو د قبضی څرنګوالی :

څرنګه چی دافغا نستان په ختیځو برخو او د پنجاب په صوبی باندی انګر یزانو تسلط ټینګ کړی و ، نو ځکه دا مناسبه بریښی چی دپنجاب دنیولو دڅرنګوالی په باب یو څـه روښانه کړای شی .
کله چی دسکانو له خوا ناڅاپی عهد شکنی وشوه او پخپله وعـــده باندی ونه دریدل، نو په ډیره چټکتیا سره نواب، ګورنر جنرال او دهند سپه سالار پوځونه راټول او دسکانو سره یی دجګړی حکم وکړ په دغه وخت کی دسکانو سره څلور جګړی تـــر سره شوی، چی په څلور واړو جګړو کی سکانو ته ماته ورپه برخه شوه.
نوموړی جګړی په دی ډول دی:

## لومړی دمدکی جګړه :

چی د (١٨٤٥) عیسوی کال ددسمبر دمیاشتی په (١٨) پیښه شوه، په دغه جګړه کی انګریزا نو د سکانو څخه (١٧) تو پو نه تر لاسه کـــړل.

## دویمه دفیرو شهر جګړه:

دغه جګړه د هماغه کال ددسمبردمیا شتی په یوویشتمه منځ تـــه راغله او د سکانو مشر راجه لعــل سنګ نومیده ، په نو موړی جګړه کی سکا نو (۷۳) تو پو نه پــــه میدان پریښودل .

## دریمه جګړه :

چی د (۱۸٤٦) عیسوی کال دجنوری دمیا شتی په اته ویشتمه نیتـــه په الی وال کی درنجور سنګ سره‌وشوه، ډیر سکان په دریاب کـــی ډوب او ووژل شول او همــــدا رازپنځوس تو پو نه انګریزا نو تـــه په لاس ورغلل .

## څلورمه جګړه :

دسکانو او انګریزانو ترمینځ څلورمه اووروستی جګړه‌دهمدغه کال‌دفبروری دمیا شتی په لسمه نیټه په سیروان‌کی واقع شوه، په دغه جګړه کـــی سکا نو بیخی ماته وکړه او سردارشام سنګ اتاری واله هم په همدی جګړه کی ووژل شو .

دا ښکاره خبره ده چی د سکانودماتی سبب ددوی تر منځ بی اتفاقی او نفاق و که نه داد امکان نه لیری‌وه‌چی انګریزان دی په یوه لږ شمیر پوځ سره وکړای شی د سکـــا نـولوی لښکر په اسانی سره مات کړی. لنډه دا چی د سکانو تر ماتـــی‌وروسته نواب ګورنر جنرال لاهور ته داخل شو او د رنجیت زوی مهاراجه دلیپ سنګ ددغو جګړو علت دپوځ بغاوت وښود او د ګور نر جنرال‌څخه یی معافی وغو ښته او عذر یی ورته وکړ چی دده عذر ومنل شـــو او ددواړو خواو تر منځ د (۱۸٤٦) عیسوی کال دمارچ دمیاشتی په نهمه یـــوتړون لاسلیك شو چی ددغه نـــوی تړون له مخی دجنګ تاوان له درکه جالند هر ، دواب ، کشمیر اوهزاره دنورو غرنیو سیمو سره انګریزی‌سرکار ته ورکړل شول پاتی تـــول پنجاب دلیپ سنګ ته پریښودل‌شو،همدا راز دپنجاب دوالی په غوښتنه یو سیا سی نما ینده په لاهور کـــی‌وټاکل‌شو او څو تنه نور نماینده‌ګان ددغه نما ینده دمر ستیا لانو پـــه توګه د ضلعو دچارو د تنظیم اوامن له پاره دلته راولیږل شول، لکـــه څرنګه چی د ختیځ افغا نستان پـــه

پیښور کی جارج لارنس او په بنواودیره‌جاتو کی‌سر هربرټ اډواړډس دحاکما نو په توګه دنده سرته رسوله.

تر دغه وروسته په (۱۸۴۸) عیسوی کال کی د پنجاب په سیمه کی‌یو لوی اغتشاش منځ ته راغی.لومړی ځل دیوان مولراج په ملتان کی شور شونه پیل او دوه تنـــه انګر یزی افسران‌یی ووژل اوورپسی چترسنګ دهزاره په سیمه کـــی‌په بغاوت لاس، پوری کړ او کلـه چی په پیښور کی سك سپاهیان‌یاغی‌شول نو جارج لارنس او میرمن یی په کوهاټ کی سلطان محمد خـــان‌بارکزی ته ورغلل او هلته یی پناه وغوښته او نوموړی انګریز دسرهنری‌لارنس ورور وچی سلطان محمدخان بارکزی یی خوشی کړی و خوسلطان‌محمد خان په پښتنی ننګ باندی‌تور داغ ولګاوه او جارج لارنس اودهغه میرمن یی‌د (۱۸۴۸) عیسوی کـــال د دسامبر د میاشتی په دریمه نیټه‌سکانو ته په لاس ورکړل او همدا ډول کرنیل سرهر برټ اډواړډس‌په ټول قدرت سره دملتان په نیولـو بوخت و، ددغه شورشو او بلوا په‌وخت کی هم د ملتان پر ته ځـلور جګړی پیښی شوی، چی په وروستی‌جګړه کی چی‌د (۱۸۴۹) عیسوی‌کال دفبروری دمیاشتی په یودیر شمـه نیټه په ګجرات کی پیښه شوه‌سکانو سخته ماتی وخوړه او په راولپنډی‌کی شیرسنګ او چتر سنګ دواړه‌ د انګریزی پوځ‌افسرانو‌ته تسلیم‌شول.

ددویم شورش درفع کولو څخـه وروسته د (۱۸۴۹) عیسوی کال‌دمارچ د(۲۹) نه ویشتمی نیټی داعلان پـه‌سبب ټول پنجاب او هم د افغانستان ختیځی برخی دانګریزی واکمنی‌جزوګڼل شوی دختیځ هند کمپنی ټیکه له منځه ولاړه او له (۱۸۵۹) عیسوی‌کال څخه ملکه وکتوریا دانګلستان شهزادګی دهندو ستان واکمنه‌شوه،په دغه وخت کی دافغا نستان‌ختیځی سیمی پر دوو برخو او پنځو ضلعو باندی وویشل شوی‌چی‌په هره‌برخه کی‌یو کمشنر ،په هره ضلع کی یودیپټی کمشنر او څو تنـه اسټـټ کمشنران اواکسترا اسټټ کمشنران‌په عدالت سره چاری تر سره کوی. دختیځ افغا نستان یاد هغو برخوعایدات چی دانګریزی سرکار په‌لاس کی دی‌دکال‌شلولکو روپیوته‌رسیږی.

## دسر حد او یاغی قومو نو دانتظام‌څرنګوالی:

څرنګه چی معلومه ده دافغانستان‌ختیځی سیمی چی دانګریز سرکارله خوا نیول شوی یعنی دیره جات اودپیښور لویدیځ او قطبی برخو پـه

غرنيو سيمو کې ازاد قومونه ميشته دي اود انګريزانو تر راتګ وړاندې دغو خلکو اوارو ملکو نو ته دښکارځاى په سترګه کتل دوى ډېره موده څه دمذهبي تعصب او په زياتـه اندازه دځپل طبيعي او فطري خاصيت په سبب په دغه ملک کې دغلاوو په کولو اودلارو په وهلو بوخت وو ، او انګريزانو ددوى دحملو مخه پـه دې ترتيب نيولې وه چې، ددوى دتيرى په وخت کې به يې ددوى ملك تـه لښکرى ليږلې او ياغيان او مفسدين به يې تکول او دتورى په زوږ به يې دراتلو نکى له پاره دامن منځ راوړلو کوښښ کاوه .

دپيښور ضلعې ديوسفزيو سيمې په شمالي او لويديځو غرنيو برخو کې حسن‌زي او متعصب هندوستانی وهابيان* (مجاهدين) په ستانه او دمهابن غره په شاو خوا کې ميشته شوي دي .

څو ځله انګريزي سرکار ، دهغوى دټکو لو له پاره ددوى سيمو تـه پو ځونه ليږلي دي. په (۱۸۵۸م) عيسوى کال دستا نه په سيمـــى باندې د ميجر جنرال سر سډنې کاټن تر مشرى لاندې يرغل وشو او تـر هغه وروسته دا مازي او جـدو ن له قبيلو سره داسې پريکړه وشوه چې بيا به په ستانه کې هغوىداسې آواره هندو ستا نيو ته دميشتـــه کيدلو اجازه نه ورکوى چې هغوى دانګريزي سر کار رعيت ته کوم تکليف پيښ کړى، خو په (۱۸۶۱) عيسوى کال د چمله سيمې په ملکا کې چـي دنوموړى سيمې په منځ کې موقعيت لرى، دامازي او جدون قبيلو دعهد ماتو لو په سبب په هما غـه ډول هندو ستا نيان را ټول او دانګريزي سر کار دبيګناه رعيت په زورولو يې پيل وکړ چې ددغه عمل له منځـــه وړلو له پاره په (۱۸۶۳) عيسوى کال کې يو ټولګى پوځ دبرګډيرجنرال سر نيول چمبر الين تر مشرى لاندې دانېيله درې له لارې دغې غرنـــى سيمې ته ولېږل شـــو د (۱۸۶۳) عيسوى کال داکتو بر د مياشتـــى په شپږويشتمه په دغه ځاى کـى سخته جګړه پيښه شوه چې دبونير او سوات او سيدو نګو هم دچمله له خلکو سره مرسته کوله په پاى کې تر ډيرو جګړو وروسته دانجيلـــه ، لعلو او ملکا سيمي وسو زول شـوى دچمله او بونير داسيدو نګو څخـه څو تنه ديرغمل په ډول په دې منظور راوستل شوى چې په راتلونکي کې به هندو ستانى مجا هدين هلته نـــه

---

*«هندو ستا نی وها بيان» دتعليقاتو په برخه کې وګورى .

اوسیږی، او انگریزی پوځ هم بیرته راستون شو .*

په همدغه ډول مومندو، پنډیالیو او موسی زیو چی د سوات سیند د دواړو غاړو په غرنیو سیمو کښی اوسیږی او له انگریزی سرکار سره کړی پولی لړی تر هغه ځایه چی ورته ممکنه وه د سرکار رعیت ته به یی زیانو نه رسول، خو د(۱۸۶۱)عیسوی کال دجنوری په میاشت کی ددوی مشر سردار نواب خان په خپله تسلیم او دانگریزانو حکم ته یی غاړه کیښوده په (۱۸۶۳)عیسوی کال دمومندوقبیلی دموسی زیو ښاخ او نورو دسعادت خان دزوی سردار سلطان خان تر مشری لاندی دلعل پوری په سرحدکی په ډیر زړه‌ور توب سره السی گولی او فسادونه رامنځ ته کړل‌خودانگریزی سرکار د یوه تولگی پوځ لخوا تیښتی ته مجبور شول ، مگروروسته دامیر شیر علی خان زوی او ولیعهد سردار محمد علی خان‌له خوا نو موړی سعادت خان ونیول شو او پدی ډول یی په راتلو نکی‌کی دفسادونو مخه ونیوله.

دپیښور او کوهاټ په سرحد کی‌دخیبر له دری څخه ختیځ خواته د ختکو تر غره پوری داپریدو جنگیالی قوم پروت دی په لومړی سرکی ددوی لخوا ډیری پیښی رامنځ ته کید لی چی د څو جگړو نه وروسته کله کله الی گولی او فسادونه‌رامنځ ته کوی. هغه دره چی له هغی څخه د کوهاټ او پیښور لاره‌دغرونو په مینځ کی تیریږی په هغه ځای کی ددوی الی گولی موءثری‌دی. داپریدو قبیله د ښه خوی تر څنگ زړه ور هم دی، ددغه قبیلی‌سهیل ته لږ څه د کوهاټ ضلعه خو اکثراء دانگریزی سرکار دنیول شوو سیمو څخه د باندی داورك زیو قبیله میشته ده خو په دغه سرحدکی دوزیرو قبیله دیادونی وړ ده، چی په مفصل ډول به یی بیان ددغه کتاب د دویمی برخی په شلو رم باب کی راشی د بیټنیو او وزیروسهیل ته د شیرا نیو قبیله پرته ده چی دوی هم څه موده دانگریزی‌سرکار په مقابل کی الی گولی‌رامنځ ته گولی خو اوس غلی شوی دی.

ددیره غازی خان د ضلعی په لوید یځو برخو کی دبلوڅو دقومونو څخه د مری قبیله هم ډیره دشراوفساد غوښتو نکی ده.

---

*ددغی غزا په باب دتعلیقاتو برخه وګوری.

موء لف چی تقریباء څلور کاله یې په سرحد کی کار کړی دی، د
خپلی تجربی او ددغه ځای د خلکوپه کړو وړو باندی په پوهیدولو
سره چی د سرحدی چارو دانتظام له پاره ډیر ښه کار ګڼل کیږی، غواړم
یو څه ولیکم :
دا څرګنده خبره ده چی دغه آزادقبایل چی دسرحد په غرنیو سیمو
کی زمونږ ګاونډیان دی اکثراء ساده، بی علمه ،کینه کښ،حساس ،ناعاقبت
اندیش او متعصب دی، * ددغــــه ډول خلکو سره په سوله کی ژوند
کول ډیر مطلوب کار او ددوی په روحیه ډیر موء ثر دی، خو په ځینو
وختو نو کی د هغوی سمد لاســـه تکونه هم موء ثره او مطلوبه ده .
په دغو قو مونو کی عموماء دوه ډوله خلک لیدل کیږی، یوه ډلـــه
هغه دی چی هغوی د ځینو شیانـــو داخستلو او تجارت په منظور دانګر-
یزی سرکار سیمو ته تګ راتګ کوی دویمه ډله هغه دی چی دغو سیمو
ته لږ تګ راتګ کوی یایی هیــڅ نه کوی، کله چی دانګریزی سرکار
له علاقی څخه دباندی، غلا، لاروهنه او یا بله کومه پیښه وشی بایـــد
سرکاری افسر په دی لټه کی شـــی چی د مجرم هویت پیدا کړی او په
دی وپو هیږی چی ددغه جرم مجرم څوک دکومی قبیلی او دکوم ښـــاخ
څخه دی. دغه کار که څه هم پـــه غرنیو سیمو کی معلو میدلای شی،
مګر د جاسو سانو په خبره څو چی نوموړی خبره دځو تنو نورو له خوا
هم تاء ئید شوی نه وی، باید اعتبارونه کړای شی. کله کله جاسوس
دحقا یقو په خلاف هم خبری کوی ،کله چی دا څرګنده شی چی مجرم په
کومی یوی قبیلی پوری تړلی دی ،په دغه خبری پوهیدل هم ضروری دی
چی که چیری د هغه قبیلی تګ راتګ زمونږ سیمی ته بند شی، نو دهغه
قبیلی خلک به زمونږ دعوا دمجرم سری به حاضر ولو یا دغلاء شوی
مال په بیرته راوړلو یا څرنګه چی انصاف غو ښتنه کوی . ومنی هغه
کله چی ځواب مثبت وی نو دقبیلی ملکا نو ته خبر ورکول کیږی چـــی
په دومره موده کی مال یا مجرم باید حاضر کړای شی، که چیری هوی ځانونه
بیګناه بولی نو په ټاکلی موده کی دی محکمی ته حاضر او ددغه الزام
څخه دی د ځان دفاع وکړی، او که نه تر دغه مودی وروسته ددامـــی

*قلم دښمن ددوست په لاس کـــی دی . (رشاد)

قبیلی د خلکو تګ راتګ سره کـاري‌سیمی ته تر هغه پوری په مطلـق دول بند یږی تر څو چی له جرم څخه یی برائت نه وی حاصل کړی اودعوا هم نه تر سره کیږی، که په دغــه ټاکلی موده کی څوك ښکاره نه شی نو فوراً دهغی قبیلی خلکو دتــــګ‌راتګ لار بنده او هر څوك چی ددغی قبیلی لیدل کیږی او لاس‌ته ورځی هغه دیرغمل په دول نیول‌کیږی او هغه مال چی له دوی سره وی‌هغه هم ضبط کیږی تر هغی چی دغه خلك دعوا ومنی او مال، یا مجرم یادمال‌بدل چی حاکم ټاکلی تادیه کړی،په اکثرو معاملو کی دغه تجربه ازمویل‌شوی او نتیجه یی ښه راوتلی ده، دوهم دول یی دادی هغه وخت چی‌دا ثابته شی چی مجرم دهغه قــوم (قبیلی) دی چی زمونږ سیمی ته یی‌دتګ راتګ کم یا بی ارزښته دی نو دحامی دوینا له مخی، ((که‌جز جهل‌بر جهل نارد شکست.)) نو په دغه وخت کی‌په آرامی‌سره دمجرم دقبیلی‌چی کوم سړی آویا مال لاس ته ورځی هغه نیول کیږی او د یرغمل په دول‌ساتل کیږی او ورپسی دغی قبیلی ته پیغام استول کیږی‌تر څوچی مال‌یامجرم ته وی حاضر شوی دغه مال به لیلام او یرغمل کسان به هم‌بندیان پاتی‌شی که څه هم ځینی حاکمان دا وروستی‌تجویز غوره‌کنی اوپه ښکاره‌دول، له هغه څخه دمال دبیرته اخستلو ګټه تر لاسه کیږی، خو دغرنیو خلکوله طبیعت سره هم آهنګی او یووالی نه لری او همدا راز د انګریزی سرکار د مشهور ریښتین توب او عدالت په خلاف دی ، دا ځکه چی دداســی‌نا ځایی نیو لو څخه خلك موږ په دروغو او فریب محکو موی اوزمونږ‌عدالت ته د ظلم او تیری نسبــت ورکوی . نو تر هغه ځایه چی‌امکان‌ولری له دغه قوم سره باید پــه سمه‌لاره چلندنه اوپه معقول‌دول‌ونیول‌شی او بیا کیدای شی چی پدل پــه زور تر سره شی، او هم هغوی تــه دعذر کولو او د الزام اوتهمت پــه مقا بل کی له ځان څخه ددفاع کولووخت ضرور ورکړای شی تر څــو د انګریزی‌سر کار له منصر فه ملکونوڅخه دباندی سیمو خلکو ته داڅرګنده شی چی انګریزی سر کار دعدالــت‌او انصاف په لار روان دی او کــه هغه ته اتول وګړی چی په هیوادکی‌دننه ژوند کوی او که له پولوڅخه

دباندې تولو ته په یوه ستر ګه ګوري او ورته یو ډول دی له دغه کار څخه ښه نتیجه لاس ته راتلای شي، مګر پدی باید وپوهیږو چې پورتني ذکر شوي لاري چارې عام شکل لري او سرحدی انتظام تر هغه اندازې حساس او نازك دی چې هره پیښه باید په دقت سره وڅیړل شي او څور ورباندی وشي.

د هغو قومونو سره چې تړون شوی وی دهغوی سره باید ددغه تړون مطابق عمل وشي ، هغه افسرانو او منصبدارانو چې په سرحد کې کار کړی او په دغه مکله دتجربې خاوندان دی اوول په دغه باب یو نظر لري چې که چیرې دغو نیو سیمو مجرمانو نیول په دوی پورې منحصر شي نو دسرحد دچارو انتظام به په صحیح ډول ونه کړای شي او اداری نظم به په کې منځ ته را نشـــــی ، داځکه چې کله به هغه مجـــــرم د یوه یا څو تنو سره غــــر نیو سیمو ته ورتښتي نـو بیا پخپله د هغه نیول ډیر ګران کار دی نوله دی امله باید دغه مجرم تول قبیله د نیولو او موءاخذې ورو ګنل شي څو په دغه باب ددغې خبرې کول هم ضروری دی، چې تر اولو وراندی دهغه قبیلې دښاغ خلك چې مجرم ورپوری تړلی دی اوښه او بدیې په دغه مجــــرم باندې تاءثیر لري باید ونیول شي او وروسی له تولې قبیلې څخـــه پوښتنه کیدای شي ترڅو خلك خپله ذمه واری او مسئولیت سره مشترك وګنې په دغه ترتیب په داســـی پیښو کی کمښت منځ ته راتلای شي او خلك په دی پوهیږي چې په ډیره اسانی سره دسرکار عدالت مو نیول شي او پوښتنه او بدل راځخه اخیستلای شي او دهغې ګټې څخـه چې دغلا او لاروهنې څخه تر لاسـه کیږي زیان رارسیږي په هره قبیله ،ښاغ اوقوم باندی دپوهیدو له پاره بایددغه کتاب څویمه برخه ولیدل شي.

کله کله د سرحدي خلکو د جهالت په سبب داسې درنې او سختې پیښې منځ ته راځي، چې ددغو پیښو دبدل اخستلو او بیا تکرار دمخنیوی په سبب سرکار مجبوریږی دمجرم قبیلې غرنیو سیمو ته لښکر ورولیږي او هغو ته سزا ورکړي تر څو په دغه ترتیب هغوی عبرت واخلي او په دی وپوهیږي چې انګریزی سرکار نــه یوازې دسوالي له لاری بلکې دتوری په زور هم خپلې متصرفه او ترلاس لاندې سیمې ساتلای شي، مګر دغه کار باید په ډیر احتیاط سره تــرسره شي تر څو دمجرمې قبیلې نــه پوته نورو خلکو ته کوم زیان ونه رسیږي او دوی زمونږ دښمنان نه شي او مجرمې ولې او ددوی ګاونډی قبایل دپوځونو دلیږدولو علت یوازې

دجرم بدل اخیستل دی .خو په اوسنی‌وخت کی دی ډول سختو پوځی‌عملیاتو ته لږه اړتیا احساسیږی او دبهرنیو یرغلونو دمخنیوی او دداخلی‌انتظام په منظور دسرکار له خوا دسرحدی‌ضلعو په تیره په پیښور کی ډیره

لویه چاونی جوړه شوی وه چی هلته یو پوځ د میجر جنرال تر قیادت‌لاندی پروت دی. په کوهاټ، بنو، مردان،دیره اسمعیل خان، راجن پور او دیره غازی خان په ضلع کی دضرورت په‌اندازه پلی او سپور لښکر اوهـم توپخانه موجوده ده او هم د ضلعـو اکثرو ځایو نو کی پولیس (ځارندوی) په کار بوخت دی، ددی نه پرته دغرنیو سیمو دغلو دټکولو اوله‌منځه وړلو له پاره دهغو غرونو په لمنوکی چی په سرحد کی موقعیت لری

په‌مناسبو ځایونو کی څو کـــی اوسر حدی سپایان، میشته شوی دی‌او کله‌چی دداسی پیښنو خبر دوی تـه ورسیږی نو سمدلاسه دغر ینـــو مجرمانو په تعقیب‌پیل‌کوی‌او ددوی‌دتگ‌راتگ‌لاری‌او دری بندوی‌تر څود مجرم دتیښتی لاره بنده او ونیول شی اوغلا شوی مال بیرته تر لاسه شی، دغه ډول څوکی دانگریزانو په مروجه ژبه کی دپوست په نامه یادیږی. او بی‌له شکه دغه ډول تنظیمات‌ډیر گټور دی. په‌دی شرط چـــی سرحدی قوما ندان یا افسر تکړه اوفعال وی .

دسرحدی ساتو نکوه پوځونو اوددوی ملکی ملازمینو تنخواه خرڅ او نور چی دافغا نستان په دغه ختیځه برخه کی دانگریزی سرکار له‌خوا

کیږی هغه ددغه ځای تر عایدا تو‌ډیر زیات دی خو دغه مصرف چی‌په دغه ځای‌کی دانگریزی سرکارله خوا‌کیږی هغه باید ډیر معقول اوپه‌ځای وگنیل شی .

دا‌ځکه چی دغه سرحدی پوځونه نه یوازی‌دملک داخلی‌چاری تنظیموی او ساتنه یی کوی بلکی دخارجی‌دښمن په مقابل‌کی‌هم د لویدیځ هند ددروازی څخه دفاع کوی. په تیـروخت کی په هند باندی اکثره‌یرغلونه له دغی لاری سرته رسیدل خواوس‌له لویدیځ خوا څخه دداسی یوه‌خطر فکر نه شی کیدلای، اوهـــم اوس‌دهندو ستان پاچا تر هغه اندازی بی خبر او عیا ش نه‌دی چی مثلاء تیموراو یا نادر دی د ډیلی دروازی تـه را ورسیږی نو په دغه وخت کی‌دی‌شاهنشاه دعیاشی له بزم‌څخه دړزم په فکر شی داسی فکر کیږی چی‌په راتلونکی کی به داسی یو وخت‌راشی

چی لویدیځ خواته به ددوو لایقـو‌پاچا یانو د سلطنت پـــو لی سره ونښلوی .*

---

* له دغودوو لایقو پاچاهانو‌څخه مراددروس او بر یتا نیا دولتو نـه دی .
(رشاد)

## دسرحد دپولو موقعیت :

دموءلف په نظر دپنجاب لویدیځی پولی چی دهندوستان سر حد دی ډیر
ښه موقعیت لری، داځکه که چیری داسی یو وخت راشی چی په هندو -
ستان باندی دلویدیځ لخوا بریدوشی. نو دغه تقویه شوی ځای دجګړی او
دفاع له پاره ډیر مساعد دی، په دی سبب چی دښمن به په لویدیځوغرنیو
سیمو کی ډیر ستومانه شوی اوډیرکړاو به یی لیدلی وی نو ځکه کله
چی دغو پولو ته راوړ سیږی نو زمونږ تازه دمی لښکری
به په آسانی سره په هغوی باندی غلبه ومومی . دوهمه دا چی دغه
ځای ته دضرورت په وخت کی لــه پنجاب او نورو میدانی او اواروسیمو
څخه ډیر ژر اوبی تکلیفه مرسته او اذوقه رسیدلای شی . په داسی
حال کی چی دښمن ته دلوید یځـــوغرنیو سیمو څخه دمرستی ، ذخیری
او آذوقی رسول ډیر گران اوتقریباً ناممکن کار دی. نو ځکه د هندسلطنت
باید دموجوده پولو په دننه کـــی پیاوړی اودغه کار د نورو ملکو نــو
له نیولو څخه ډیر ښه اوگنوردی .
که چیری مونږ له دغه سرحد و نوڅخه تیراو خپل هیواد ته دلو یدیـځ
په خوا پراختیا ورکړو چی حکو مت اوس داسی کومه اراده نه لری ، نو
زمونږ له پاره به د قیسی (کیسی) غر دمرستی اونورو ضروری شیانــو
دنه رسید وله امله هماغه حکم ولری. کوم چی دښمن ته یی ددی خوا تــه
راتگ (یرغل ) په وخت کی لری .
که چیری زمونږ پولی شمال خواته دهندو کش ترغرونوپوری، اولویدیځ
خواته ترسیاه کوه پوری چی د هرا ت لویدیځ ته پروت دی وغزول شــی
نو بهرنی دښمن ته به له موجوده پولوڅخه ، هم دهغو پولو نیول گران کار
وی ، که څه هم د هغو پولو په منځ کی به څه موده مونږ له مشکلا تواو
سختیو سره مخامخ شو ، خو وروسته به د تجارت دوړاندی تگ چی دمنځنی
آسیا اونورو ملکونو سره به ښه ودده وکړی او همدا راز دنورو عام المنفعه
کارو نو څخه به دنیا ته ډیره گټــه ورسیږی ، خودا امر انصاف نه شــی
منلای اوهم ... مت دغه خیال نه لری چی بی موجبه دی دلویدیځوملکو نو
په چارو کی لاس وهنه وکړی شــی خو که چیری اصل حقدار یاافغانستان
له خپل هوډ څخه واوړی یاکوم بل دښمن دشمال له خوا دیرغل کو لــو
خیال ولری نوپه دغه وخت کی دهند حکومت په دغه ملك باندی د زیا تی
دعوی حق لری ، داځکه چی په پخوا زمانو کی دکابل صوبه ،کندهار اونور

به اکثراً د هند د سلطنت تر سلطی لاندې وو خو په اوس وخت کې انګریزی حکو مت نه غولړې داسې یوه دعـــوه وکړی .

(په پای کې دڅو کیو یو فهرست)

په دغه فهرست کې سرحدی څوکی یا پو ستی راغلی دی او له دغه فهر ست څخه دا جو تیږی چې دپیښور د ضلعی نورو لویو څونیو ته پرته یوازې دغرنیو غلو او لارو وهو نکو د مخنیوی لپاره کو هـــاټ ته نږدی غرونو له لړی څخه تـــر دیره غازی خان پورې څو مره څوکی او په هغو کی څو تنه سپاهیان دی. دا څرګنده ده چی دپیښور ضلع په حدودو کی له دغو څخه هم زیات شمیر پوځ په بهر نیو څو کیو کی پـر وت دی ■

| نمبر شمار | نام ضلع | نام مقام | پنجاب ملیشیہ | | منظم | | ٹوٹل نمبر | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | [illegible] | [illegible] | [illegible] | [illegible] | [illegible] | [illegible] |
| ۱ | کوہاٹ | بہادر خیل | ۳۷ | ۸۳ | ۰ | ۰ | ۳۷ | ۸۳ |
| ۲ | 〃 | لتمبر | ۹ | ۲۳ | ۰ | ۰ | ۹ | ۲۳ |
| ۳ | 〃 | ناہری | ۸ | ۱۲ | ۰ | ۰ | ۸ | ۱۲ |
| ۴ | 〃 | باندا | ۵ | ۰ | ۰ | ۰ | ۵ | ۰ |
| ۵ | 〃 | لاچی | ۵ | ۰ | ۰ | ۰ | ۵ | ۰ |
| ۶ | 〃 | گداخیل | ۵ | [illegible] | ۰ | ۰ | ۵ | ۰ |
| ۷ | 〃 | گرمت | ۲ | [illegible] | ۰ | ۰ | ۲ | ۰ |
| ۸ | 〃 | مچھ زئی | ۲ | ۱۵ | ۰ | ۰ | ۲ | ۱۵ |
| ۹ | 〃 | کوتل | ۲ | ۲۲ | ۰ | ۰ | ۲ | ۲۲ |
| ۱ | بنوں | دومیلی | ۰ | ۰ | ۱۸ | ۱۰ | ۱۸ | ۱۰ |
| ۲ | 〃 | گومتی | ۰ | ۰ | ۹ | ۱۴ | ۹ | ۱۴ |
| ۳ | 〃 | کرم | ۹ | ۱۰ | ۲ | ۰ | ۱۱ | ۱۰ |
| ۴ | 〃 | پنج باران | ۰ | ۰ | ۷ | ۱۴ | ۷ | ۱۴ |
| ۵ | 〃 | جانی خیل | ۵۴ | ۷۰ | ۲ | ۰ | ۵۶ | ۷۰ |
| ۶ | 〃 | تنجوری | ۰ | ۰ | ۹ | ۴ | ۹ | ۴ |
| ۷ | 〃 | توچی | ۰ | ۰ | ۷ | ۱۴ | ۷ | ۱۴ |
| ۸ | 〃 | والی | ۰ | ۰ | ۹ | ۴ | ۹ | ۴ |
| ۹ | 〃 | خیرو خیل | ۰ | ۰ | ۱۰ | ۵ | ۱۰ | ۵ |
| ۱ | ڈیرہ اسمعیل خان | درہ پین | ۰ | ۰ | ۶ | ۴۷ | ۶ | ۴۷ |
| ۲ | 〃 | اماخیل | ۰ | ۰ | ۴ | ۰ | ۴ | ۰ |
| ۳ | 〃 | ملازی | ۰ | ۰ | ۱۲ | ۱۲ | ۱۲ | ۱۲ |
| ۴ | 〃 | کوٹ نصرت | ۰ | ۰ | ۲۰ | ۱۰ | ۲۰ | ۱۰ |

| شمیره | علاقه | د کلي نوم | د پنجاب ملیشه | | منظم پوځ | | ټول شمیر | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | [illegible] | [illegible] | ټول | پاتې | [illegible] | [illegible] |
| ۹ | ډیره غازیخان | دهووا | ۰ | ۰ | ۱۱ | ۹ | ۱۱ | ۹ |
| ۱۰ | 〃 | بهندووالا | ۸۳ | ۲۵ | ۱۸ | ۰ | ۱۰۱ | ۲۵ |
| ۱۱ | 〃 | درگری | ۸۳ | ۲۲ | ۳ | ۰ | ۸۶ | ۲۲ |
| ۱۲ | 〃 | آسنی | ۰ | ۰ | ۵ | ۰ | ۵ | ۰ |
| ۱۳ | 〃 | گرم کاتهول | ۰ | ۰ | ۱۶ | ۶ | ۱۶ | ۶ |
| ۱۴ | 〃 | لال گوشی | ۰ | ۰ | ۵ | ۳ | ۵ | ۳ |
| ۱۵ | 〃 | بختیانی | ۰ | ۰ | ۱۳ | ۶ | ۱۳ | ۶ |
| ۱۶ | 〃 | محمدپور | ۰ | ۰ | ۸ | ۵ | ۸ | ۵ |
| ۱۷ | 〃 | روم کاتهول | ۰ | ۰ | ۱۷ | ۶ | ۱۷ | ۶ |
| ۱۸ | 〃 | هرنډ | ۴۹ | ۴۰ | ۲ | ۰ | ۵۱ | ۴۰ |

۱۶۳۷

# دویمه برخه

## په افغانستان کې د پښتنو او نورو او سیدونکو قومونو نسب نامه

# لومړی څپرکی

### دافغان ،پتهان او پښتون د تسمیې وجه :

د خپلو څیړنو د نتیجې له لیکوښخه وړاندې ماته دا غوره وبرېښېده چې د مخزن افغاني کتاب او همداراز دنورو هغو روایتونو په باب چې دمغې له مخې دغه خلک خپله نسب نامه دبني اسرائیلو سره ګډوي انتخاب او یو څه ولیکم.

دا څرګنده ده چې دمخزن افغاني موء لف د افغانانو (پښتنو) نسب نامه په دې ډول لیکلې ده چې حضرت یعقوب (ع) (اسرائیل) له دولسو زامنو څخه مشر یې یهودا نومېده چې دافغانانو (پښتنو) نسل هغه ته رسیږي او د یهودا له پنځم پښت څخه ساول چې لقب یې طالوت ووزیږېده چې وروسته د بنی‌اسرائیلو پاچا شو ، چې دحضرت مسیح څخه (۱۰۹۵) کاله وړاندې او لـه اوسني وخت څخه (۱۹٦۰) کاله مخکې یې ژوند کاوه او نوموړی دحضرت اشمویل په فرمان دبني اسرائیلو پاچا شو چې هغوی دې خپل لوی اټکه بولي .

## دمغزن افغا نی د لیکنی لنډیز :

دمغزن افغا نی دلیکنی لنډیز په دی ډول دی کله چی ساول (طالوت) دخپلو کنا هونو څخه توبه وایستله او سلطنت یی حضرت داؤد (ع) ته وسپاره او په خپله یی دشهادت په منظور دکفارو سره د جنګ اراده وکړه نو په دغه وخت کی یی حضرت داوعد(ع) ته وصیت وکړ چی په حرم کی زما دواړه میر منی امید واری (حامله) دی او له هغوی څخه به دوه نارینه اولادونه نړی ته راشی چی دهغوی اولاد به لوی کارونه وکړی اوددوی زړه ورتوب به تر قیامته پوری په بری کی د یادګار په ډول پاتی شی او دشمیر د ډیر والی له کبله بـه په ټولو باندی رجحان او برتری ولری، کله، چی طالوت دخپلو لسو زامنـو سره دکفارو په ذریعه دشهادت درجی ته نایل شول او حضرت داؤد (ع) دسلطنت واکی په خپل لاس کـی واخیستی نود ساول (طالوت) دوصیت سره سم یی دهغودووحامله ښځو پالنه او خبر ګیری کوله، تر څو د وخـت په تیریدو سره کله چی ددواړو د حمل موده پوره شوه په یوه ورځ کی له دواړو څخه نارینه اولادونـــه نړی ته راغلل چی ددوی تره داود(ع) په یوه باندی ارخیا او بل باندی ارمیا نو مو نه کیښودل . کله چـی دغه دواړه ماشومان د بلوغ مرحلی ته ورسیدل نودپهلوانی او میړا نـی په میدان کی تر ټولو غښتلی وو . حضرت داوعد (ع) ارخیا دوزیرالممالك (صدراعظم) او ارمیایی د ټـول پوځ سپه سالار مقرر کړ.چی دغو دواړو ورو نړو له برکته ټول رعیت او سپایان ارامه او هوسایی اوآبادی ډیره شوه. ددغو دواړو ورونړو څخه هم دوه زامن چی د کلکی ارادی خاوندان وو،وزیږیدل. ارخیا په خپل زوی باندی اصف او ارمیا په خپل زوی بـاندی افغنه نو مو نه کیښودل ، کله چی دوی دواړه د ځوانی او بلوغ مرحلی ته ورسید ل نو ارخیا او ارمیا لــه جها نه ستر کی پټی کړی او حضرت داؤد (ع) هغوی ته پلرنی دنــدی وسپا رلی یعنی دارخیا زوی اصـف ته یی د وزار ت مقام او دار میــا زوی افغان ته یی د سپه سالاری رتبه ور کړه . *

د حضرت داؤد (ع) تر مړینـــی وروسته حضرت سلیما ن (ع) پا چا شو چی هغه هم اصف او افغـــان په خپلو مقا مو نو پریښودل. تر لږی مودی وروسته د اصف امر پـــــه اوو اقلیمو جاری او د افغان تــوم

*وګوری : د تعلیقاتو برخه

اوجلال هم دتولو پیریانو ،انسا نانـواو اهر منانو غورو ته ورسیده او دده د سلا او مشوری نه پرته به هیڅ کار نه ترسره کیده. او د بیت المقدس یا اور شیلم د ودانی چاری هـــم افغان ته وسپارل شوی او حضرت سلیمان (ع) په زرګونو تنه ساتونکی، پهره داران او دیوان د افغان په خدمت کی وګمارل او نوموړی ځلوینبت کاله په دغه عمارت بانـــدی تیر کړل او دغه افغان ته پښتوژبه دیوانو وښودله او د حضرت سلیمان تر مړینی وروسته د بیت المقدس پاتی چاری افغان په دیوانو باندی تر سره کړی. دافغان څخه څلوینبت زامن دنیا ته راغلل او د افغان اولاد د شمیر په لحاظ دومـــره ډیر شوچی د څلور کنجه دنیا هیڅ یـــوه قبیله له دوی سره په شمار برابره نه وه .

اصف او افغان د ژوند تر پایـه پوری په بیت المقدس ، روم او شام باندی، پا چا یی کوله او د بنـــی اسرا ئیلو چاری ددوی دواړو په لاس کی وی. تر هغه وروسته کله چی بخت نصر په بیت المقدس باندی یرغل وکړ او یولږ خرابی یی منځ ته راوړی نو بنی اسرائیل یی هم له خپلی خاوری څخه وشړل چی داصف او افغان اولاده اکثراً غـــور فیروز کوه او د خرا سان نـــوروغرنیو سیمو ته راغلل اودلته میشته شول، او ځینی نور په عربی سیموکی ځای په ځای شول .

هغه قوم چی دغور په غرونو اودخراسان په شاو خوا کی میشته وو، شمیر یی ډیر زیات شو چی دقبایلو ډیرښت په سبب یی د هغه ځای له کفارو سره پرلپسی جګړی وکړی او بریالی شول او د غور غرنی ملك یی تر خپلی سلطی لاندی راوست .

هغه افغا نان چی په عربو کـــی میشته شول د هغو څخه دولید زوی خالد ډیر مشهور دی. نوموړی ډیرزړه ور انسان و چی ډیر ملکو نـــه یی فتح کړی وو، نو ځکه یی دسیف الله لقب ګټلی و .

کله چی حضرت محمد (ص) لـــه مکی څخه مدینی منوری ته هجـــرت وکړ نو په دغه وخت کی دخالد ابن ولید د لیك په ذریعه دغور دسیمی د افغانا نو (پښتنو) له مشرانو څخه څو تنه مدینی ته ولاړل چی د هغو له جملی څخه یی مشر د عیص زوی قیس و چی دنوموړی د نسب سلسله چی په مخزن افغا نی کی ذکر شوی ده په (۳۷) اوه دیرشم پښت کی ساول ته چی په طالوت باندی ملقب او دبنی اسرائیلو پاچا ورسیږی همدارازِ

دهغه پنځه څلو یښتم پښت حضرت ابرا هیم خلیل الله او دری شپیتم پښت یې حضرت ابوالبشر ادم صفی الله (ع) ته رسیږی چې شجره یې په ترتیب سره په لاندی ډول ده: قیص ۱، بن عیص ۲، بن سلو ل ۳، بن عتبه ٤، بن نعیم ٥، بن مره ٦، بن جلندر ۷، بن سکندر ۸، بن زمان ۹، بن عین ۱۰، بن بهلول ۱۱، بن سلم ۱۲، بن صلاح ۱۳، بن قارود ١٤، بن عتم ١٥، بن فهلول ١٦، بن کرم ١٧، بن عمال ١٨، بن حدیقه ١٩، بن مهال ٢٠، بن فیض ٢١، بن علیم ٢٢، بن اشمول ٢٣، بن هارون ٢٤، بن قمرو د ٢٥، بن الی ٢٦، بن صلیب ٢٧، بن طلال ٢٨، بن لیوی ٢٩، بن عاقل ٣٠، بن تار ج ٣١، بن ارز ند ٣٢، بن مندو ل ٣٣، بن سلم ٣٤، بن ا فغا ن ٣٥، بن ارمیا ٣٦، بن ساول ٣٧، ملقب په طالوت بن قیس ٣٨، بن عتبه ٣٩، بن غیص ٤٠، بن راوئیل ٤١، بن یهودا ٤٢، بن یعقوب ٤٣، بن حضرت اسحاق ٤٤، بن مهتر ابراهیم خلیل الله ٤٥، تر پایه پوری.

کله چې دغه مشران مدینې منورې ته ورسیدل نو په حضرت محمد (ص) باندی یې ایمان راوړ او داسلام په دین مشرف شول. دوی ته حضرت محمد (ص) وویل څرنګه چې قیس عبرا نی نوم دی او زه عرب یم نو دلطف او کرم له مخې یې په قیص باندی د عبد الرشید نوم کیښود او ورته یې وویل چې ته د ملك طالو ت له اولادی څخه یې چاته چې حق سبحانه تعا لی په قرآن مجید کښی دملك حطاب کړی دی نه دی نبه دا به ښه وی چې تاته د ملك خطاب وشي، په هغو ورځو کې حضرت محمد (ص) د مکې دنیو لو اراده وکړه او قیس عبد الرشید د خو تنو نورو پښتنو او خالد سره دعسکرو سرلښکر وټاکل شو او په هغه جګړه کې چې د مکې دنیولو په منظور وشوه نو افغا نانو (پښتنو) ښه میړانه ښکاره کړه او یوازی عبد الرشیدو کړای شول چې د قریشو (۷۰) اویا تنه متمردین ووژنی په دغه وخت کې حضرت محمد (ص) ډیر خوشحال شو او ویې ویل چې ددغه سړی له اولادی څخه به یوه لویه سلسله منځ ته راشي او تر قیا مته پوری به داسلام ددین د ټینګښت له پاره هڅې کوی، او ددغه قوم کلکوا لی دهغه لرګی په شان دی چې په هغه باندی دکښتې بنیاد اینښودل کیږی او دبطان په نامه یاد یږی نو څله قیس عبد الرشید ته د بطان (پټهان) خطاب ورکړل شو او څکه دده اولاده د پټهان په نامه یادوی او قیس عبدالر شید بیر ته راستون او د غور په

غره او نورو سیمو کی یی د اسلام سپیڅلی دین په خپرولو پیل وکړ او تول، صحیح النسبه پښتانه ددهله اولادی څخه دی .

د کلام پای :

دپور تنیو روایاتو له مخی باید په دی لاندی ټکو غور وشي:

لومړی: افغان دیعقوب دزوی یهوداله نسل څخه او د بنی اسرائیلو پاچا ساول طالوت اولاد دی.

دویم :ارخیا او ارمیا دساول زامن وو چی داؤد (ع) هغوی خپل وزیر او سپه سالار ټاکلی وو.

دریم : ددغه قوم لوی نیکه افغان دارمیا زوی دساول لمسی دحضرت سلیمان (ع) سپه سالار وو.

څلورم : بیت المقدس دافغان په همت او تدبیر سره جوړ او پښتو ژبه هغه وخت دیوانو افغان ته وښودله او دافغان شان او شوکت په پیریانو، انسانانو او حیواناتو باندی جاری واو په بنی اسرائیلو ، شام او روم د ده تسلط ټینګ و.

پنځم :د افغان داولادی شمیر ترهغی اندازی زیات شو چی دڅلور کنجه دنیا په مسکونه برخه کی هیڅ یوی قبیلي ددوی په اندازه جمعیت نه لاره،

شپږم :کله چی دافغان اولاده له خپل وطن څخه وشړل شوه او د غور غرنیو بر خو ته راغلل دجمعیت دزیاتوالی په سبب یی په دغه ځای کی میشته

کسان ووژل او توله سیمه یی پخپله قبضه کی راوسته .

اووم :د ولید زوی خالد چی په مکی کی اوسیده، هغه هم افغان (پښتون) و، نو ځکه ډیر زړه ور و.

اتم :دافغانانو (پښتنو) مشر یا سردار چی په غور کی اوسیده په اوه دیرشم پښت کی ساول طالوت او په پنځه څلویښتم پښت کی یی حضرت ابراهیم (ع) سره نسب که یږی.

نهم : قیس عبد الرشید ته حضرت خاتم الانبیاء دملك خطاب ورکړله دی امله دافغانانو (پښتنو) معتبران او مشران دملك په نامه یاد یږی .

لسم : بطان د هغه لرګی نوم دی چی په هغه باندی دکښتی بنیاد او اساس اینښودل کیږی او دغه خطاب دمکی په جنګ کی هغه وخت چی قیس عبدالرشید له ځانه ډیر زړورتوب وښود دحضرت محمد (ص) لخوا ده ته ورکړل شواوهغه ته یی بطان(پتهان) ووایه نو ځکه یی اوس اولاده دپتهان په نامه یاد یږی.

یو ولسم: تول صحیح النسبه افغانان (پښتانه) دقیس عبدالرشید اولاده ده .
دولسم: یوه مؤثق سړی په خپلی چهل ورقی د (یآدداشت په کتا بچه ) کی له خپل ځانه داخبره جوړه کړی ده .
چی پښتو ژبه د سلیمان (ع) په زمانه کی افغانانو (پښتنو) ددی له پاره منځ ته راوړه چی پاچا یی اسرار او رازونه به په دی ژبه بیا نیدل او هم اعراب ددی له پاره افغانان (پښتانه) سلیمانی بولی چی ددوی لوی نیکه دحضرت سلیمان(ع) مصاحب وو .

**دموئلف څیړنه او تحقیق:**

زما په نظر تر هغه ځایه چی امکان لری ددغو روایاتو په باب څیړنه او تحقیق په ډیر دقت سره عملی او د یوی صحیح اوسمی نظر یی دمنځ ته راوړلو له پاره باید هر دول کوښښ وشی. د نورو هیوادونو په تاریخ خصوصاً د عتیق عهد کتاب یعنی تورات، زبور او نوروکی چی د بنی اسرائیلو د حالاتو څرنګوالی په ډیر وضاحت سره راغلی پورتنی روایات او نظریی نه تائیدوی بلکه ردوی یی هم او عکس یی ثابتوی او دهر یوه روایت په ځواب کی چی ثبوت تر لاسه شوی هغه به دلته په مفصل ډول ریبل سی، خو وړاندی تر دی باید ددغو روایتونو داصلیت او د منځ ته راتلو د څرنګوالی په باب یو څه وویل شی .

پوهو لوستو نکو (ناظرینو) ته به ښکاره وی چی د مخزن افغانی کتاب ددغو نظریو او روایاتو اساس کنل کیږی دغه کتاب په (۱۰۳۰) هجری کال کی لیکل شوی چی له هغه وخت څخه تر اوسه دوه نیم سوه کاله تیریږی، دغه کتاب داکبرد زوی جهانګیر پاچا په دوران کی خان جهان خان لودی د نعمت الله هروی په مرسته چی دده ملازم و کښلی دی. ده د خپل کتاب په مقدمه کی لیکلی دی چی «هغه (خان جهان) قطب خان مر مست خان ابدال، همزه خان توخی،عمر خان کاکړ، ظریف خان یوسفزی چی دده ملا زمان وو، افغا نستا ن ته ولیږل، هغوی دافغانانو سلسله د نسب په ډیره ښه وجه تر لاسه کړی او دساول طالوت څخه رانیولی تر قیس عبدا لر شید پوری یی دغه نسب نامه نوم په نوم په مفصل ډول لیکلی ده.»

له دغې ليکلې څخه څرګند يږي چې دا نسب نامه دخان جهان لودي مملا –
زمينو له قطب خان او لورو پـــه شفاهي بيان تکيه لري.

ددې له پاره هغه څه چې پـــه مخزن افغاني کې دطبري، احمدي
مجمع انساب ومعدن اخبار، تاريخ ګزيده، تاريخ جهان کشاء په حواله
ليکل شوي په هغو کې په مطلق ډول ددغه سلسلي ثبوت له قيس عبد –
الرشيد څخه وړاندې نه دی تـــرلاسه شوی او په شفاهي بيان عقل
چندان اعتماد نشي کولی. له دې امله کله چې قطب خان او د هغه نــور
ملګري ددغه نسب نامې د لاس تـــه راوړلو له پاره راغلي وو، پـــه
هغه وخت کې دساول طالوت لـــه مړينې څخه تر (دوه نيم) زرو کالو نو
څخه هم ډيره موده تيره شوې وه نو بايد چې له کوم څنګه دا واقعه منل
شي چې دد ومره اوږدې مودې مفصله نسب نامه او مشرح حالات به پـــه
شفاهي ډول صحيح تر لاسه شوي وي، قطب خان او دده نور ملګـــري
خو قطبان او د کرامت خاوندان نه وو چې دخپل کرامت له مخې يې دامـو –
ضوع درک کړی وي . هغه ســـړی چې ددغه قوم دود او دستور ســره
اشنايي ولري نو ده ته به دا ښکاره وي چې په اوسني وخت کې سره له
دې چې خلک عاقل شوي او هم لـــه نسب پيژندنې سره مينه پيداشوې
ده هيڅ څوک به داسې پيدا نشـــي چې ددوه نيم سوو کالو خپله نسب نامه
په شفاهي ډول صحيح بيان کړای شي، نو څرنګه امکان لري چې پـــه
هغه وخت کې ددوه نيم زرو کالـــو نو څخه اوږده نسب نامه په شفاهي
ډول تر لاسه شي، که څوک داسې ادعا کوي چې دغه نسب نامه د کوم
کاغذ له مخې پيدا شوې ده نـــو داهم دامکان څخه ليرې خبره ده. دا
ځکه چې داقغان د (پښتون) قـــوم غوندې يو قوم چې په هغه بانـــدې
ډول ډول انقلابو نه راغلي وي څنګه کيدای شي چې د دومره اوږدو پيړيو
اسناد او ليکنې دې وساتل شي، په داسې حال کې چې هغه ډول مضمونه
په ډيرو هوښيارو قومونو کـــې هم لاس ته نه دي راغلي، او ددغه
خبرې ثبوت نه په مخزن افغاني کې شته او نه هم تر اوسه پيدا شوی
دی .

د مخزن افغانـــی کتاب د تاليف او تصنيف علت څرنګه چې په خپله
موءلف ليکلی دی او هغه ددې له پاره دلته ليکل کيږي چې د هغه په مقصد
او مرام باندې وپوهيږو، نو هغـــه علت دا دی چې خان جهان لودي
خپل احساس او غيرت دې ته وهڅاوه چې د خپل قوم او کورنۍ د مقام د

اوچت ښوولو له پاره د واقعیت په خلاف یو ځه ولیکی خو زه عقیده لرم چی دداسی نفسا نی او با طنی غوښتنی له پاره باید له واقعی لاری څخه منحرف نشو.

دا څو کنده خبره ده چی د مخزن افغانی کتاب ځینی نقلو نه د کتاب د تصنیف د علت په باب، ممکن دکاتب لخوا غور ځول شوی وی، خو په اصل کی یی واقعی سبب همداو. او هغه د مخزن افغا نی کتاب چی ماته غلام حسن خان علی زی د کابل سرکار ایلچی د یوی معتبری کورنی له کتا بخا نی څخه اخستی او ماته یی راوړی او اوس دلته زما مخکی پر میز پروت دی په هغه کی داسی لیکل شوی دی.

**نقل په هماغه ډول چی په کتاب کی دی :**

«ددغه کتاب دتصنیف علت دادی چی زمونږ د عا لیشا نه پاچا محمد جها نګیر حضور ته دایران څخه یو ایلچی راغی او د پښتنو انسل یی له دیوانو څخه وګاڼه او له یوه معتبر کتاب څخه یی په دی ډول بیان وکړ. چی یووخت د ضحاك پاچا ته داخبره ورو رسیده چی په لویدیځو برخو کی څو تنه ښایسته ښځی په لار وهنو بوختی دی او ضحاك یو لوی لښکر ددوی ملك ته ورولیږه خو د ښځوله لاسه یی ماته وخوړه، تر هغه وروسته ضحاك ددویم ځل له پاره یو لوی لښکر د نریمان په مشری هغی خواته ولیږه تر سختو جګړو وروسته د زرو پیغلو په ور کولو سره سوله وشوه اوکله چی نریمان بیر ته راستون شو نو د یوی غرنی سیمی تر ځنګه یی واړول په شپه کی یو دیو صورت اواهریمن سیرت سړی د غره څخه راښکته او یوازی یی د نریمان لښکری وتګو لی شپه کی جماع وکړه. او کله چی تښتید لی لښکری بیر ته راتولی شوی نو ټولی ښځی حامله (امیند واره) وی کله چی ددغی پیښی خبر پاچا ته ورکړل شو نوامر یی وکړ چی ټولی ښځی دی په هما غه دښتی کی ووژنی، چی په ښارونو کی به ددوی له نسل څخه فسادونه راپورته شی، ویل کیږی افغان (پښتون) به دهغی له نسل څخه وی. او کله چی ما دغه خبر واوریده نو احسا سات او غیرت می راوپا رېده او څو تنه پوه، هوښیار او د تجر بی خاوندان چی نومو نه یی په مقد مه کی راغلی دی د خپل لښکر له افسرا نو څخه وګمارل او دجهان ګوټ ګوټ ته می

ولیښل تر شو دافغا نانو د سلسله نسب په باب ښیړنه او تحقیق وکړي
چي بیا په دغه کتاب کي ولیکل شو.»
که څه هم د ایران پاچا ایلچي دافغا نا نو په باب روایت غلط او تر هغې اندازې بې بنیاده او لــــه حسد څخه ډك دي چي حتی یو ماشوم هم وربا ندې پوهیدای او د هغه په خلاف فکر کولای شي.خو دخان جهان په شان یو پوه امیر ددغو دروغــــودردولو په ځواب کي له حده زیات خپل مقام اوچت ښودلی اوخود ستایښې کړې ده کله چي ما دا موضوع ثابته کړه‌چي د مخزن افغا نی اساس په شفا هی بیان ولاړ او دمنځ تـه راتلو یو عامل یې پورتني روایـت‌دی.نو اوس به د مخزن افغانی دهر یوه روایت په باب چي د ښیړنو په بنیادکوم ثبوت لاس ته راغلی نـو هغه به په مرتب ډول ولیکل شي،په دغه بحث کي که ځیني تکي دکوم خود خواه سړي له روحیې سره برابرنه وي او لږ څه ثقیل ورته ښکاره شي نو مادی د حق پالنې له مخـــــې‌وبخښي، ددې له پاره چي موء لـف ته د خپلو ښیړ نو څخه کوم نتیجه تر لاسه شوې ده هغه‌دقوم دروحیې د په پام کي نیولو څخه پرته لیکل‌شوې ده.

**د لومړي روایت ځواب:**

د حضرت یعقوب (ع)دزوي‌یهوداله‌مړینې تر اوسه له درو زرو څخـه زیات کلونه تیرېږي او هغه تـــه دصحیح نسب نامې ور رسول یو نا ـ شونی کار دی . او ساول طالوت دیهود اله نسل څخه نه و وګوری‌نهم فصل لومړی او دویم آیت د حضرت‌شمو یل پیغمبر لومړی کتاب، چي‌په هغه کي لیکل شوي چي ساول دقیس‌بنیامین زوی د یعقوب (ع) له اولادي څخه و، نو دا دلیل دخدای د کتـاب‌دوینا د ثبوت له مخې صحیح نه‌دی.

**ددوهم روایت ځواب :**

د عهد عتیق او عهد جدید کتابونوله لوستلو څخه ځر ګندیږي چــي ارخیا او ارمیا دساول طالوت زامـن‌نه وو اودهغو دځلورو زامنو نومو ـ نه چي یې د حضرت شمویل په‌کتاب‌کي لیکل شوي په لاندې ډول دي : یوناثان ، ابینا داب ، ملکیشوع اوایشبو ثت چي له دوی څخه لومړي ذکر شوي دری تنه دساول ســـره‌د فلسطینیا نو د جګړې په وخت‌لې ووژل شول. وګوری یو دیرشم‌فصل‌له دویم آیت نه تر شپږم آیـــت پوری د حضرت شمویل لومړی‌کتاب،څلورم وروړ یعنی ایشبو ثت پخپله بستره کي دخوب په وخت کي ووژل‌شو، لکه څنګه چي دشمویل ددویم

کتاب په څلورم فصل کی له پنځم آیت څخه تر اووم آیت پوری راغلی دی. همدا راز دحضرت شمو یـــل ددویم کتاب د نهم فصل دلومړی آیت څخه تر پایه پوری لیکل شوی چی حضرت داؤد (ع) په دی ډول وپــو ــ هیده. چی یوه کورنی دساول (طالوت) نه پاتی ده چی له هغوڅخه نا ثـا ن ابن ساول د پالنی او احسان وړ دی‌او د ساول دکورنی یو مریی چی‌صیبا نومید دهغوی‌دپلټنو له پاره راوغوښتل‌شو، هغه عرض‌وکړ چی دیو نا ثا ن ابن ساول طالوت یو گوډ زوی پاتی‌دی چی د هغه نوم مغیبو شـــــت دی . حضرت داؤد ( ع ) نو مـــو ړی مغیبو شت راوغوښت او دخپلو مصاـ حبینو په ډله کی یی شامل کړ او ډیره‌مهربانی یی وربالندی وکړه، نو د ډیر تعجب ځای دی که چیری دساول طالوت زامن ارخیا او ارمیـا د داؤد (ع) وزیر الممالك‌او سپه سالا روای‌نو دغی پلټنی ته څه اړتیا موجوده وه او دا خبره جوته وه چـی د داؤد(ع) د لښکرو مشر یعنی سپه سالار د صرویا زوی یواب و، وگوری‌شپږم‌ایت،اتم فصل د حضرت شمویل دویم کتاب .

ثابته شوه چی دمخزن افغانی‌روایت‌کوم بنیاد او اساس نه لری اوهغه څه چی په دغه کتاب کی لیکل شوی‌چی‌د افغان پلار ارمیایو زړه‌ور سپهـ سالار و چی هری خواته یی فتحـــی‌تر لاسه کړی وی دغه خبره هـــم پرته له یوه له خپل ځان څخه جوړی‌شوی فخر یه خبری څخه بل څه نه گڼل کیږی .دا ځکه چی ددرویشتم فصل له اتم آیت څخه ترنه‌دیر شم آیت پوری چی د داؤد (ع) د لښکر ودتور زنانو نو مونه لیکل شـــوی په هغوکی د ارمیا او افغان د نومونواثر هم‌نه لیدل کیږی .

**ددریم روایت ځواب :**

حضرت سلیمان (ع) هیڅکلــه دافغان په نوم کی سپه سالار نـــه لاره او کله چی یواب د داؤد ( ع )سپه سالار د سلیمان ( ع ) لخـــوا ووژل شو نو په دغه وخت کی یـــی دهغه پر ځای دیهویا داع زوی‌بنا یاه د لښکرو مشر وټاکه. وگوری دملوکولومړی کتـــــاب دویم فصل پنځه دیر شم آیت .

## د څلورم روایت ځواب :

د بیت المقدس د جوړولو حال په مشرح ډول دملوکو دلو مړی کتاب د پنځم فصل څخه داووم فصل تر پایه پوری راغلی دی او په هغه کی دافغان هیڅ پته نشته او د همدی کتاب په څلورم فصل کی له لو مړی آیت څخه تر شپږم آیت پوری د حضرت سلیمان د دربار د مشرانو تفصیلات راغلی دی چی په هغه کی هم دافغان نوم نه لیدل کیږی د همدی کتاب په پنځم فصل کی د څوار لسم آیت له مطالعی څخه داسی څر ګند یږی چی دهغی ډلی مشر چی بیت المقدس یی جوړ اوه د عبدا زوی او ونیرام واودا چی لیکلی یی دی چی دیوانو افغان ته دپښتو ژبه وښودله یوازی یوه خبره ده او هم دا چی بیا دافغان شان او شو کت په پیریانو، انسا نا نو او امر یمنا نو باندی جاری او دی د بنی اسرا ئیلو ، روم او شام کی داختیار خاوندو، دا یوه داسی خبره ده چی د فخر او خپل قدرت د اوچت ښودلو له پاره جوړه شوی ده. که د افغان په نامه کوم سړی په بنی اسرا ئیلو کی ژوند کولی نو باید هرو مرو دهغه نوم دبنی اسرا ئیلو په مقدسو کتا بو نو کی او تواریخو کی ذکر شوی وی په داسی حال کی چی اوس داسی کوم نوم په دغو کتا بو نو کی نه لیدل کیږی نو شتایه دغو خبرو جوړو نکی هما غه قطب خان او ده د ملګرو شتنفا هی بیان وی .

## د پنځم روایت ځواب :

که چیری دافغان داولادی شیر په هماغه اندازه ډیر وای چی په مخزن افغا نی کی لیکل شوی نو دعهد عتیق په کتا بو نو کی چی دبنی اسرا ئیلو د کورنیو نو مونه ذکر شوی دی په هغه جمله کی باید هرو مرو دبنی افغان دکور نی نوم هم راغلی وای. همدا راز که چیری په دغه نوم کومه قبیله په بنی اسرا ئیلو کی موجوده وای نو دهغی نوم به هم په کی ذکر شوی وای، دالهی کتاب او شام تاریخ له مطا لعی څخه څرګند یږی چی په بنی اسرا ئیلو کی هیڅ یوه کورنۍ د بنی افغان په نامه موجوده نه وه، او څنګه چی په رښتیا سره د بنی اسرا ئیلو د هیڅ کورنی دنیکه نوم افغان نه دی نو بنی افغان هم موجود یت نه لری .

## د شپږم روایت ځواب :

که چیری دا ومنو چی د بابل پاچا بخت نصر په وخت کی چی د بنی اسرا ئیلو قوم یی له خپلی اصلی تاتو بی څخه شړلی او له دوی څخه دافغان قوم د غور په غرونو او ددغه ځای په نورو شاو خواکی را غلی او میشته شوی وی او بیایی دخپل زیا توالی په اثر ټولی غر نیسی سیمی نیو لی وی د یولسم روایت له مخی چی په هغه کی لیکل شویدی چی ټول صحیح النسبه افغا نان دقیس عبد الر شید اولاده ده نو دا سوال را منځ ته کیږی چی هغه زیات شمیر افغا نان چی دقیس عبد الرشید له پلر و نو او نیکو نو سره را غلی وو . اوس چیری دی، او څنګه چی دقیس عبد الرشید داولادی نه پرته چی له دریو زامنو څخه یی دپښتانه قوم دری لوی ښاخونه یعنی سړبنی غور غشت (غرغښت) او بیټنی منځ ته راغلی او مشهور دی چی د لودی او غرزی ښاخونه د قیس دزوی بیټنی لمسی دی ، او کرړانی یا کرلا نی د عبد الله اورمړ متبنی (په زوی توب نیو لی ) زوی او د سړبن لمسی اولادی نه پر ته کو مه قبیله یا قوم په افغا نستان یا په کوم بل هیواد کی د پخوانی نسب نامی له مخی نه افغا نان (پښتا نه ) بلل کیږی او نه افغا نان شته. نو ددغه سوال ځواب دادی چی د قیس عبد الرشید له نسل څخه پرته نورافغانان چی له ده سره وو د غور په غرونو کی له منځه ولاړل، خو حقیقت دادی چی نور څوك له ده سره نه وو نو له دغه دلیل نه څر ګند یږی چی دغه روایت هم صحیح نه دی او له ځان څخه یی جوړ کړی دی.

## د اووم روایت ځواب :

کله چی داعرا بو تاریخ مطالعه شی د کوم شك او تردید څخه پرته دا جو تیږی چی خالد دو لید زوی په اصل کی قریش دی، خو څنګه چی دی ډیر زړه ور سپه سالار و او دمغه نوم په لویدیځو ملکو کی د شام د نیو لو او نورو سو بو له امله ډیر مشهور دی نو ځکه د مغزن افغا نی لیکوال هغه افغان بللی دی او ددغه کار څخه دده مقصد دا وچی افغا نانو (پښتنو) ته د پیغمبر، پاچااوامیر سره د خپلو قومی ریښو کټول د افتخار ځای دی، چی په زړه دول له یوی خوادایرانی ایلچی اعتراض ردکړی او له بله پلوه د ځا لد بن ولید سره د خپل نسب په کڅ ولو او د

هغه په صفت کولو سره خپل نسب لوړوښیی ، په داسی حال کــــی چی خالد قریش و، **د مخزن افغا نــــی** دلیکنی څخه دا په واضح ډول څر - **گند یږی چی تر اوسه ډیر افغا نان**(پښتا نه ) **خپل ځان د خالد بن ولید له نسل څخه گنی، نو دلته بایدفکروشی که چیری مشهور عرب سردار** خالدبن ولید افغان وای نود هغــــه کور نی اویا په خپله دی به اعرابو افغان بللی وای .

## د اتم روایت ځواب :

د پور تنیو ځوا بو نو څخه څرگند یږی چی ددغه نسب مسئله له اووه **ډیر شم پښت څخه تر پنځه شلو پښتم** پښت پوری جوړه شوی ده خو دساول دنسب **د شجری له لیدو څخه چــــی** د عهد عتیق په کتاب کی د حضـر ت **ابرا هیم خلیل الله پوری په متفرق** ډول راغلی ده څرگند یږی چی دمخزن افغا نی نسب نامه باطله او غلطه ده.

دساول طالوت **له زمانی څخــــه** دحضر ت محمد (ص) تروختِه پور ی چی قیس عبدا لرشید د هغه سره په یوه وخت ژوند کاوه تر( ۱۶۰۰ ) **یو زرو شپږو سو کالو څخه لږ څه زیاته موده تیره شوی وه او (۳۷)** اوه دیرش پښتــــه د دومره اوږ دی مودی **له پاره خورا کم دی او ددغه** نسب نا **مې په باب دِ مخزن افغا نی** له روایت نه پرته تر اوســه د داد **وړ هیڅ کوم ثبوت او سند لاس** ته نه دی راغلی .

## د نهم روایت ځواب :

د اعرابو د تاریخ او همـدا راز دحضرت محمد (ص) دوقایعو له مطا- **لعی څخه چی د حبیب السیر په** نوم معتبر **تاریخ کی یی په مفصل ډول** ذکر راغلی څر گند یږی چی د قیس عبدالرشید په نوم کوم دی تـه د مهاجرو اونه دانصارو په ډله کـــــی شته اونه **کوم ثبوت شته چی حضرت** محمد (ص) چاته دملك خطاب کړی وی دلتــه سوال پیدا کیږ ی که چیـری **فرضاء حضرت محمد (ص) افغا نانو**(پښتنو ) **ته ملك خطاب کړی وای نو په ملیار اواوان او نورو هندی** قومو نو کی چی د کلی معتبر عمو ماً دملك په نامه یا دوی. نو هغوی ته دا خطاب چاو رکړی لکه. څنگه چــی په اوسنی وخت کی ملك فیروز ملیار، ملك جلو ، ملك شرفو او نور دملیار له قوم څخه او ملك فیضاء او نــو **اوان قبیلی مشرانو او** معتبرا نـو **ته د ملك خطاب کیږی نو به دوی** هم دا ادعا کوی چی زمونږ نیکو نـو **ته هم حضرت محمد (ص) د ملــك** خطاب ږ یدی . څر گند یږی چی د

ملك خطاب یو رسمي تعریف دی چه د کلی د مشرانو او معتبرانو له پاره راځي چي په ځینو نورو سیمو کی د دوی له پاره تمبر دار، چودری یا مقدم کلمی هم استعمالوی چي د دغو ټولو کلمو مقصد یو دی او غالباً به ملك به دما لك د کلمی لندیزوی. یعنی د کلی مشر او داسی اتکل کیدای شی چی دغه کلمه د سلطان محمود غزنوی له وخته مروجه ده تر هغه وړاندی په کوم تاریخ کی د کلی یا قریی د مشر له پاره د ملك د لفظ استعمال نه دی لیدل شوی. تر هغه وروسته ترکی غلامانو او نورو سر دارانو ته هم ملك ویل کیدل. د تاریخ فرشته له مطالعی څخه داسی څرګند یږی چی د هند په دربار کی دملك کلمه د افغانانو پر ته نورو ډیرو ملا زمانو او امیرانو ته استعمالیدله. نو ویلای شو چی دغه کلمه یوازی په افغانانو (پښتنو) پوری منحصره نه ده او په قرآن مجید کی ساول طالوت ته دغه کلمه استعمال شوی ده او لام یی زیر لری د هغه ملك څخه مقصد پاچا دی او هغه باید له دغی کلمی نه بیله وګڼل شی

**د لسم روایت ځواب :**

د عربی لغاتو له څیړنی څخه څرګند یږی چی دوی هیڅ ،لرګی د بطان په نامه نه پانوی که فرضاً بطان داسی لرګی هم وی دد غه خبری ثبوت نه شته چی حضرت محمد(ص) به قیس عبد الرشید ته دپتهان لقب ور کړی وی.

د حضرت محمد (ص) د پیښو له مطالعی نه هم څرګندیږی چی د حضرت محمد (ص) په پاکو عادتونو کی دغه عادت هیڅ نه وچی د پاچاهانو په شان دی چاته دنیایی القاب او نور نوموته ورکړی وی ، بر سیره پر دی دا په هر چا ته څرګنده وی چی افغانانو (پښتنو) ته د هند خلك یا هغه خلك چی دسند رود په ختیځ کی پرا ته دی پتهان وایی، مګر افغانان په خپله یو بل ته د پتهان کلمه نه استعمالوی او په نورو لویدیځو سیمو کی هم په دغه نامه نه بلل کیږی. که چیری دپتهان کلمه حضرت محمد (ص) استعمال کړی وای نو طبعاً به دغه کلمه د لویدیځ لخوا راغلی او پخپله دغه خلکو به هم تبرکاً ځانو نه پتهان بلل نه چی د هندوستان خلك دوی پتهان وبولی او هم اعرابو چی ددوی له ملك څخه دغه لقب راغلی باید دغه کلمه استعمالولی نه د سلیمانی او یا زمونږ په عصر کی د سند رود ختیځ خواته اکثره

خلك هغه چاته چي په پښتو خبري‌كوئ او له افغانستان نه راځــي
روهيله او راشه وايي، چي دروهيله كلمي‌څخه مقصد داو ه‌دملك اوسيدو-
نكي او د راشه كلمه ځيني افغانان (پښتانه) د تواضع تكريم اوخوشا-
مد له پاره استعما لوي او كله چي ديوه بل كره ځي راځي نو وايــــي
چي راشه او دغه كلمه دهن كلــه راشي كلمي اختصار دي ، نو آيــا د
پښتنو ، څو پښته وروسته نســـل‌به دا ادعا وكړاي شي چي مونــږ
ته دروهيله او راشه خطاب كــوم‌پغمبر يا غوث را كړئ دي، نو پــه
همدئ دول د پتهان كلمي په باب‌هم بايد داسي ادعا ونه شي.

# د پښتان د کلمې د تسمیې وجه

که څه هم په یقیني ډول معلومه نه ده، مگر په دې کې شك نشته چې ددوی دژبې اساس اوبنیاد هندي ژبه ده . په تاریخ فرشته کې کښل شوي دي ، کله چې داسلامي پاچاپانو په وخت کې دغه خلك دلو مړي ځل لپاره هند ته راغلل نو پــــه پښتنه کې میشته شول له همدې کبله دهند خلکو به دوی ته پتهان ویل :داسې فکر هم کیږي چې بنایي ددغه کلمې اساس دپښان څخه اخیستــل شوي وي. څرنگه چې دغه خلك له لویدیځ لوري څخه راغلي وو نــو ددغه ځای پښواني اوسیدو نکي یـې بیدخله (بې و اکه )کړل او هغــوی پخپله ژبه کې دوی ته پښتنه ان ویل یعني انکر پښتني چې دبید خل کونکي او بربادوونکي معنی لري چې تراوسه هم د سند ساگر په دوآبه کې بــر بادولو ته بتهاًا وايي چې د زیـــاد استعمال په وجه دپښته ان دکلمو نه پتهان جوړ شو، همدا راز د قیــس عبد الرشید زوی بیټنې نومې چې دهغه لمسیان (د لودی قبیلې) دتولو افغا نانو (پښتنو) نه مخکې پــــه هندو ستان کې شهرت وموند نوهغه ته په هندو ستا نیا نو د خپل ژبني تصرف له کبله بتهان ویل، یعني دبیټنې اولاده . لکه چې د پو هـــــاو بصیرت خاوندانو ته څرگنده ده چې دداسې الفا ظو تصر یف او تبدل دیوی ژبې نه بلې ژبې ته دیـــو لیدل کیږي نو ځکه د موء لف له پاره بادو لو ته بتهنا وايي چې دزیـا د لفظي تصـر ف نـه پر تــــــه بله کومه معنی او وجه نلري . *

---

* دپښتني حیات خان د دغې نظریې ملاتړ د تعلیقا تو په برخه کې وگوري

# دپښتون د تسمیی وجه

دپښتون دکلمی دتسمیی وجه د یوه معتبر او باوری روایت له مخی داسی ښودل کیږی چی پښت دیوی سیمی نوم دی چی په غور کی موقعیت لری او په لومړی سر کی ددغه قوم لوی نیکه قیس عبد الرشید په کی استوګنه درلوده . دپښت په سیمه کی د اوسید لو له کبله هغه خلك دپښتون په نامه یاندی مشهور اودڅبی نوم یی هم پښتو کیښنو دل شو یا دا چی پښتون چی پشته ته منسوب دی چی دغو ندی په معنی دی له دی کبله چی دغه خلك په غرنیو سیمو لکه غورات ، سلیمان غر یا کسی ، په غره کی اوسیدل نو ځکه دغه قوم د لپی لفظی تصرف په وجه په پښتون سره ونومول شول،له دی کبله دروهیله او پښتون تر منځ ډیر مطا بقت شته . نو په دی اساس د پښتون معنی غرنی دی .

# دافغان دکلمې دتسمیې وجه

لکه څرنګه چې مخکې وویل شول دمخزن افغانی درروایت له مخې ددې قوم هیڅ موء رث (نیکه) افغان نه و چې دافغان دتسمیې وجې علت و ګڼل شي . دغه کلمه ډېره پخوانی نه ښکاری او ددې کلمې اساس فارسي ژبه ښو دل شوی ده دا خلك پـــه خپله پښتو ژبه کې ځانته هیڅ کله دافغان کلمه نه استعما لوی بلکې خپل اصل پښتون او یا پختـــون ته منسو بوی. داسې یې قیاس کړی که چیری ددې مورث (نیکه) افغان نو مېدای او د هغه په سبب د ده اولاده په افغان باندې مشهوره شوی وای نو پخپله یې هم ځانونه افغان بلل نه داچې دبلې ژبې خلك دوی په دغه نامه بولي، دا یوه څرګنده خبرده چې دنیکه نوم داولادې له نامه سره ښه ارخ لګوی او پوره تنا سب ورسره لری خو دایو دلیل دی چې د افغان کلمه له بلې ژبې څخه راغلې ده .

په تاریخ فرشته کې دافغان دتسمیې وجه په دې ډول لیکل شویـــده:

(لکه چې دغه قوم په (۱٤۳) هجری کال د پیښور په شاو خـــوا سیمو یر غلو نه وکړل او دغـــــه سیمې یې ونیو لې نو د لاهور راجا یعنې هغه څوك چې ددغو سیمـــو ښښتـــن ود هغوی مقابلې تـــه یـــې

يـو فوځ ولیږه‌چی ددوی تـــر مینـــځ خـــر جــــګړی پیښی شوی او دکابل ،غور خلـ----ج‌مسلما نان د افغا نا نو مرستی ته له‌دی کبله راغلل چی‌له دوی‌سره په دین کی شریك وو، کله چـــی د پنجاب د راجا پوځ بیر ته بشتـــو ن اوهم دکابل او خلج خلك چی دافغا- نا نو مرستی ته راغلی، وو بیر ته‌خپلو ځایو نو ته ستا نه شول نـــو هر چا به چی له دوی څخه پوښتنه وکړه چی دکوهستان د مسلمانا نو احوال څه ډول و نو هغوی به پـــه پارسی ژبه کی داسی ځواب ورکاوه چی د (کوهستان میګو ئید افغـــانستان بګو ئید که به جز فغان به معنی فریاد و غوغا دران جا چیـــز ی‌دیګر نیست) . نو له دی کبلـــه خلك هغوی ته افغان او ددوی ملك‌ته افغا نستان وایی.*

## دیووِلسم روایت ځواب:

که څه هم دغه روایت د مخزن افغانی له نوروليکنو سره تو پیر لری خو له اوسنیو حالاتو ســـره دغه روایت حقیقت ته نږدی ښکاری.

## ددولسم روایت ځواب :

ښایی دا کفایت وکړی چی داجوړه شوی کیسه د کوم ثبوت او دلیـــل نه پرته پرو سږ کال لیکل شوی ده‌او پورتنی راوړل شوی ځوابو نـــه چی د عهد عتیق کتاب په استنادلیکل شوی د هغه له مخی جو تیږی چی حضرت سلیمان (ع) هیڅ افغان‌مصاحب نه لاره چی د هغه سره پـــه دربار کی په پښتو ژبه رازونـــه ووایی . دالهی په کتاب کی داثابته شوی ده.چی د حضرت سلیمان ( ع )غوندی پوه ، علم‌او پاچاهی بل هیڅ چاته نه وه تر لاسه شوی فرضـــاءکه چیری د حضرت سلیمان خـــاص رازونه او سلطنتی چاری په دی‌ژبه رسیدلای نو ددی ژبی دقوا عدو کوم کتاب خو به ترتیب شوی وای اوهمدا راز د افغا نستان څخه پرته به په نورو هیوادو نو لکه شام یاعربی‌نړی کی چی هلته بنیٔ اسرائیل ډیر دی ددی ژبی کومه نښنه نښا نـــــه موجوده وای نو دا هیڅوك نه شـــی ویلای چی د حضرت سلیمان تول‌مصا حبین به د بیت المقدس څخـــه دامان اوافغانستان ته راغـــــلی او‌میشته شوی وی او یوازی په دغـــه سیمه کی د پښتو ژبی خپر یـــدل دا ښیی چی‌دغه‌روایت دخپل‌ځان‌له پاره‌د افتخار حاصلولو په منظور منځ ته‌راغلی دی .

---

* دافغان کلمـــــی تا ریخی یادو نی دتعلیقا تو په‌برخه کی و ګو ر ی.

# دپښتو ژبې اساس

څرګنده ده چې ددې ژبې اساس ډېر پخوا نې نه ښکارې او د اوسنې پارسې ، پهلوې او پخوانې ژند(زند)ژبو له يو ځای کېدو څخه دغه سخته ژبه مروج شوې ده،داژبه داوريدونکو په غوږو بده نه لګيږي ، خو لږه زيږه ده، هغه څوك چې ددې ژبې سره څه نا څه پېژند ګلوی ولري دا خبره به ومنې چې په دې ژبه کې دپارسې ژبې اکثره کلمې په لږ تغيير او ځينې يې بې دلهجې له تغيير نه په کې موجودې دي.لکه څرنګه چې الفنستن په خپل کتاب کې ليکلې چې د پښتو ژبې دوه سوه اتلس کلمې چې په نورو ژبو کې هم مطلب په هماغه ډول افاده کوي. دلاند نيو ژبو سره پر تله شوي . پارسې ،ژند(زند) پهلوې سانسکريت، هندو ستانې ، عربې، ارمنې ،جورجيانې، عبرانې او بابلې چې له هغه جملې څخه يو سلو لس کلمې د يوې ژبې سره هم مطابقت نه لرې پاتې نورې يې اکثراء پارسې دي ، ځينې نورې يې له پهلوې او د ژندنه پارسې ته راغلې دي خو ځينې داسې وې چې پخپله دپهلوې او ژند (زند) وې ځينې کلمې په سانسکريت کې موجودې وې او پنځه يا شپږ يې د هندې ژبې څخه راغلې وې همداراز عبرانې ژبه چې دبنې اسرائيلو لومړنې ژبه ده د هغې سره يې يوې کلمې هم مطابقت نه لاره کله چې

مؤلف (حیات خان) سل‌هم معنـــی‌کلمی د پنجا بی ژبی سره پر تله کړی نو د هغو څخه فقط پنځه یـــاشپږ کلمی په پنجا بی کی وموندل شوی . ددی دلیلو نو څخه دغـــه نتیجه لاس‌ته راځی چی پښتو ژبه د بنی اسرا ئیلو په ملك کی منځ نه نه ده راغلی . د پښتو ژبی هغه برخه چی د مذهب سره تړلی ده‌هغه دعربی نه ورننوتی ده .اردو ژبـه چی د پارسی، هندی او عربی ژبـو دیو ځای کیدو نه جوړه شـوی ده . نو په هغی باندی هندو ستانیان‌دعوه‌نه کوی چی د کوم پیغمبر یا پا چا درازو نو د ویلو په سبب منځ تـــه راغلی ده او دا خبره بیخی سمـــه نه ده چی عرب، افغانانو‌ته د حضرت‌سلیمان سره د مصا حبت په وجـه سلیما نی وایی. دا څنګه کیدای شی چی د حضرت سلیمان (ع) ټول مصاحبین افغا نستان ته راغلی وی، که دا ژبه دحضرت سلیمان دمصاحبینو پوری مربوطه وی نو په نوروهیوادوکی هم باید بنی اسرا ئیلو تــــه سلیما نی ووایی . د سلیمانی کلمی‌څخه دا جوتیږی چی دسلیمان غر ه څخه اخستل شوی چی په دغه هیوادکی مو قعیت لری. او عربان ددغـه ځای اوسیدو نکو ته سلیمانی وایی‌که نه‌نو بل‌علت یی‌څرګندنه دی . ګردی خیری ، لوړی پوزی او جګـــی‌ونی له چا څخه بنی اسرائیل نه شی جوړولی او ټول افغا نان هم دغــــه خصوصیت نه لری .او کـــه دغـــه ظاهری بنیه وکولای شی د چا نه بنی‌اسرا ئیل جوړ کړی نو په ازبیکـو ایماقو، ډهونډ او کرړال کـــی هم‌ډیر خلك د بنی اسرا ئیلو په شان دی او هغوی هم باید بنی اسرا ئیل‌وګڼل شی .

د پورتنیو دلایلو له مخــی زه دالفنستین چی‌مشهوره پوه‌او د علـم خاوند انګر یزو ددغی خبر ی ســره‌موافق یم چی‌په خپل کتاب کی یـــی لیکلی دی . چی د پښتنو بیان ددوی‌د نسب په باب غلط دی او داســـی ښکاری چی دوی د بنی اسرا ئیلـــو له کتابونو نه ځینی معلومات انتخاب او پخپل کتاب مخزن افغا نی کی یی ددغه مقصد له پاره لیکلی چـــی. خپل ځانو نه له پیل څخه په هغوی باندی ورګډ کړی ، په دغه خبره کی هیڅ شك نشته چی د حضرت عیسی (ع) د زیږیدنی څخه اوه سوه یـــو ویشت کاله پخوا د اشور پاچا ها نو‌تګلت پلسر اودهغه زوی سلمنا ـ صر د بنی اسرا ئیلو او یهود یا نوپه پاچا هی یر غل وکړ او له هغوی څخه یی ډیر خلك ووژل تر هغه لږڅه وروسته بل فاتح بابلی بخت‌نصر

هم بنی اسرا ئیل گرفتار او د حضرت دانیال پیغمبر سره‌یی‌بابل ته بو ـ تلل او د بنی اسرا ئیلو له دولسو قبیلو نه لس قبیلی یی ختیځ خواته لاړل او دوه قبیلی یی چی یهودا او بنیامین نومیدل بیرته ولاړل ، له دغه کبله ممکنه ده چی قیس عبدالرشید د هغو پاتی اسرائیلو نه د چا اولادوی مگر د دغه دلیل ثبوت بیخی نشته او دا په پوره ډاډ سره ویلی شو چی د ساول طاوت‌له اولا دی څخه نه دی ، نو مقصد دا دی چی په دغه باب تر اوسه کوم د ډاډ وړ او باوری پخوا نی تار یخ نه دی ترلاسه شوی .

# دپښتنو سره دخالدارېکې

دا خبره بیخي غلطه ده چــــي دولید زوی خالد بني اسرائیل اوهغه
د افغا نا نو (پښتنو) موء رث اعلی (لوی نیکه) وی.
لکه څرنگه چي مخکې ولیکل شول چې دی د عبدا لشمس د قبیلــی او
په نسب قریش و، دیوه معتبراو باوری روایت له مخې داحقیقت څر گند
یږی کله چي قیس عبد الر شید مدینې منوری ته لاړ او مسلمان شــو
نو په هغه ، وخت کې یې دساره بنت خالد بن ولید سره نکاح وکړه چــې
د هغې څخه سړ بن ، غور غشـــت (غر غښت ) او بیټن وزیږیدل چـې
هغوی د صحیح النسبه افغا نا نـــو (پښتو) نیکونه دی ، له دی کبلــه
خالددمور له خوا دپښتنو نیکه د ی نه دپلار له طرفه .په دی ډول څر-
نگه چي الفنسټن په خپل کتاب کې لیکلي دی چې د افغا نا نو دقوم نسبت
دومره مختلف او بیل بیل روایات لری څومره چې د مصر دفرعو نانو د قـوم
قبطیان یې لری . دداسې مختلفـــــو روایتو نو د شتوالی په سبب دغه
لیکنه سمه ده چې وایې ددوی اوسني مقبو ضه سیمې او موجوده حال څخه وړاندی
هیڅ صحیح پته نشته ، له تیـــروزما نو څخه که چیری مونږ ته کوم
قیس عبدالرشید تر وختونو پور ی تار یخي اسناد رارسیدلي دی هغه د
رسیږی چي د هغه له دریو زامنــو څخه مختلف ښاخو نه منځ ته راغلي

او د افغا نستان په بیلو بیلو برخو کی میشته دی او تول روا یات په دغه باب سره یو دی چی په لومړی سر کی ددوی اولاده د غور په غره کی اوسید ل، ترڅه ځودی ورو سته دسلیمان غرونو ته راغلل.
دسلیمان غرونوقطب او سهیل خواته غرونو کی تر ډیرو لیری ځایونو، پوری خواره شوی دی کله چی په (۷۰۵) عیسوی کال عمادالدین محمد قاسم اسلامی سپه سالار د سند دنیو لو له پاره راوخوځیده نو په هغه وخت کی حجاج د خرا سان دسواو کله چی هغه مسلما نان دسند هم ځو ئتنه ددوی سره یو ځای ووبی حاکم و ، دده په امر ددغه قوم له لاری ملتان ته راغلل نو دلته میشته شول ځر نګه چی ددوی شمیر زیات ودسلیمان غرونو شمال خواته دغرنیو سیمو ډیر ځایو نه یی ونیول* . د تاریخ فرشته دروایت له مخی دغه خلك داته سوه او نه سوه (ع) کلونو تر مینځ دلویدیځ افغا نستان په ختیځ او شمالی غرنیو برخو کی اوسیدل خو ددغه هیواد دلویدیځی برخی زیا تره اوسیدونکی دسامانی دو لت تر سلطی لا ندی وو .

## په پیښور باندی یرغل :

په هغه وخت کی دغو خلکو د پیښور پر پولو یرغل وکړ او د لاهور راجا چی پیښور یا بگرام هم دده دواکمنی په قلمرو کی شامل و او د اجمیر له راجا سره یی خپلوی لرله، ځرنګه چی ددوی، یرغل یی ضعیف وباله نو خپل یو سردار یی د زرو تنوسپرو په مشری ددغه یر غل دټکولو له پاره راولیږه خو افغانانو (پښتنو) ددوی جګړی په ترڅ کی ده ته ماته ورکړه او دپنجاب پوځ ته یی ډیر زیان ورساوه. کله چی دلاهور راجا دغه خبر واوریده نو د خپل وراره په مشری یی دوه زره سپاره او پنځه زره پلی پوځ یی دافغا نا نو (پښتنو) دټکولو له پاره راولیږه . دغه ځل دغور، کابل او خلج خلك چی مسلمانان شوی و و دپښتنو مسلمانانو مرسته یی په ځان لازمه و ګڼله او خلور زره کسه یی د دوی مرستی ته راواستول چی ددوی په کمك دغه خلك بریالی شول او کله چی ژمی پیل شو نو هغه وخت دلاهور را جالښکر بیرته راستون شو او دپسرلی په را تلو سره بیا دلاهور دراجاورا ره پیښو ر

*وګوری د تعلیقا تو بر خه

ته راغی له بله پلوه افغانانو(پښتنو) هم له دوی سره دجګړی له پاره دخپلو مرستندو یانو سره د جنګ میدان ته را ووادانګل د جمرودلو پیښور تر منځ سخته جګړه پیښه شوه‌مسلمانانو دوی تر پیښوره پوه شاو تمبول ، کله چی د برسات‌موسم پیل شو په هغه وخت کی دپنجاب لښکری بی له دی چی بریالیتوب هیڅ یوی خواته وروپه برخه شوی‌وی، دنیلاب دریاب له ویری بیرته پنجاب ته وګرځیدل . دلته افغانانو (پښتنو ) د نیکمرغی ښخه یوه بله پیښه هم د دوی په ګټه منځ ته راغله په دی ډول چی دګهکړ له قبیلی سره چی دسند ساګر په دوابه کی میشته وه دلاهور دراجا مخالف‌اودهغه په ضد راپور ته شول اوپه دغه لارکی یی دافغانانو (پښتنو ) پیروی وکړله تر څو دغه را جا له پښتنو سره سوله وکړه او دپیښورشاو خوا لمغان (لغمان) یی افغانانو (پښتنو ) ته په دی شرط ور کړل‌چی دپولو ساتنه وکړی او پری نږدی چی داسلام لښکری‌هند ته ور ننوځی.

په دغه وخت کی افغانانو دپیښور په غرنی سیمه کی یوه کلا جوړه‌کړه او دخیبر نوم یی ور باندی کیښود دسامانیا نو په دوره کی دوی داسی تدبیر و نیوه چی دسامانیا نو لاس لاهور ته ونه رسیده تر څو دغزنوی واکمن الپتګین ته په لاس ورغله او څرنګه چی په لومړی برخه کی وویل شول چی ډده سپه سالارسبکتګین په پیښوراو ملتان یرغلونه وکړل . مریان او وینځی یی ونیولی اوله ځان سره‌یی غزنی‌ته بوتلل او څرنګه چی افغانانو د الپتګین له لوی پوځ سره دمقابلی توان نه لاره نو ځکه یی راجا جیپال ته د الپتګین دسلطی خبرور کړ . په دغه وخت‌کی راجا جیپال داسی فکروکړ څرنګه چی د پنجاب لښکر د سړو او نورو تکلیفونو له امله سرحد ته نشی‌تلای نودراجا بهاطیه په سلا یی شیخ حمید لودی چی په افغانا نوکی دواك خاوندو وروغوښت او هغه ته یی دامارت منصب ورکړ اودسرحدی چارو دانتظام له پاره یی وګماره، له دغی ورځی ښخه افغانان (پښتانه) درتبی ښښتنان شول . شیخ حمیدپه سرحد کی یوه اندازه انتظامات منځ ته راوړل خو کله چی الپتګین مړ شو او ځای یی سبکتګین ونیوه نوشیخ حمید جګړه په خپل زیان وګڼله اوځان یی دسبکتګین خیرخواه وګانه.

دجیپال ترماتی ور وسته سبکتګین شیخ حمید تسلی کړ او د وخت د غوښتنو سره‌سم یی دملتان سیمه ده ته په جاګیر

ورکړه خو سلطان محمود غزنوي دخپل پلار په خلاف یاغي افغانان و تکول او هغه چي تابع وو دده سره ملازمان او په خدمت بوخت شول ، داسي روایت موجود دی چي ډیر افغانان (پښتانه )د محمود غزنوي او نورو غزنوي پاچا یانو په پوځ کي شامل وو او همدا راز دسلطان معز- الدین محمد په پوځ کي چي دسلطان شهاب الدین غوري په نوم هم یادیږي ډیر افغانان (پښتانه) موجود وو . او په هند باندي دیر غل په وخت کي دافغانانو ( پښتنو) لښکرو له ځانه ډیره میړانه وښودله .د شهاب الدین غوري د سلطنت په دوره کي دده دمدار المهام ( وزیر اعظم ) په حکم دافغانانو ( پښتنو ) اکثره قبیلي دسلیمان او نورو غرنیو سیمو څخه وشړل شوي او دسند دریاب ترغاړو پوري سیمي یي په خپله قبضه کي را وستي .

دسبکتګین او محمود غزنوي څخه نیولي ترشهاب الدین غوري داسلامي پاچا یانو یرغلونو ددغه ملک ډیر پخواني اوسیدو نکي چي د اسلام له سره یي مخا لفه عقیده لرله تباه او یا له ملک څخه وشړل شول او اکثره یي دسند رود نه واوښتل او په ختیځو غاړو کي میشته او ځیني یي هم په غرنیو سیمو کي خواره واره شول او هغه خلک چي په دغه وخت کي کم زوري وو لکه سواتي، لغماني ، تیرایي ،دیګان او نور په خپل ځاي پاتي شول مګر کله چي بیا افغانان د زور او قوت خښتنا ن شول نو په تدریج سره یي هغه ټول ملکونه بیرته ونیول کوم چي اوس ددوي په لاس کي دي . د دښمن کم زوري کیدل او د اسلامي پاچا هانو دمرستي نه پرته یو بل علت چي دوي د نورو قومونو سیمي ونیو لي داو چي د دوي ذفرقو او قبایلو شمیر زیات شو نو دسلیمان او نوروغرنیو سیمو څخه و وتل او دنورو ملکو نو د نیولو تکل یي وکړ او دلته د دوي له پاره دوي لاري موجودي وي یا مرګ یاد ملکونو لاندي کول په دغه ترتیب کله چي به یوي قبیلي خپل ملک پریښود او وړاندي تګ به یي وکړ نو بله قبیله به راغله اوددغه قبیلي ځاي به یي ونیوه نو دلته دلومړني قبیلي بیرته راتګ نه یوازي سخت بلکي نا شوني کار و، برخلاف ددوي مخالفو قومونو ته بي ضرره هیڅ ګټه نه وه داځکه چي که دوي ماته کړي واي نو خپل ملک یي له لاسه ورکاوه که مقابل لوري ته یي ماته ورکړي واي نو داواره قبیلو څخه هیڅ په لاس نه ور تلل

دا ځکه چی په دغه وخت کی دوی‌نه کومه شتمنی لرله اونه ځمکه.

ددوی د لومړنیو لیږدیدلو څخه تر اولسمی (ع) پیړی پوری ځومره تغییر او تبدیل چی ددغه قوم په اکثر و ښاخونو په تر لاس لاندی سیمو کی راغلی دهغه بیان په مشرح ډول دلته دبحث د اوږد والی په سبب سخت او ناممکن کار دی. خو وروسته د ډیرو ښاخونو د واقعاتو دبیان په ترڅ کی دقوم حالات او واقعات هم لیکل شوی دی.

مغلی پاچا هانو چنگیز خان اوګوډ تیمور دغه خلك لاندی نکړای شول خو محمد بابر پاچا تقریباً ټول افغانان (پښتانه) چی دافغانستان په ختیځو یا لو یدیځو سیمو کی میشته وو دټوری په زور رعیت کړل، د باجوړ او سوات تر نیولو وروسته د پیښور او کوهاټ له لاری بنو او دیره‌اسمعیل‌خان پوری پخپله بابر پاچاو ګرځیده او افغانانو (پښتنو) ته یی داډ ور کړ خو دمغولو نیت دافغانانو (پښتنو) په باب چندان ښه نه و نو ځکه به په دغه وخت کی ډیر بغاوتونه منځ ته راتلل.

# دهندوستان په ملک کی آبادی

په ددغه ملك كــي ددوئ دآبادئ سبب دادئ كله چي دغه قوم دلومړئ ځل له پاره دهنــدوستان لو يد يځو پولو ته راغلـل نو اكثراً به يي دسوداګرئ په منظور او ځينو يي د دولتي چارو په سبب هندوستان ته تګ راتګ كــاوه په تيره بيا دفيروز شاه بار بـك پـه زمانه كي اكثره افغانان (پښتانه) چي په نظامي چارو كي مشهـور او جنګيالي ځوانان يي لرل دشاهــــي اميرانو په پوځونو كي داخل شـول څرنګه چي د افغان (پښتون) قــو م يو خپلو اكي غو ښتونكي قوم او زړه ور توب د دوی يوه طبيعي خاصــــه ده له دی كبله په ډيرو جګړو كـي دوی له ځانه شجاعت او ميړانــه وښو دله نو ځكه دوی ډير مشهــو ر او ددغه زړه ور توب په وجـــه دوی ته لوی لوی پوځي منصبونـه ور كړل شوه . تر څنګه وروسته كله چي په (۸۵۵) هجري كال كي بهلول چي د پښتني لودی قبيلې شخــه دهندوستان واكمن شونو دخپلــــي واكمني دپياوړ تيا له پاره يـــــي افغانستان او دروه ملك ته يـــــو د پيرز ويني فرمان صادر او ډلـــــي ډلي افغانان (پښتانه) هغي خواتــه وليږديدل او هلته ميشته شول ، څرنګه چي نوموړی خلك په خپـــل ملك كي د شمير د ډير والـــي پــه وجه غريب وو په هندو ستان كــي دمال او عزت خاوندان شول چـــي دهندو ستان په هره ضلع كــــي افغانان ميشته شوی وو . او تــــر هغه وخته پوری چي د هندو ستا ن

واکمنی دبهلول او افغان سوري شیرشاه دکورنی په لاس کی وه په دغه موده کی افغانانو ډیره ترقی کړی وه او ترهغی وروسته هم دخپلو هم قومو امیرانو په هیلـه ډیر خلك چی په خپل ملك کی به یی گذاره نه کیدله ،نو هند تـه بـه تلل . که څه هم دافغان قوم څخـه داسی کوم ښاخ نشته چی د هغـه څخه کوم سړی هندته نه وی راغلی مگر اندړ ،یو سفزی ، لودی ،کاکړ، خوېشکي ،سروانی ، اور کـزی، کړانی او نور لاتر اوسه پـورې په هندوستان کی او سیږی او دشتو او جایداد ونو خاوندان دی.

# دویم باب

## دقیس عبدالرشید داولادی بیان
## چی له دوی څخه دری لوی قبیلی منځ
## ته راغلی دی

سریزه :

دا څرګنده خبره ده هغه وخت چی قیس باطل دین پریښود او د اسلام په مقدس دین مشرف شو، نو دهغه نوم د قیس څخه په عربی بدل او داسلامی قوا عدو سره سم عبدالرشید کیښودل شو لکه چی اوس هم دغه دود شته هغه وخت چی څوک نوی مسلمان شی نو په دغه مسلمان شوی باندی داسلامی طریقی سره سم په عربی ژبه نوم ایښودل کیږی . په دغه خبره کی اختلاف موجود دی چی قیس د چا په زمانه کی داسلام دین ومانه . افغا نی روایات په دی خبره اتفاق لری چی نوموړی د حضرت محمد په وخت کی مسلمان شو . *

دغور د تاریخ څخه یو داسی روایت هم لاس ته راغلی دی کله چی په کوفه کی د څلورم خلیفه حضرت علی کرم الله وجهه په حضور کی دغور ملک حکمران شنسب یمان راوړ نو په دغه وخت کی قیس هم دهغه سره یو ځای داسلام په دین مشرف شو ، قیس عبدالرشید له خپلی یوی میرمنی څخه دری زامن درلو دل ، لو مړی سړبن چی دهغه اولادی ته په مجموعی ډول سړ بنی وایی ، دویم

---

* وګ . دتعلیقاتو برخه

## د سړبن ابن قیس عبدالرشید د نسب شجره

سړه بن

شرخبون  خرشبون

ترین  شیراني  میانه  بړیڅ  اورمړ  دپاتي شلورو ذکر به وروسته راشي

ابدال  سپین  تور  د تور او سپین بیان وروسته راځي

لومړی میرمن  دویمه میرمن چې خوابګاني نومیده

رجال یا رحیم  سلیمان

د لومړي میرمني اولاد نه درانی وایي

ادوزي فقیر شوی و

عیسی  ماکو  علي زي  ادوزي  خاکواني

میر  سلیمان یا زیرک  نورزي  بیدل زي  فیروزي  ماحب زي  حسن زي  ګیوزازکا الکوزي

اسحق زي  چلاک زي  درزي  درزي  سکندرزي  سوګني  خیرزي  شیخ زي  مشوزي  خویدادزي

کانوزي  بهادرزي او نور

مندین زي او هوازي دواړه د خپلو موطنو (هیڅو) په نامه بلل کیږي

ایدي زي  مندین زي  هوازي  فیروزي

پاګل زي  پنج پای او نور

د سلیمان یا زیرک له اولاد نه پرته پاتي ابدالي د پنج پایه نامه یادیږي





زیرک
پوپل زی
بارک زی
علیکوزی
موسی زی
موسی زي د بارکزیو له نصرت:
بناخ سره گډ شو
دی
حبیب زی
یا باکو
بادوزی
ایوب زی
صفو
شکر
پاپو
اپل
سرکانی
زکوزی
بامی زی
اسمعیل زی
حسن زی
بوسعید
یعقوب زی
دولت زی
پروت
زنگی
میلازی
کانی
بساما
نصرت
قلندرزی
بوستان زی
نسوزی
پاپی زی
کوتی زی
بهلول زی
زینک زی
بانوزی
خالوزی
یاروزی
نکری زی
اونور
معروف
علی خان
بیان زی
فیروزی
جیلانی زی
عمر
بای زی
نورالدین زی
عبدالله زی
رکن الدین
نصرت زی
صالح
سدوزی
یاسر یازی
علی
اڅک زی
اتمان زی
سنجر زی
موسی زی
عمر زی
گرجی زی
خونسی زی
بیان زی
باکل زی
غیبی زی
جنک زی
تارزی
خان خیل
ابراهیم زی
سیفل
ملک دین زی
خضرزی
انگی زی
لوط
ولی زی
خواجک زی
آکاخیل
سید خیل
دارو
مدی زی
جمال زی
بورزی
خواجی زی
ابازی
محمد زی
یارو
حاجی یوسف
عمرخان زی
نیک
اسمعیل
خضرخان
این زی
شیخی زی
پای زی
حاجی جال بیان یي وروسته راغي


۱۹۴۵



حاجی جمال خان
رحیمداد خان
پاینده خان
هارو خان
بهادر خان
امردین خان
شاه سوار خان
محمد رحیم خان
وزیر فتح خان
نایب تیمور قلی خان
امیر دوست محمد خان
امیر محمد خان
سردار محمد عظیم خان
نواب سعد الله خان
نواب عبدالصمد خان
حبیب الله خان
طره باز خان
سردار محمد عثمان خان
پردل خان
سردار کهندل خان
شیردل خان
رحمدل خان
اسلام خان
جمعه خان
نواب عبدالجبار خان
سلطان احمد خان
محمد عمر خان
احمد خان
شهنواز خان
عطا محمد خان
یار محمد خان
سلطان محمد خان
پیر محمد خان
سید محمد خان
وزیر محمد اکبر خان
غلام حیدر خان
امیر شیر علی خان
سردار محمد امین خان
محمد شریف خان
سردار ولی محمد خان
فیض محمد خان
سردار محمد اعظم خان
سردار محمد افضل خان
خوشدل خان
محمد حسن خان
محمد اسلم خان
محمد قاسم خان
محمد محسن خان
محمد حسین خان
خیر محمد خان
نیک محمد خان
صالح محمد خان
شمس الدین خان
نظر محمد خان
سلطان علی خان
محمد صدیق خان
غلام محمد خان
محمد سرور خان

غور غشت (غرغښت) ، دريم بيټنچي دده نسل ته بيټنني وايي چې د غو دريو وارو څخه ، سړ بــرتر ټولو مشرو چې دهغه د نســل او دهغوی دښاخو ذکر وړاندی راغی.

د لته دهری لویی قبیلی حـــال او تاریخ د لیکنی څخه وړاندی دهغی قبیلی شجره ذکر کیږی تر څـــودهری یوی قبیلی تفصیل اوښاخونه او د دوی ترمنځ اړیکی څرګندی شی.

## دشجری پیژندنی په باب یادښت:

دد‌غه کتاب لوستونکو تـــه دی‌دشجرو دلوستلو په وخت کـــی دا خبره په یادوی چی په افغا نا نو کی دخیل اویازایی (زی) دکلمو څخه مقصد دیوی قبیلی او یا ښاخ څخه دی، دپښتو په ژبه کی اصـــلاً د (زایی) دکلمی معنی زوی یا اولاددی نو که چیری دکومی قبیلی لـــه نامه نه وروسته دخیل یا (زایی )کلمه راشی نو مقصد به یی دا وی چی دغه قبیله یا ښاخ د هما غه چاچی نوم یی اخستل شوی او لاده‌ده، دبیلګی په ډول بارك چی اصلاً یوه شخص نوم دی کله چی د نوموړ ی د نوم په پای کی دزایی کلمه ولیکل‌شی نو بارکزایی ور څخه جوړیږی چی مقصد یی دبارك اولاده‌ده ، همداراز یعقوب هم یونوم دی که چیری له دغی کلمی سره دخیل کلمـــه یو ځای شی نو یعقوب خیل‌ور څخـه جوړیږی چی مقصد یی دیعـــقوب اولاده ده، نو له دی کبله په دغه شجره کی نوم سره یو ځای هغـــه کلمه ګډه شوی ده چی نومـــوړی قبیله پری یادیږی . داځکه چـــی د مربوطی قبیلی دنومونی غـــایـــی علت څرګندوی .

# لومړی فصل

## د سړبن د اولادې بیان

داسې روایت موجود دئ چــــې دعبدالرشید مشر زوی سړبن کــوم اولاد نه لاره هغه دخپل کوچنــــې ورور شیخ بیټنی زوی چې اسمعیــل نومیده په زوی توب ومانـــه ، اوبیټنی چې یو زاهد او پرهیز کــاره انسان و ، دهغه د دعاوو له برکته خدای (ج) سړبن ته دوه زامـــــن ورکړل چې یویې شرف الــــدیــن چې شر خبو ن با ندې یې شهـــرت موندلی و دوهم خیرالدین چې پــــه خر شبون با ندې مشهورو چې دهغوی داولادې شجره په لاندې ډول ذکــرشوې ده .

# دابدالی یادورانی قوم یادونه

دنسب دشجری له کتلو څخه داسی څرګندیږی چی د سړبن د زوی شرخبون لمسی ابدال نومیده چی دهغه له ،نسل څخه دغه قبیله منځ ته راغلی ده او دا کسان چی په لومړی سرکی د ابدال نوم بل څه و او کله چی دخواجه ابواحمدابدال چشتی حضور ته ورغی او د هغه خدمت ته یی ملا وتړله نو دغه په ده مهربانی وکړه او د ابدال خطاب یی ورکړه هغی ورځی څخه دی په دیّ نوم سره مشهور شو او دده اولاده هم دابدال په نوم یادیږی او افغانان پخپله ورځنی محاوره کی ابدال داول په نامه یادوی .

# دابدالي کورنۍ واکمن

په لومړۍ سر کی د دغه قبیلــی نیکونه یوازی دخپلو کورنیــو واکمنان وو ، خو وروسته چی یــی په ورو او تدریج سره ددوی پــه شمیر او فتو حاتو کی زیاتوالــی راغی په هماغه ډول دقبیلی دسردار انو قدرت هم مخ په زیاتیدو و .

داسی روایت شته کله چــی دابدال پلار (ترین) دمړینی وخت را لنډ شو نو هغه وغو ښتل چی خپلو هغو دریو زامنو شخه چی په نسب نامه کی یی ذکر شوی خپل ځانته جانشین وټاکی اود تور او سپین دخپگان او نارضایت سره سرهابدال یی قایم مقام وټاکل شو او دمشرپه توکه د ابدال ټاکل کیدو یو علــت داو چی دی دیوه سید له خوا چــی ددوی پیرو ددغه منصب ور وګنل شو خو ابدال پنځه کاله وروستــه مړ شو او تردء وروسته د هغه مشرزوی رځړ یا رجړ د خپلی کورنــی مشر شو او ده له خپلو زامنو شخه مشر زوی چی عیسی نومیده خپــل جانشین وټا که او کشــر زوی ادود خپل پیر دغو ښتنی له مخی تارک الدنیا شو .

دعیسی د زامنو په ډله کــی سلیمان تر ټولو هوښیار او حتــی په خپله قبیله کی هم دډیرو پوهو کیسانو له جملی شخه و، نو ځکــه ده ته به یی زیرك هم وایه چــی تر اوسه هم دغه محاوره پــه افغانانو (پښتنو) کی شته چــی هو ښیار سړی ته زیر ك وایـــی

نو عیسی سره له دی چی مشر زوی دمیرك په نامه لاره ،خو سلیمان یی دخپل هوښیار توب په سبب خپل جانشین وټاکه د زیرك په ځلورو

زامنو کی مشر بارك نومیده او پلار دی دکورنی مشر ټاکلی و، خو د زیرك د نا رسمی پت او حیثیات په وجه دغه عمل تر سره نه شو ، د زیرك د

خپکان علت څرنګه چی ښاغلی میجرلیچ دابدالیانو دحالاتو په برخه کی لیکلی دی ، داو چی پووارد و دغوښتل خپل د اوسید لوڅای بدل

کړی او هرڅه خپل شیان او کالی راخیستی او وړل یی خو ځنګه چی په دغه وخت کی دزیرك عمر له سلو کالو نو نه اوښتی او دوجود

دضعف په سبب په لاره نشو تلای او کله چی بارك راغی او خپل پلار یی ولیده نو په غصه شو او ورته ویی ویل چی ته تر اوسه نه یی

مړشوی چی له تاڅخه خلاص شو او بی له دی چی ده ته یی کومه توجه کړی وی ورڅخه تیر شو تر هغه ور وسته الکوزاغی او هغه هم

له خپل پلار سره کوم عطو فت ونکړ او تیر شو او کله چی دده دریم زوی موسی راغی ورته یی وویل په آس سپور شه، زیرك ځواب

ورکړ زما په غږوکي په آس باندی سپریدو او کښینا ستو قوت نشته، نو هغه هم په قهر شواو ورته یی وویل ته همدلته پریوزه تر څو کوم وحشی ځناور راشی او تاوخوري هغه وخت به مونږ ستا له

غمه خلاص شو تر ټولو وروسته پوپل هغه ځای ته راغی ده په ډیر ادب او تعظیم سره خپل پلار په شاکړ اوله ځان سره یی منزل ته ورساوه او کله چی هلته ورسیدل زیرك خپل ټول زامن او

وروڼه را ټول کړل او دخپلو لوړیو دریو زامنو څخه یی ډیر خپګان ښکاره کړ او پوپل ته یی د مشري لونګی ور وتړله او په خپله یی

دعمر په یو سلو شل کلنی کی له نړی نه سترګی پټی کړی او پوپل دخپل پلار په شان دقبیلی مشرشو.پوپل هم له فانی جهانه سترګی پټی کړی ، خود ده دوصیت سره سم دده مشر زوی حبیب دقوم مشر شو، چی دهغه ورور ایوب هم ورسر ه ملګری و. دحبیب ترمړینی وروسته

دوه له څلورو زامنو څخه یا می چی په هغه وخت کی پنځلس کلن و دخپل پلار ځای ونیوه او باګو یا بادو چی دبامی تره واو بامی دده نه

لور ېسره واده کړی و او خسریی ودچارو په سرته رسولو کی له ده سره مرسته کوله .

بامی دری زامن لرل او ویل یی چی زما له زامنو څخه یویی هم دمشری وړنه دی ،مګر دکانی زوی چی زمالمسی دی هغه دی د قبیلی

مشر شي ، نعمدا؟ ونجي د پاسی ترمړينو وروسته دگانی مشر زوی پهـلو ل
د پاسی ځای ونیوه چی دوه زامن یی لرل معروف او علی خان، د پلار تـر
مړینی وروسته معروف دقبیلی مشر شو خو نوموړی ډیر تند مزاجـــه
انسان و، داه ترلس کاله مشـــری وروسته له نړی ستر گی پټی کړی
او د هغه ټوله شتمنی او جا یـدادده وروڼو او نورو ته پـــه لاس
ورغلل ، دمعروف تر مړینی وروسته دده یو ځوی دنیا ته راغی ،چـــی
موريى ور باندی عمر نوم کیښـود، مور او زوی د جایداد دلاسه ورکولو
په سبب ډیر غریب او بی وســـه وو، کله چی عمر خوار لس کلـــن
شو نو په ابتدا لیا نوکی دځمکو په ویش اختلافونه او شخړی منـــځ
ته راغلی ، چی په پای کی دوی عمرخپل مشر وټاکه او ده ټولـی قبیلی
ته خپلی برخی معلومـــی او ځمکی یی ور باندی وویشلی ، چـــی
تراوسه هم دقبیلی په زیاته برخه کی ددوی دشمار په اندازه ځمکـــه
ور کول کیږی .

دعمر دمشری په وخت کـــــی بارکزیو فساد رامنـــځ ته کړ. او
د هغه په مشری څخه یی انـــــر او دده څو تنه ملازمان یی و وژل
او پاتی کسان یی فراره اوله وطن څخه وشړل او ویی ویل چی مشری
زمونږ وه او پوپلزیو پـــه جبر راڅخه نیولی وه ، کله چی عمر دغه
خبر واوریده نو دبارکزیو د ټکو لو له پاره یی لښکری ولیږلی اوتـــر
یوی کوچنی جګړی وروسته پــــی بری تر لاسه کړ اودبارکزیو اونور
زی له قبیلو څخه یی یو شمیـــر کسان چی دوولړه سره یو ځای شوی
وویرغمل ونیول تر څو چی پـــــه راتلونکو وختونو کی یاغی نه شی.
عمر دوه زامن لرل چی مشر یـــی ملك صالح نومیده او په کشر باندی
یی دشیخ اکوزا مدد امراو دغوښتنی په اساس اسدالله نوم کیښـــودل
شو چی په هوامو کی دسدو پـــــه نوم مشهور شو .داسی روایـــــت
کیږی چی سدود (٦٦٥) هجری کا ل دذوالحجه په میاشت کی د ایـران
پاچا شاه طهماسب صفوی په زمـانه کی پیدا شوی و اوپه دغه وخـــت
کی په هند کی جلال الدین اکبـــر پاچاو ، لنډه داچی عمر تر (۹۸) کلو
پوری ژوندی واوکله چی نـــوی کلن شو او دده مشر زوی صا لــــح
شپیته کلن او کشر زوی پـــــی سدو پنځه ویشت کلن ؤ نو عمـــــر
خپله ټوله قبیله راټوله کړه اوسدو ته یی دمشری لنګی ور په سر

ګړه او دده دغه تصمیم ملك صالح او هم ټولی قبیلی ومانه همدا راز
صالح او عمر دواړو دده ملاو تړ له لکه څنګه چی تراوسه په درانیو
کی دغه دود شته کله چی پـــلار وغواړی خپل جانشین وټاکی پخپل
لاس هغه ته کمر بند او توره ورتړی وروسته تردی چی سدود خپل
پلار ځای ونیوه دده مشـــر ورورصالح چی ډیر دبنیه نیت خاوند وخپل
واړه و رور سدو ته یی وویل :
چی زما له پنځو زامنو سره چی درخان، ابراهیم خان ، بازید خان ،
ماما او الودی ئل په مهر با نـــی او شفقت چلند کوه او هغوی لـــه
هر راز کړاو ونو او ربړونو ساته ، سدوهم دغه خبره په ډیره خوښی
ومنله تر هغه وروسته صالـــح دخپل سید پیر په غوښتنه تـارك ـ
الدنیا شو ، سدود پلار تر مړ ینـی وروسته دابدالی قبیلی سردارشوه
دده په دوره کی بارکزیو بیـاپـه بغاوت لاس پوری کړ خود سدولـه
خوا وټکول شول ،سدو ډیر بـــاانصافه او زړور انسان و. دده په
وخت کی ابدالیانو ته د غلز یـــو او هزاره وپه سیمه کی هم یو لـړ
فتوحات ور په برخه شول او څنګه چی دنسب په شجره کی لیکل شـوی
سدو پنځه زامن لرل ،هغه وخـــت چی ددو ی ، عمرکم او واړه وو نـو
هغه خلك را ټول او هغوی ته یــی وویل چی زما ددوو زامنو خواجـه
خضر خان او مغدود نه یو تن یـی تاسی دمشری له پاره وټاکی خو
څنګه چی په دوو کی‌مشری یی مغدودخان ونو ځکه خلکو هغه په مشر ـ
توب وټاکه خودغه خبره دســدوخوښه نه شوه او هغه وویـل چی
خوا جه خضر دمشـــر ی ور دی دا ځکه چی دده له پیدا ینبت نه وړاندی
ماپه خوب کی یو سړی ولید چـــی سپینه ږیره یی‌لر له اوښته کا لی
یی اغو ستی وو او ډیر نورانی ښکاریده زما کور ته‌راغی او را تـــه
یی وویل مبارك دی شه ستا پــه کورکی به یو کوچنی دنیا ته واشی
په هغه باند ی دخوا جه خضـــر نوم کیږده هغه به زما هم نـومی
او ډیر نیکنام انسان به وی ، نـو په دغه سبب غواړم دغه منصب
خواجه خضر ته ورکړم ،خو خلـکو دده خبره ونه منله او مغدود یی
خپل سردار وټاکه او خواجه خضـر یی دهغه مرستیال مقرر کړ اوټول
واك هم دده په لاس کی و . کلـــه چی سدو مړ شونوټولی قبیلـــی
خواجه خضر دمشری ورو باله اوهغه یی مشر کړ ،په دغه وخت کی
مغدود ناامیده شو .

دخوا جه خضر خان تر مړینې وروسته دهغه مشر زوی خداداد سلطان دقبیلې مشر شو دده اصلي نوم خداداد او ښایي د سلطان لقب دډیلي پاچا اورنګ زیب عالمګیر ده ته ورکړی وی او افغانانو دی حدانی باله. ده دابدالي اوغلجي قبیلو پوله (سرحد) پل سنګی وټاکه.

چې په هغه وخت کې د غلجیا نو مشر ملخي تو خې او ددوی تر منځ شخړه په هغو ځمکو چې توخي او اومه کې تومیده پښنه شوی وه او دواړو خوا وددغې شخړی دحل له پاره یو شپون دمنصف په توګه وټاکه. هغه شپون داسې فکر وکړ څرنګه چې دسلطان حدانی له نوم سره کوهری او دملخي له نوم سره داو مه کې نوم ورته والی لری نوپه دې ډول یې دنوم مطابق دواړو خواو ته ځمکه ورکړه، شخړه یې فیصله او دواړو خواو دغه فیصله ومنله.

تردغې پیښې څه موده وروسته سلطان خداکی دخپلې قبیلې په مشرۍ دڅیوب په سیمه یرغل وکړاو ددغه ځای خلك یې لوټ او تباه کړل او کله چې بیرته راستون شو نو دهغوی حیمونه بړدی په یوه زوره نی چې دری لوچنی هلکان اویو سړی چې له ویرې پټ شوی وو. ونیول شول اوبې ګناه ووژل شول په هماغه شپه سلطان خدانی خوب و لیده چې هغه څلور وژل شوی کسان دده دوژلو له پاره را روان دي، دی ډیرو ویریده په دغه وخت کې یو بل سړی چې شنې جامې یې اغوستې غښتلی غړی یې لرل ده ته وویل چې تادیر تیری وکړ چې هغه بیګناه کسان دی ووژل اوکه اوس ته خپله سرداری پرېږدی او خپل ورور شیر خان ته یې وسپاری نو بچ به شې که نه نو دخپل عمل سزا به ووینې تر راویښیدو وروسته نو موړی خپل ورور شیر خان په خپل ځای مقرر کړ اودی دخپل ورور مرستیال شو، کله چې شیر خان ته دچارو واکی په لاس ورغلې نوله دې کبله چې څو تنو نویو مجرمانو ته یې پناه ورکړی وه دکندهار له حاکم سره یې چې دایران پاچا له خوا ټاکل شوی وپه جګړه لاس پورې کړ او ددوی ترمنځ لومړی جګړه شهرصفا ته نږدې پیښه شوه په دغه جنګ کې بری شیرخان ته ورپه برخه شو او دکندهار ښار شاوخواته یې ډک راتګ بند کړ په دغه وخت کې دایران پاچا دفرمان له مخې دکندهار دحاکم لخوادفساد ونو رامنځته کولو په خاطر دمغدود زوی شاه حسین ته چې دشیر خان تر بورو دمیرزا لقب ورکړل شو

او شیرخان ته یې هم دوهم شریک وټاکه. میرزا شاه حسین په ده شیخ کی او شیرخان په شهر صفا کی چې له کندهار څخه نه فرسنګه لري دی اوسیدل په دغه ډول دوی په دوو ګوند ونو وویشل شول شیرخان ویل چې دیران پاچا لـه مونږ سره هیڅ راز اړیکی نه لـري او میرزا شاه حسین د ایران پا چـا پلوی و.

په دغه وخت کی دعلی زیـودقبیلی یوه سړی چی خلیل نومیـده او دشاه حسین استازی و دکندهاردحاکم سره ژک راتک پیل کړ. په دغه ترتیب خو کلونه تیر شـول. ترڅو یو ځل د کندهار حاکم دخلیل په لاس شاه حسین ته دا پیغـام واستاوه چی دایران پاچا تاته دمیرزا لقب درکړی او دزوی په سترګـه در ته ګوری او دقو مخلو یښت زره تنه ستا تابع دی اوزما سره هـم دومره پوځ شته، پاچا امر کړی چی باید شیرخان ته سزا ورکړی، که نه اوس زیاته بی پروایی وکړی. بنایی دپاچاله خوا په مونږ ته زیـا ن راورسیږی. کله چی داخبر پـه ختیځ افغانستان کی خپور شونو د ډیلی پاچاته خبر ورکړی شـو او هغه شیرخان ته مرسته ضروری وګڼله اونومړی ته یی دشاهـزاده لقب ورکړ په دغه ترتیب دشاه حسین اختیارات کم شول. له دی امـلـه چی خلك دډیلی په پاچادیر خو ښـوو ځکه چی دایران پاچا شیعـه مذهبی و، په دغه وخت کی شاه حسین دسلااو مشوری له پاره کندهار تـه راغی او خلیل علیزی دده دداد و رملازم هم له ده سره ملګری و. کله چی په دربار کی دکند هار له حا کم سره خبری پیل شوی نودشاه حسین دتقریر په وخت کی خلیل دده په خبرو کی مداخله او چالاکـی او هوښیاری په یی کوله، شاه حسین ورته په قهرشو او ورته یی وویل ته زما غلام یی نوځنګه زما په خبروکی را لویږی ځنګه چی خلیل ښایسته اود ښی ځوانی خاو ندواو شاه حسین دده په خلاف یو بدرنګ سړی و نوله دی کبله خلیل ده ته سخت ځـوا ب ور کړ او ورته ویی ویـل چـی داصل او غلام توپیر او پیژندنـه دښی له مخی کیدای شي دغی خبر ی په شاه حسین باندی دحاکم پـه در بار کی ډیر تاثیر وکړ او بـده وربانـدی ولګیده او خپله چاره یی ر ا وایستله او خلیل یی داسـی سخت ټپی کړ چی سمدلاسه مړشو. د کند هار حاکم له هغه څه نه چی دده په دربارکی پیښی شول سخت ناراضه شواو شاه حسین یی ونیوه او ددغی پیښی په باب د منا سـب حکم دصادریدو له پاره یی ایران

ته څواب و لیږه او ددی له پاره شاه حسین خپل ملازم ته مناسبه سزا ورکړه نو له هغه ځایه دده دخوشی کیدو امر صادر شو. که څه هم شاه حسین خوشنی کړی شو خود هغه تړله ګوندی له منځه ولاړه . ترخوشی کیدو وروسته ده له شیر خان سره وکتل او بیا هندوستان ته ولاړچی دهغه دځلورم پښت څخه شهید نواب مظفر خان منځته راغلی وچی دملتا ن وا لـی او لوی نواب و او دده واکمنـی د رنجیت سنګ په ذریعه له منځـه ولاړه .

لنده داچی دشاه حسین تر تـګ وروسته دایران پاچا دیوه مصلحت له مخی شیر خان ته داړ ورکړ او همدارار دتولی ابدالی قبیلی اختیار هم ده ته ورکړل شو ،هغه وخـت چی شیرخان د(٦٥) کلو ویوه ورځ دښکار په وخت کی له آسه راولوید او ډیر ښه کور ته راوړل شو او کله چی په هوښ راغی نودصالح خان زوی بختیار یی راوغوښت او ورته ویی ویل چی اوس ماته دژوندامید نشته او دسر مست خان پالنه په لوی ، او دی دهماغه تپ څخه چی ورته پیښ شوی و مړ شو . نـو د هغه زوی سرمست خان تر پنځـو کلو نو پوری ژو نـــــدی و او کله چی هغــــه مـــړ شو نـــودهغــــه زوی دولت خا ن چـــی لاکوچنی و د خپل تره حیات سلطان په نیابت دقبیلی مشر شو ، دا سی روایت شته چی یوځل دکندهار حاکم تول امیران او دخپلو مشران خپل دربار ته راوغوښتل په دغه مجلس کی ددوو خوا امیران را ټول شوی وو یوه ډله یی ایرانی ســـرداران او دوهمه ډله یی ابدالی خانان وو په دغه میلمستیاکی شراب هم ورکو ل کیدل او څرنګه چی حیات سلطان او دده نور ملګری ملکان، صوفـی مشر به وو نوله دی کبله یـــی په نشه کی ډیر افراط کړی و، نـوددغه مستی په حالت کی هری یوی ډلی دخپلو ښځو دصورت او سیرت دښکلا په باب خبری کولی ،یعنـی ایرانیانو خپـلی ښځی ښایسته او ښی ګڼلی او افغانانو خپلی .په دغه محفل کی داسی پر یکړه وشوه چـی دواړه خوا وی دی اووه اووه پیغلی یو بل ته په نکاح سره ورکـړی اوکله چی سهار حیات سلطان بـــه هوښ راغی نودخپل دغه چلند نـه پښیمانه شو او ددغه ژمنی دماتولو له پاره یی پلمه غوښتله .له دوی سره یو ملك چی مبارك نومیده او ددوی په ډله کی شامل و . داســی مشوره ورکړه چی تاسی ایرانیانو

ته وواییي چي زمونږ دورد داسي د ي چي زوم له ځان سره بیا یو، ددغه خبري په اساس اوه کسه ایرانـي زمان دافغاني سردارانو سره شهر صفاته راغلل .دتولي قبیلي ابدالي سرداران د دغه ستو نزي دحلولو له پاره په خپلو منځوکي سره کښینـاستل ، ددغه جرګي په ځوښتنــه ایرانیانو ته وویل شول چي لومړی تاسي خپلي اووه نجوني مونږ تـه راولی ، وروسته په مونږ دغه کارو کړو ،ایرانیانو ځواب ورکړ چــي زمونږ ملك لري دي نو دا څنګــه کیدای شي چي لومړی مونږ تـاسي ته خپلي نجوني درکړو ، افغا نـا ن ددوی په چل او فریب و پوهیدل او حیات سلطان ته یي وویل چي اوس ته په دغه باب پوخه تدبیر ونیسه خوهغه هیڅ ونکړل اود جرګــي مجلس یي پریښود او کورته ولاړ، دولت خان دسرمست خان زوي داسي سلا ورکړه چي له دغه او وزومانو ته ځلورتنه اسپان باید د څهاریار کبارو د سر صدقه او حلال او دري کسه نور دي خوشي کړی شي، لکه چي همداسي هم وشول .کله چــي د کند هار حاکم دغه خوا شنو و نکي او زړه بوګنوونکي خبر واوریده نو د حیات سلطان له یي ددغي پیښـي په باب پوښتنې وکړی، هغه پــه ځواب کي ورته وليکل چي دغه کاردولت خان کـړی او دولت خان دهغه خوا کند هار ته وځو بنتل شو اوکله چي دولت خان دغه خبره رد کره نـو ایراني پوځ په دوی یرغل وکړ، پـه لومړي جګړه کي ابدالیانو په ایرا ــ نیانو باندي غلبه وکړه خو په دویمه جګړه کي يي دایرا نیانو دلاسه ماته وخوړه او حیات سلطان دهندو ستان خوا ته ولاړ اوپه ملتان کي میشتــه شو. تردغې پیښې وروسته دابدالیانو تر منځ نفاق زیات شو تردی چي دوو تنوملکانو چي عزت او اتل نومیدل په بغاوت لاس پوري کړاو دولت خان او دهغه زوی نظر خان یی ووژل. ددولت خان مشر زوی رستم خان ایرا ــ نیانو ته ورغی او کله چي بلوڅانو بغاوت وکـړ نو رستم خـان ددوی د تکولو له پاره وګمارل شو، خو دبلوڅانو دلاسه یي ماته وخوړه او بیرته راستون شو په دغه وخت کي غلجي میر ویس هوتکي او عزت، او اتـل ابدا لیانو په رستم خان داسي تـورولګاوه چي قصداء يي په دغه جګړه کي ماته خوړلی ده نوځکه دي ونیول شو اوځو ورځي وروسته داتل لـه لاسه ووژل شو.

کله چي غلجي میر ویس هوتك دایران او عربستان (حج) دسفر نـه راستون شو. کندهار ته راغي اوجلته يي بغاوت وکړ اود کند هار حاکـم

شاهنواز خان گرگین یی وواژه. ددغه بغاوت په وخت کی میر ویس ابدالی قبیله په دی شرط له ځان سره ملګری کړه چی دلوټ څخه چی کومه شتمنی تر لاسه شي نو په هغې کي دي ابدالیانو ته هم برخه ورکړ شي، خو تر بریا لیتوب وروسته دغه ژمنه ترسره نه شوه او له نیول شوو ځمکو څخه ابدالیانو ته هیڅ برخه ورنکړی شوه له دی کبله ابدالی قبیله دغلجی له قبیلی سره دجګړی له پاره راتول شول او دبوری په دښته کی ددوی تر منځ سخته نښته پیل شوه چی په دغه جګړه کی غلجیو ته زیات بریالیتو بوئه ور په برخه شول. ابدالیانو ماته وخوړه او دهرات غر نیـو سیمو ته په شا شول پـــه (۱۰۲۹) هجری کال عبدالله خان د حیات سلطان زوی له ملتان نه بیرته راغی او ددغه قبیلی مشری یی په غاړه واخسته اونیت یی وکړ چی هرات ښی په هغه وخت کی دایران تروا کمنی لاندی وونیسی، ددوی له دغه نیت څخه عباس قلی خان شاملو چی دایران پاچا شاه حسین صفوی له خوا دهرات حاکم و خبر شو عبدالله خان او دهغه زوی یی ونیول، کله چی د هـــرات قزلباشانو بغاوت وکړ اودعباس قلی خان لاس یی له کار څخه لنډ کړ، نو په دغه وخت کی عبدالله خان دوخت نه په کتنی اخیستو سره له محبس نه وتښتیده او ځان یی ددوشاخ غره ته ورساوه، هلته یی خپله قبیلـه په ځان راټوله او په هرات یی یرغل وکړ او ددوی تر منځ جګړه پیښه شوه چی په دغه جګړه کی دهرات نوی حاکم جعفر خان ونیول شو او عبدالله خان د هغه برج له لاری چی فیل خانه نومیده دهرات ښار ته ورننوت ، دښار په منځ کی هم سخته جګړه وشوه او له دواړو خواو څخه ډیر کسان ووژل شول اودهرات ښار لوټ کړای شو، دهرات تر نیولو وروسته دفراه کلا چی دمیرویس دزوی محمود په لاس کی وه ابدالیانو ته په لاس ورغله . لږه موده وروسته غلجی محمود شاه په اصفهان سلطه ټینګه کړه اوپر ابدالیانــو باندی یی هم غلبه وکړه، مګر له دی کبله چی دی دنیول شوو سیمو دچارو به تنظیمو لو بوخت ونو ځکه پــه ابدالیانو باندی یی زیات تعرض ونه کړ، څه موده وروسته عبدالله خان سدوزی مړ شواو داسی فکر کیـږی چی ده ته به د دولت خان زوی محمد زمانخان چی دابدالی احمد شاه پلاروزهر ورکړی وی. کله چی عبداللـه خان له منځه ولاړ په خپله زمانخان دابدالی کورنی مشر شواو دایرانیو پوځ نه یی چی ددوی دپوځ په نسبت :وه ځله زیات وماته ورکړه اوخومره یرغلو نه چی ایرانی پوځ په هرات وکړل هغه ټول یی په شا وتمبول او

بریا لیثوب دده په برخه واو قوت یې ورځ په ورځ زیاتیده، تر دې چې په (۱۷۲۲) عیسوي کال یې د مشهد دنیولو نیت وکړ، خوله بده مرغه په دغه وخت کې ددوی تر منځ بې اتفاقي رامنځته شوه . دعبدالله خان زامنو الهیاراو سعدالله خان محمد زمان خان وواژه او په خپله یې دقبیلې مشري په غاړه واخسته په دغه وخت کې دزما ن خان زوی کوچنی و ، دی چې احمد خان نومیده وروسته په احمدشاه ابدالي باندې مشهور شو. دې د خپلو دښمنا نو نه بچ اود خپلې مور په ذریعه چې اصلاً الکوزی وه دهرات حاکم حاجي اسمعیل خان علیزي ته ورو لیږل شو داحمد خان موراسماعیل خان ته خپله لور ورکړه لــــه دې کبله وو چې حاجي اسمعیل خان دده ته پناه ورکړه اود الهیار خان دویرې له کبله یې احمد خان سبزوار (شینډنډ) او فراه ته ولیږه او له دغې نیتــې نه نوموړی په پټ ډول ژوند کاوه، ترڅو په (۱۷۲۸) عیسوي کال یې چې ایراني نادر شاه په ابدا لیانو باندې یرغل وکړ او ورو سته ترڅو جګړویی دوی تابع کړل مګر تر لږې مودې ورو سته داحمد خان دمشـــر وروردذوا لفقار خان تر قیادت لاندې ابدالیانو په بغاوت لاس پورې کړاو په مشهـــد یې چې دایران دواګمنی یوه برخه وه یرغل وکړ اود نادر شاه دوروراېراهیم لښکرې یې ماتې کړې اود مشهد ښار یې محاصره کړ، خو په خپله نادر شاه پر دوی باندې یرغل وکړاو دخپل هیواد په لور یې په شا و تمبول ، ددو ی ستړ یا لانه وه لرې شو ی چــــې نادر شاه دهرات په لور خپلې لښکرې راو خوځولې اوتر یوې سختې جګړې نه وروسته یې د لسو میاشتو پـــه موده کې هرا ت ونیوه او امر یـــې وکړ چې دابدا لیانو شپږ زره کورنۍ دې دغني خان الکوزي او نورمحمدخان علیزي سره ایران ته فرارشي اوله خپل ملك نه یې دوی وشړل اوځلته میشته شول اوځینې یې دملتان خواته ولیږ دیدل اوله دغه قوم سره یـــې ځینې خلك په زور په خپل پوځ کې وګمارل. تر هغه وروسته دهرات ښار هیڅ وخت بغاوت ونکړ، مګر ابدالیانو،غلجیو او ایماقو به پاڅونو نه کول.

کله چې دداغستان ښار یوو لس میاشتې دنادردقوا و له خوا محاصره شوی ویوه ورځ دتوپ یوه ګولې دنادر دخاصې خیمې په منځ ولګیـده چې په دغه وخت کې نادر ددوډۍ په خوړلو بوخت و ډیرې خاور ی باد اود ډوډۍ سره ګډې شوې او خنګه چــې نادر شاه ډیر تند مزاجه سړی و ان تر دې چې اوس هم نادري مزاج په خلکو کې دمتل په ډول استعمالیږی نــو ډیر په غصه شو اود ابدالي قبیلې مشران یې راو غوښتل او امر یې ورته،

وګړي چي که څېرې دغه ښار ترڅلرويشتو ساعتو ئو پورې فتح نه شي نو تاسي ټول به ووژنم ګله چي‌دوی‌دغه حکم واوريده نو غني خان‌الکوزي، نور محمد خان عليزی ، حاجي جمال‌خان محمد زي، خان محمد بارکزی‌خانو او مانو خان نورزی دځو تنو نـوروسردا رانو سره دخپلي قبيلي پـــه مشری په هغه ښار باندی په ډيره‌زړور تيا يرغل وکړ، تر يوی سختي جګړې وروسته ابدا ليان بريالی او په ټاکل شوی وخت يې ښار ونيسوه او دپاچاحضور ته راغلل. نادر شاه‌دوی دزړه ورتوپ او خدمت له کبله دير خوښ شواو هغوی ته يې‌وويل‌هر څه چي کوي وبه منل شي‌الهيار خان سدوزی او نورو ابدالي سردارانوورته عرض وکړ چي موږ غواړو خپلو پخوانيو ځمکو ته ستانه شو اوهغه افغانان چي ايران ته‌جلا وطـن شوي دي هغوی‌بير ته ستانه اودخپلي‌قبيلي سره يو ځای شي اود غلجيو قبيلي ته دي‌هم ملك ورکړی ش

پاچا ددوی دغه غوښتني ومنلي‌اوامر يې وکړچي ټول افغا نان نردي او کم ښځي بير ته دی خپل هيواد تـه ستانه شي، لکه چي ټول بيرته راغلل اوپوازی يوه ښځه چي دعليز يو له قبيلي څخه چي دنادرشاه له زوی‌سره وه راننغله ، کله چي پاچا ته ابدالي‌ملکانو په دغه باب خبر ورکړ نوامر يې وکړ که‌څېرې هغه ښځه وغوا ړی‌دخپل ميړه سره تللو ته راضـي وی نو والك يې خپل دی او کولای شي چي‌دشهزاده له کور نه ولاړه شي،همدا وچي هغي وفاداری ښځي‌ټول‌عظمت‌اوجلال پريښود اودخپل غريب ميړه‌سره بيرته خپل هيواد ته راستنه‌شوه .

تر هغه ودو سته الهيار خان پـه سبزوار (شين ډند) کي ووژل شو او کله چي نادر شاه وکړای شول چي‌په شپږو کالو کي کند هار ونيسي پـه دغه وخت کي ذوالفقار خان او احمـد خان دواړه د غلجي شاه حسين لـــه قيد څخه خلاص او دحاجي اسمعيل‌خان‌په معرفت يې احمد خان اود هغه مشر ورور ذوالفقار خان راوغو ښتل اوپه هغوی باندی يې ډيره مهرباني وکړه. اود هغه پرنځ افسران يې وټاکل‌کوم‌چي مازندران ته روان ؤ، او ددغـي قبيلي دښو خدمتونو په بدل کي‌دوی‌دهرات دلويديځ نه هغه ځای تـه ولېږدول چي نن په کي ميشته دي‌او غلجيو دقبيلي ځمکي‌يې په ابداليانو باندی وويشلي،دارغنداب سيمه يې‌دغني خان الکوزی قبيلي ته اوزميندارو يې نور محمد عليزی ته ورو باخښـه چي بارکزيو ته خرابه ځمکه ور پـه،

برخه شوه، نادر شاه دکند هارشاوخوا ځمکی په دریو سووقلبو وویشلی یوه قلبه ځمکه دسلطنا به ځمکی سره مساوی اویو طناب دشپیتو ربع گزو سره برابر دی. په هره قلبه ځمکه کی څلور خرواره یا څلویښت منه تخم شیندل کیږی ،اوپه هر قلبه ځمکه کی دوه سپاره دپاچا دنوکری له پاره وتاکل شول، او هغه ځمکی چی ښار ته نږدی وی د هغو لسمه برخه پیداوار دمالیی په دول سرکار تــه ورکول کیدل او ذلومړی کال دپیداوار دسنجش له مخی به د تل لپاره مالیه را ټولیدله .

کله چی نادر شاه دډیلی په لــورروان شو فدا محمد خان دده په پوځ کی دلښکر افسر واو کله چیدهندوستان نه بیرته راستون شو نونادر پښتنو ته دومره قدر او عزت ورکړچی دپاړ سیوانانورخه وربا ندیوشوه سره له دی چی دوی دځینو نــوروچارو له امله هم له دهغه ناراضه وو.

نادر شاه د(۱۷٤۷) عیسوی کال دجون په میاشت کی ووژل شو او د هغه دمړینیپه دویمه ورځ په داسیحال کی چی پښتنا نه او اوزبك یوی خواته او قزلباش اونور ایرا نیان بلطرف ته وو سخته جگړه پیښه شوه، خو له دیجگړی نه گومه کته ترلاسه نه شوه او احمد خان ددری زره سپرو سره کند هار ته راغی. دلته ده ته خبر ورکړل شو چی دکابل او پیښور حاکم ناصر خان او تقی خان اختــه بیگی چی دنادر سردا رانو څخه دی غواړی خزانه دنادر دربارته ورورړی. هغه خزانه احمد خان ته پــه لاس ورغله ، نوموړی څوتنه ابدالی ملکان ووژل تر هغه وروسته په قبیله کی چادده سره مخالفت نه لاره. لنډه داچی د(۱۷٤۷) عیسوی کال داکتو بر په میاشت احمدخا ن د زمانخان زوی په کند هار کی پاچا شو* او ځان ته یی ددر دورا ن لقب غوره کړ .

داسی ویل کیږی چی داحمد شــاه په تخت باندی دکښینا ستلو په وخت کی ابــدا لیان، قزلباش، هزاره،٠او بلوڅ هم حاضر وو .کله چی احمد خان په تخت کښینا ست نو درویشت کاله عمریی لاره . ده دځپلی قبیلی نوم له ابدالی نه په درانی واړا وه او تر اوسه هم په دغه نامه یادیږی.

---

*د لوی احمد شــاه بابا دتخــت نشینی دغه نیتــــه غـا لبـآ د (چارلس نش ) دکتاب(په افغانستان کی د جنـــــگ تاریــــــخ ) (۱۸٤۳ع لندن چاپ) له پنځه ویشتم مخه څخه رانقل شویده خو دا صحی نیټه نه ده دلوی احمد شاه بابا په یولیك کیچی د ۱۱٦٠ هـ ق کالدرجب دمیاشتی په اتلسمه (=۵) جولا ی۱۷٤۷ع) یی محمد حسن خان اپریدی ته لیکلی دی ،دځپلی تخت نشینــي خبریي نو موړي محمد حسن خان تــه ورکړی دی، له دی مکتوبه څخه چی په تذکرهٔ اندرام کیثبتدی داثابتیږی چی دلوی احمدشاه بابا تخت نشینیٔ جولای تر پنځلسمی دمخه پیښه ده. (رشاد)

# ددراني د تسمیې وجه

کله چې ابدالي احمدشاه دافغانستان په تخت کښېناست په دغه وخت کې
صابر شاه مجذوب چې یو فقیرو او احمدشاه ورته ډېر اخلاص لاره ده ته
وویل چې ځانته ددرد وران لقب غوره کړه چې دزماني دمرغلري معنی لري
خو ده په قبیلوي لحاظ د دران لقب غوره کړ چې دمرغلرو دمرغلرۍ
معنی ورکوي چې دملغری په معنی او دران د هغه جمع دی او داحمد شاه
مقصد داو چې ټوله ابدالي قبیله دران دي، داحمد شاه له وخت نه دده
دلسمي شاه شجاع الملك تر وخته پورې دسدوزي کورني حالات ددغه
کتاب په لومړي برخه کې راغلي دي. او څرنګه چې سلطنت دسدو زیو
له کور نې نه انتقال او بار کز یو ته په لاس ورغی د امیر
دوست محمد خان دپلار دپاینده خان له وخته دامیر شیر علی خان تر دوري
چې دکابل اوسني امیر دی ذکر هم په لومړي برخه کې لیکل شوی دی چې
دلته یې بیا تکرار ته چندان ضرورت نه لیدل کیږي.

# د درانی د قبیلی ویش او شمیر

څرنگه چی ښکاره ده دغه قبیله په پیل کی په دوو لویو برخو ویشل کیږی لو مړی زیرك دویم پنجپا خواوس دغه ویش کټور نه بریښی. پر ته له دی چی له هغه څخه دامعلومیږی چی واړه خیلو نه ددغه لوی ویش په کوم ښاخ پوری اړه لری . په دغو دوو برخو کی دزیرك کورنی ته داحترام او قدر په سترگه کتل کیږی دغه دواړه ښاخونه په نهو کوچنیو څانگو ویشل کیږی، چی زیرك په څلوروڅانگو او پنجپا په پنځو څانگو سره ویشل شوی دی.

## دزیرك څانگی :

دزیرك څانگی، له پوپلزی، الکوزی، بارکزی اوموسی‌زی څخه عبارت دی.

## دپنجپای څانگی:

دپنجپای څانگی په دی ډول دی: نورزی ، علی زی ،ادوزی، ساکزی، خگوانی، ماکو ،او کله کله حلت ادوزی په علیز یو ورگډوی اودواړه یو ښاخ بولی.

## پوپلزی:

دغه څانگه ډیره مشهوره ده اوافغانانو (پښتنو) پاچا احمد شاه ابدالی او دده اولاده له دغی څانگی څخه د سدوزی کورنی څخه منځ ته راغلی دی.

## سدوزی:

سدوزی دپو پلزیو دښاخ یوه څانګه بلل کیږی، سدو زیان تر ډیره وخته نه یوازی دپو پلزیو بلکی ددرا نــی دټولی قبیلی خا نان شمیرل کیدل او دا یوه یقینی خبره ده چی سدوز یان د درانی قبیلی له ټولو څانګو څخه ډیر د احترام او عزت وړ څانګه ده، اوددغه خبری یو ثبوت دا دی چی ددوی سره دصفوی کورنی دلومړی پاچا یو سندیا فرمان شته چی ددغه فرمان پــه اساس دټول ابدا لی یا درانی قبیلی مشری دوی ته ورکړل شوی وه. دخپلی قبیلی څخه پرته بل چا دوی ته سزانه شوه ورکو لای څرنګه چی پاچا له دغی کورنی څخه ولو ځکه سدوز یان یوه بیله قبیله بلل ګید له، مګر په اصل کی دپو پلزیو دښاخ یوه څانګه بلل کیږی.

کله چی دسدوزی پاچا یانو کورنی تباه او په لو یدیځ افغانستان کی دامیر دوست محمد خان بار کزی سلطـــه ټینګه شوه نو ددغی معززی کور نی قدرهم لږ شوی دی. ددغو خلکو اکثره ابادی دشهر صفاء تر څنګ دتر نــک وادی په منځ کی موقعیت لری ځینی یی هم په کند هار کی او سیږی اود شاهی کورنی څخه دشاه شجاع اولاده په لودهیانه کی دستلج سند پســه ختیځه غاړه کی او سیږی او داحمدشاه کورنی ته پاچا خیل هم وایی او څو کورنی سدوز یان په پیښــور او لاهور کی هم میشته دی. دسدوز یو او دابدا لی قبیلی دنورو څانګو نسه چی ځینی خلک ملتان ته راغلــی او هلته میشته شوی او بیا له دغه ځایه دیره جات اونورو ځایونو ته تللی ا و هلته استو ګنه لری دهغوی په باب به دکتاب په پای کی په لنډ ډول ذکر وشی پاتی پو پلزی اکثراً دکند هار شمال خواته څه دخاکر یز په سیمه کی او اکثرا په غر نیو سیمو کـــی او سیږی ځینی یی هم د ختیځ خواته په څو علاقو کی اویو شمیر یی سهیل خواته په ذاکر، بالاکرز، شور اندام او څو نورو ځایونو کی اوهم دګرشک له مربو طاتو څخه دزارس په علاقه کی دهلمندسیندپه لویدیځه برخه کی او دګر مسیر په دوو سیمو کــی او لویدیځ خوا ته دارغنداب، په ښکتنی برخه کی اوسیږی. ددغه قبیلی خلک ډیر قره ور دی، اوددوی په باب داسی ویل کیږی چی ددوی شمیر تقریباً دیار لس زره کوره دی. ددوی څخه ځینی په مالداری اواکثراء یی دکرنی په چارو بوخت دی. پو پلزی دنوروپښتنوپه نسبت ډیر بااده به، نجیب او

دعزت خاوندان دي، له دوی څخه ډیرزیات یې داحمد شاه او تیمور شاه په وخت کې دلویو دولتي منصبو نو خاوندان وو. دبامي زی له څانګې څخه داحمد شاه وزیر شاه ولیخان او دده کورني مشهوره ده او دایوب زی څانګې څخه مشهور سړی داحمد شاه سپه سالارسردار جهان خان و.

## بارکزی :

بارکزي په شیمر کې دپو پلنزیو څخه ډیر زیات دي دالویه قبیلــه دکند هار جنوب تــه دارغستان اودهلمند دسیندپر غاړو په وچ میدان کې میشته دي دبارکزیو هغه برخه چې کند هار ته نږدې دارغستان او هلمند د سیندونو په غاړ و میشته دي دغبو ځمکودلرلو په وجه تول په کرنه بوخت دي، خو ځینی یې دوچ بیا بان په منځ کې په ډیره سختی سره پــه زراعتي چارولګیا دي، خو ددغه څانګې اکثره خلك په مالداری بوخت دي، دغه خلك ډیر زړه ور او جنګیالی دي، دوزیر فتح خان بارکزی له وخته دغه خلك ډیر مشهور شول. او ورو سته کله چې له دغه څانګې څخه امیردوست محمد خان دکابل په تخت کښیناست نو دهغه په سبب ددوی په شهرت کې زیا توالی راغی او بارکزیان ترلیری لیری ملکو لو پوری خلکو وپیژندل، په اوس وخت کې دبارکزیو اعتبار ددغه ښاغلی دامیرا نو په سبب ترنورو ښاخونو څخه زیات دی، او ددغه وړاندی توب اورسوخ علت باید ددوی پــه زړورتیا او دمرحوم امیردوست محمدخان په هو ښیاری او چالاکی کې ولټول شی داځکه چې ددغه پاچا پوهــه اوهو ښیاری دبار کزیو تر زړور تیا کمه نه وه. دبار کزیو شمیر تقریبــاً (۳۵۰۰۰) کوره دی.

## اڅکزی :

اڅکزی د بارکزیو یوه څانګه ده خو احمد شاه ددوی بیل کړل له دی کبله که چیری بارکزی او اڅکزی سره یواو ګډ وی نو ددوی په قوت او زورکی به زیا توالی راشی، او اوس دیــوه بیل خان ترلاس لاندی دی، اڅکزی تول دیوه پلار اولاده ګڼــل کیږی اواوس له بارکز یو څخه بالکل بیل دی، په توله درانی قبیله کی اڅکزی ډیر سرکښ اود ازادی طبع خاوندان دی، دوی په مالداری او لوټ باندی ژوند کوی.

## علیکوزی (الکوزی) :

دوی تول تقریباً پنځلس زره کوره دی، دعلیکو زیو (الکوزیو) ملك له تولی درانی قبیلی څخه ډیر سرسبزاو خا صلناك دی، دوی دکند هارختیځ ته دجلدك په سیمه کی او شمــال لویدیځ او لوید یځ ته د ار غندا ب

او پنجوا یی په علاقه یعنی په هغه سیمه کی چی اناربی مشهور اوخوندــ ور دی همدا راز په نورو لوید یځو سیمو او دخاکریز علاقی په شمال او نورو غرنیو شمالی سیمو کی اوهم په شمال لویدیځ برخو کی دمیوندیا میمند په علاقه کی چی دلته دسلطان محمودغزنوی وزیر خواجه (احمدبن) حسن میمندی استو گنځی و اودچکه اوساروان په سیمو کی دهلمند سیندپه ختیځه برخه او دکند هار جنوب ته په شو نورو سیمو کی اوهم دبغنــی باغران په غربی ملك کی دزمین داور شمال لوید یځ ته دنوزاد او کبخاك په علاقه دزمین داور لوید یځ ته اوهم په هرات ،غزنی او کابل کی په خواره واره دول ژوند کوی. ددغه ښاخ اکثره خلك دکرنی په چارو او لږ یی پــه مالداری دولتی چارو او تجارت بوخت دی .

دنوموړی ښاخ دنسوزی او سرکانی څانگی دراولپنډی ضلعی دچهچه په نوم علاقی کی اوسیږی لکه چی پــه دغه ځای کی یوه سیمه دسر کا نــی په نوم شته ده چی په هغی کی اتلمن کلی موجود دی .

اودسر کانړو یوه لو یه سیمه په همدغه نوم دکنړ په دره کی پرته ده دعلیکو زیو (الکوزیو) ښاخ شو کورنی په دوا به اود پیښور دضلعی په نورو سیمو نی او شو کورنی یی په پلو چستا ن اوددکن په ملك کی میشته د ی .

ددغه ښاخ دیر مشهوراو با تدبیره سړی عبدا لغنی خان نومیږی چــی دزیرازی له څانگی شخه دی ، دی دمیر افغان په نوم هم بولی، دهـرات و لــی وزیر یار محمد خان زین الدوله چی په نسوزی څانگی پوری تړلی او دلوړ همت خاوند او ځوانمردسړی او هغه له د غــــه ښــــــــاخ شخه سر ا و چـــــت کــــر ی د ی او همدا راز داحمد شاه بابا ابدالــی مور زرغونه هم له دغه ښاخ شخه وه.

**موسی زی :**

---

دغه څانگه یوازی شو کوره ده اودبارکز یوقبیلی دنصرت دښاخ سره یگه یږی .

# دپنځو پای قبیلی ښاخونه

## دنورزیو ښاخ :

دغه ښاخ په شمیر کی دبارکزیو سره برابر دی دوی په گرمسیر او دکندهار دده راوت له علاقی څخه ترشمالی غرنیو سیموپوری چی دهزاره جات سره پولی لری او سیږی .

دغه سیمه ډیره حاصل خیزه اوپریمانه اوبه لری، ددغو خلکو ډیره سیمه په فراه اوسبز وار (شینډنډ) کی تر هراته پوری او پاتی یی د کندهار جنوب ته پرته ده، یوستر کلی یی سپیروان تو میږی چی د کندهار لوید یځ ته دارغنداب سین په ختیځه غاړه موقعیت لری . که څه هم ددغو خلکو اصلی کسب کرونده گری ده خو اکثره خلك یی په مالداری بوخت دی، دژمی په موسم کی په خپل ملك یا په هغو ځایونو کی چی ښه ګرم ځایونه او ډیر وابنه لری اوسیږی، دپسرلی په موسم کی ددوی کورنی په دوو برخو ویشل کیږی، یوه برخه یی د خپلو رمو گلواو کورو نو سره دسیا بند غرونو ته ځی او بله برخه یی پخپلو سیمو کی د کرنی په چارو لگیاوی . دغه ښاخ میلمه پال ، مغرور او متعصب دی، دوی له خود نمایی او خود ارائی سره ډیره مینه لری .

## دعليزي (اليزي) ښاخ

دغه ښاخ دکندهار صو بې په زمين داور کې او سيږي ددو ی دود اودستوردعليکوزيو ( الکو زيو )په شان دی .

دعليزيواوعليکوزيو (الکوزيو) ترمنځ پوله يوازي دهلمند سيند دی. ددوی ملك‌هم دالکوزيو ملك ته ورته والی لري،مګر دالکوزيو ملك اکثراً درود ونوداوبوپه ذريعه او دعليزيوملك دکاريزنو په ذريعه خړوبيږي . ددغه ښاخ شمير شپاړ سو زرو کورنيو ته‌رسيږي .ددغه ښاخ څوڅا نګی په پنجاب کی هم، ميشته دی، چی‌ددوی څخه په دهغی برخی ذکر چی‌په ملتان کی اوسيږی دکتاب په پای کی‌راشي. ددغه ښاخ‌يو کورنی دراولپنډی ضلعی په اسلام ګړکی دحسن ابدال‌څخه در ی‌ميله ليری لو يد يځ‌خوا ته اوسيږی دغه کورنی محمد شريف‌خان‌پوری مربوطه ده‌چي کی‌درئيس برهان په نامه هم بلل‌کيږی . نوموړی‌په دغه سيمه کی دڅو کليو خاوند اوهم لـه سرکار څخه يوه اندازه تنخواه‌هم ور کول‌کيږی.دده‌په زامنو کی‌شيردل‌خان او پردل خان ډير ښه اولايق انسانان‌دی. دهغو دريم ورور سرور خان او له ټولو څخه کشريی حسين خان دی‌چی دانګر يزی سر کار له خوا دوی‌ته په درنه سترګه کتـل کيـږی، دوی‌دهغه محمد شريف خان او لاده‌ده چی دسکانو په پاچا هی کی‌په نجابت اوزړه ورتوب کی ډير مشهورؤ له ده څخه پرته دعلی زيو ښاخ ټولس‌ځايونه دراولپنډی ، ضلعی په چهچه کی هم پراته دی‌او دچهچه دسيمی دڅلوروتپو څخه په يوه تپه کی يی عليزی‌دی.

### داه وزی ښاخ :

دا څرګنده خبره ده‌چی ادو او علی سره ورونه وو . دغه ښاخ تقريباً پنځه زره کورنی دی دمعروف په علاقه کی څو سيمی په دهراووت نی دوی سهمی اوپه کی مسير کی در ی‌سيمی‌دوی استو ګنځی‌دی. ددو ی دوداو دستور او کار و کسـب ددو ی دکاو نديو قو مو نو په شان دی .

### دسا کزی ښاخ :

دوی دکند هار لويد يځ خواته په ښکلنه سيمه کی دارغندا ب دسين په غاړه دبست تر کلا پوری اوهمدا راز څو سيمی‌يی دچکه علاقی په ښکتنی برخه کی، دهلمند سين په ختيځه غاړه کی پرتی‌دی، ځينی زميندارخلك يی پـه ګرم‌سير، فـراه، سبـزوار(شين ډنډ) ،لاش‌جوين، دهرات‌جنوب لويديځ ته او دسيستان شمال اوهم‌ځينی يی په هرات کی ميشته دی . پـه دغه ښاخ پوری مربوطـی دوی‌معتبری‌کورنی ديادو لو وړدی، يوه

یې د سردار ماملوخان کورنۍ چې دلاش وجوین په سیمه کې د عزت او اقتدار
خاوندره ده او د ایران سلطنت تابعیت یې قبول کړی خو کوم مال یا مالیه هغوی
ته نه ورکوي، دوهمه کورنۍ یې د ګرمسیر د علاقې د قلعه خانشین په سیمه
کې د رئیس سردار مدو خان کورنۍ ده، په دغه کورنۍ کې مشهور سړی موسی
دورنګی تیر شوی او اوس دغه کورنۍ د بارکزیو د ریاست د صدمې په سبب
د ضعف او انحطاط په حال کې ده، اسحاق زی اکثراً په مالدارۍ او لږ
شمیر یې د کرنې په چارو لګیا دي. د دوی شمیر تقریباً لس یا یوولس
زرو کورنیو ته رسیږي او هم ویل کیږي چې په بلخ کې هم د دوی تر زرو
کورنیو زیات میشته دي.

## د ماکو او خاوګانی یا خاګوانی ښاخ:

د دغو ښاخو نو دوګړو شمیر ډیر لږ دی، دوی په علیحده او بیله توګه
محکمې نه لري، د دوی عمده ځینې په کندهار او ځینې یې د نوززیو د ښاخ
سره یو ځای پراته دي، د دغه ښاخ د منځه تلو په حال کې دي، د دوی
له جملې کوم خود مختار خان یا رئیس نه لري، خاوګانی په دوو برخو ویشل
کیږي یو مشر خاګوانی او بل کوچنی خاګوانی.
دوی د کندهار په شاو خوا کې په خواره واره دول اوسي. په غزني کې
د خاګوانیو څو کلي د ماکو د کلیو ترڅنګ پراته دي، محلي خلک دوی
د خاکوانی ماکوانو په نامه یادوي، ځینې درانیان د ماکو نسل، له خپل
ځان سره برابر نه ګڼي دوی وایي چې ماکو اصلي زوی نه بلکې په سره
فرزنده نیول شوی (وصلي) دی.

## په اجمالي دول د ابدالي قبیلې حالات:

دغه بیان چې تر ټولو زیات د اعتبار وړ دی له دغه څخه داسې ښکاري چې
دایره مستقله او ازاده قبیله ده. تر (۱۶۰۰) عیسوي کال پورې دوی د ازبکانو
تر فشار او تهدید لاندې وو نو د ایران پاچا خراج یې په دغه شرط
ومانه چې د ازبکانو د تیرې په مقابل کې له دوی سره مرسته وکړي او دغه
باج یې تر (۱۷۰۸) عیسوي کال پورې منلی و.
په دغه وخت کې غلجیو په بغاوت لاس پورې کړ او د کندهار د حاکم په
مقابل کې ورپسې او هم یې له ابدالیانو سره په جګړه لاس پورې کړ. او

خنگه چې وړاندې وویل شول دغــه قبیله دهرات دشاو خواپه غرنیـو سیمو کې میشته وو اود ابدا لیانـو په نوم بلل کېدل، په دغه رسـ او هم له دغـه وخـت نه وړاندې دوی دغلجیانو سره مخالفت درلود بو کله چې نادر شاه افشار بیادغه قبیلې ته دکندهـــا ر په شاو خوا کـې د میشتـــه کېدو اجـــازه ورکړه که څه هم په دغه وخت کـې ددرانیو دقبیلې دهر ښاخ ځمکه بیله وه څنگه چې وړاندې ولیکل شول په حقیقت کې ټوله قبیله سره پیوست او یوځای شوه او دیوه ښاخ یو سرې کولای شول دبل ښاخ څخه ځمکه واخلي یا یې ورو بخښي اوهم په ځینوسیمو کې لکه گرمسیر اود کندهار شاوخواکلي ددرانیو ټولو ښاخونو ته دځمکو مساوي برخې ورکړل شوي دي.

## دوگړو شمیر :

وویل کیږي دهغو ټولو کسانو شمیرچې ددرانیو په سیموکې اوسیږي اټه لکه نه دي چو ښایي دغه شمیردلسو لکوتنو په شاوخواکې وي چې ددوی له جملې څخه دخاصو درانیو شمیرتر څلورولکو نه زیات دي،او داسې روایت موجود دی چې ایراني نادرشاه ددوی سر شمیرنه هغه وخت وکړه چې په دوی باندې یې ځمکــه ویشله او هغه وخت دوی شپیتــه زره کورني حساب شوي وو، که څیری دغه شمیر واقعي وي نو ډیرلږ معلوم میږي اوښایي ډیر خلك څصو صاعشپانه او درمو ځنیتنان په دغــه سر شمیرنه کې نه وي راغلي،داځکه چې دغه سر شمیرنه دځمکو دویش له پاره تر سره شوې وه اومقصد یې داو چې دزمینداراتو شمیر معلوم او بیا ځمکه ور باندې وو یشـــي.

## دود او دستور :

ددرا نیو قبیلې دهر یوه ښاخ په سر کې یو سردار ټاکل شوی دغـه سرادر دښاخ له یوې محترمې کورنۍ څخه انتخاب اودکابل پاچا په منظورۍ مقرر شوی دی، ددغه سردار په خوښه اود خلکو په انتخاب سره دښاخ دهرې یوې څانگې په سر کې یو مشر یاخان مقرر دی او عموماً په دغه ډول دخانۍ یا مشرۍ موقف په یوه کورنۍ کې موروثي کیږي خو کله کله پــه دغه برخه کې تغییر هم راتللی شي.

## قضا او قضاوت :

دکلي مشران او معتبران یادداړوخواوو دوستان دقاضي په معرفت

او دشرعي احکامو سره سمه فیصله کوی او کله چی سردار حاضر نه دی نو دهغه و کالت یاکفالت دهغـــه مرستیال کوي‌چی دده له‌خوا تا کل

شوی وی، خانان عموماء خپل‌ورور، زوی یا کوم خپلوان دمرستیال په توگه ټاکی ، د درانیو اعلی حا کم دکندهار صوبه داردی، اودی د کابل امیر له خوا ټاکل شوی او دده‌دحکم‌مطابق او امر او احکام صادر وی .

دد‌غه قبیلی شتمن خلك خپلـــه ځمکه دبزگرانو یا مزدورانو یامریا-نو په ذریعه کری او پخپله ددغـه حالت څارنه کوی خو هغه کارونه‌چی زړه یی غواړی هغه په خپل لاسه ترسره کوی، هغه درانیان چی بی‌وزله دی‌له هغو څخه ځینی یی بزگری اوډیرلږ یی مزدوری کوی خو اکثـراء

د مزدو ری کارو نه تاجك یا دپښتنو‌همسا یه ترسره کوی.

## د کیږدي دستور :

کیږدی یوه وړه خیمه وی چی په‌عمومی ډول سره دوزو او اوښانوله وړیو څخه‌جوړ یږی. اوږدوالی‌یی‌له ( ۱۵ )څخــه تــــر ( ۲۵ )

فــوټو پــور ی او پلــن والـــی یی دلسنو څخه تر دولسو (۱۲) فوټو پوری او جگوالی یی له اتو فو ټــو نه زیات نه وی، ځینی شتمن خلك

په‌خپلو خیمو کی لمځی غوړوی مگر‌عوام‌خلك‌دخپلوخیمو په منځ کی یوه پرده ځوړند وی چی دنارینه‌اوښځوځایونه سره بیل کړی دیوی معمولی

خیمی قیمت تر (٤٠) روپیو پـوری‌وی، هغه درا نیان چی‌په یوه ځای دایمی سکونت نه لری نو هغوی‌په کیږدیو کی گوزاره کوی. دوی‌دگرمی

په موسم کی غرونو ته ځی اودگرمی په آخر موسم کی اوارو او میدانی‌سیمو ته راځی او هلته خپلی خیمی‌دروی، هغه خلك چی دکندهار په سهیل‌کی اوسیږی دوبی دتوبی په غره کـــی تیروی خو‌هغه خلك چی دهلمند نـه هغی خواته پراته دی له تولوڅخه لیری ځایونوته ځی،دوی‌تل‌دپسرلی

په موسم کی دسیاه بند غره او بـا دغیس‌یا(بای‌غز)ته ځی، تردی‌مو سم

وړو سته په سختی سـره کیـدای‌شی چی خلك په میدانو نوکی ولیدل

شی ځکه چی دوی دځلورو میاشتوله پاره په غرونو کی دښی اویخی هوا څخه گټه او خوند اخلی، دهغوخلکو نه پرته چی دهلمند دسیندپه

بره (پورتنی) خواکی اوسیږی‌نـورټول مالداران په خیموکی ژوندکوی اودلیږد یدو په وخت کی ددوی‌خیمی او کمپو نه دلیدلو وړدی، هغه دله

چې سبل کېږدي ولري نو هغه لوی کمب گنل کیږی لویو کمپو ته خېل ویل کیږی ددوی سردار دسرخېل په نامه یا دوی څو کوچنی ډلی ته کلی وایی، په هغه ځای کې چې دوی ډېره کېږی نود ملك خېمه دنورو خېمو په منځ کې وروی.

همدا شان دلویدیځ خوا ته یو ځای دجومات په شکل جوړوی او کله چې ملا اذان وکړی نو ټول دخپلو خېمو څخه دلمانځه له پاره راځی او هلته سره راټو لیږی، دوی دخپلو کېږدیو نه لرګه لیری یوه بیله خېمه وروي او کله چې میلمه راشی په دغه خېمه کې اوسېږی، په بله عبارت نوموړی خېمه دتارینه وو له پاره دیوی حجرې حیثیت لری. دوی دژمی په موسم کې هم په یوه دامن ځای کې خپلي خېمې دروي اوخپلي رمې او حیوانات دغرولو له پاره له ځان سره لیری ځایونو ته بیایی کله چې ددوی رمې سیرلی او وری او زیږوی نو دوی دړی او دړي دړي رمې له ځان سره بیایی او په څر ځایونو کې سره خوریږی اوپه ډېره مینه دهغوی ساتنه او پالنه کوی. ددوی اکثره رمې دځاګیر داروی، دوی وزي هم ساتي څو دپښو نو په پرتله دوزو شمیر لږ دی . عمو میاً پـــــه غــــرو نـــو کـــې وزې او په اوارو سیمو کې پسونه ساتی. هغه خلك چې دپښتو ته ،نږدي پراته دي یا شتمن وي اوښان هم ساتی، ځکه په اوښانو باندی کېږدی او نورمالونه وړی، دوی اکثراً داوښا نونر بچیان څرڅوی او ښځي یي دنسل دډېر ښت له پاره ساتي. عام خلك دغرو نه هم استفاده کوی او تقریباً په اکثرو کورو نو کې اسان هم ساتل کیږي . دوی دتازی سپیو له ساتلو سره هم مینه لری .

**خوراك :**

شتمن دراني داپران دخلکو پــــه شان غوړ او مزه دار پولاو، دوړ ی کباب کړی غوښي ،دتناره دوډی،وچې غوښي او کرت خوري ،همدا راز دوی څوندور شربتونه هم څکي چې لـــه ډول ډول میوو څخه جوړیږي ،له دغو شربتو نو څخه یي ځینی ډیر ښه اومقوی دی. دعامو خلکو خوراك دغنمو دوډی، ژیړ غوړی او کله کله غوښه ،پوڅه، تر کاری اوسابه دی . هغه وګړی چې غریب او نهیستمن دی نـودوی د اوړ بشو اوجوارو په ډوډي او شړو مبو باندي خپلي ګیډی مړوی ،درانیان دمیوو له خوړلو سره ډیـره مینه لري او هغه خلك چې په کلپـو کې اوسیږی نو هغوی دډول ډول میوو څه استفاده کوی، مګر کوچیا نو تـه یوازی ختکی ترلاسه کیږی .

## پوښاك :

هغه خلك چې په ښارو نو کـــی اوسیږی اکثراء دګلیو الو او مالدارو په نسبت شتمن‌دی. دوی داسی‌جامې‌اغوندی لکه څنګه‌چی په ایرا ن کی پی خلك اغوندي، لویه لونګی خولی‌او قبا استعما لوی، دغه قبا ګانـــی اوږدی او ترزنګنو پوری رسیږی،چی‌مخه یی خلاصه وی او دهغه دپاسه

ددوی دوضعی سره سم یوه اعلی‌یــا‌ا:نا چپنه اغوندی، همداشان دوی یو پراخ پرتوګ دقباد پاسه اغو ندی ، دوی د چپنی د لاندی کمر بنـــد ، تـــوره او چا ړه تـــړی غر یب درانیان په تیره بیا شپانه، خراسانی

خولي په سيروی، دوی‌یو پراخ‌کمیس‌چي لستو ني يي اوږده وی دچپنو سره اویا بی‌له چپنو اغوندي، اوهم نیلي رنګه پراخ پرتوګ چی‌سپینی لیکی هم لري اغوندی ،منځنی طبقه خلك اکثراء دجمعی په ورځ په اونی کی‌یو ځل او ځینی یی خپل کالی په دویمه یا دریمه جمعه بدلوی، خو غریب خلك او شپانه په میا شتـــو میاشتو هم خپل کالی نه وینځـــی ، مګر ټول خلك دغیسل دوا جبیدو نه پرته په اونی ګی یوځل غسل کوی، خو شپانه او هغه څوك چي په دښتو او بیابا نونو کی ګرځی تر هغوچی اوبه پیدا شی له دغه امرله مستثني دي ·

## ږیری ، بنی اوولی :

ددغه قبیلی خلك ښکلی، ونی یی‌جګی او سره بخون غنم رنګه دی ، مخ‌ونه یی ګرد، او تندی یی پراخه او زړه راښکونکی بنی لـــری، دوی عموماً اوږدی ږیری پریږدی خوځوانان یی ځیلی ږیری خریی او تر یوی مودی پوری یی لوییدو ته نه پریږدی ·

ټول خلك دخپلو سرونو منځونه خریی پاتی برخی یې‌هم تروږمونږولو پوری کموی ،خو ځیلی خلك دســر ویښته پریږدی په تیره بیا شپانه خپل سرونه له خریی او دیر یـــی‌اوږده پر یږدی ·

## مذهب :

تـــول درانیان سنـــی او دینداره‌مسلما نان دی، هیڅ یو کلي دکوچیا نو سیمه یا کمپ به نوی چی ملا یاامام ونه‌لری که څه‌هم ډیر وا ړه وی ،ددوی ددینداری په باب هـــم دومره ویلی شوچی داهګزیو دښاخ له پرته نور درانیان خپل لمو نځ هیڅ وخت‌له پریږدی او داسی‌خلك دیر کم دی چی لمو نځ قضاء کړی ، دروژی په میاشت کی هر بالغ‌سړی روژه نیسی ددوی یو غوره خاصیت‌دادي چي دنورو مذاهبو پیروانو ته دزیا ن رسولو نه ډډه کوی او ډیر افراطی تعصب‌نه‌لری، خو اڅکزی‌نه

پوازی داچی دخپل دین په ضروری احکامو عمل نه کوی بلکی دنورو مذاهبو پیروان زورری. ملایان اکثره غریب وی اوپه عامو خلکو کی کم وعظ کوی.

ددرانیو په قبیله کی دفقهی عالمان لږدی، خو تقریباء ټول درانیان په پارسی ژبه پوهیږی او خبری پری کولای شی، همداراز دوی اکثرآ په دواړو ژبو یعنی هم په پارسی اوهم په پښتو باندی له یاده شعرونه وایی. ددوی اصلی ژبه پښتو ده.

**دواده دود او دستور:**

دواده کوم دود چی په نوروپښتنو کی دی په دغه قبیله کی هم په هماغه ډول دی. ددوی ځوانان کله چی (۱۸) یا (۲۰) کلن شی او پیغلی یی چی (۱٤) کلنی یا (۱٦) کلنی وی وادونه سره کوی اود واده واك او اختیار دمور او پلار په خوښه تر سره کیږی. درانی ښځی هم دیندراه اولمو نځ گوزاده دی، میړو نه له خپلو ښځو سره ډیرښه چلند کوی او ځینی پوهی او وفاداری ښځی دخپل میړه دکور ټول واك هم لری. میړه او ښځه اکثراء په یوځای کی ډوډی خوری او په یوه ځای کی سره گوزاره کوی، خو کله چی کوم پردی او یا میلمه ددوی کور ته راشی نو سره بیلیږی.

**معمولی عادتونه:**

ددی قبیلی اکثره نارینه عموماء په حجرو، مهمانخانو اویا په جوماتونوکی سره راټولیږی. دوی له جومات نه پرته عموماء په حجرو او مهمانخانو کی چلم څکوی اونصوار اچوی اوهم دخپلی کرنی او مالداری او یا دسر دارانو داعمالو او دکابل دحالاتو په باب خبری کوی. دوی دښکار سره هم مینه لری. همداراز ددوی تر منځ ډول ډول لوبی هم تر سره کیږی. تقریباء هر ماښام دوی اتنونه کوی او دسندرو ویلو کیسو او خبروکولونه پر ته هیڅکله نه سره راټولیږی. ددوی له دغه کرکترونونه جو تیږی چی دوی دډو ندی زړه خاو ندان دی.

**میلمه پالنه:**

درانیان ډیر میلمه پالونکی خلك دی. دوی دهر پردی سړی په لیدلو او میلمه کولو باندی ډیر خو ښیږی. کوچی خلك یی که څه هم ډیر نیستمن دی، خو دهغوی په حجرو کی هم تل دمیلمنو له. پاره بندوبست موجود وی. په دوی کی ډیر لوی ملك اوخان هم دمیلمه پالنی او هغوی ته

دوودی دورګولو نه نه خلاصیږی په اکثرو کلیو کی مساپران جوماتونو او حجرو ته ځی اوپه عمومی ډول دهغه چاسره چی ډوډی خل ورسره مخامخ شی میلمه کیږی، خودقیمتی په وخت کی ټول خلک سره په کډه مساپرانو ته ډوډی راوړی او یــا هم پخپلو منځو کی سره نوبتاچوی اوهر څوک په خپل وار مساپرانو اومیلمنو ته ډوډی ورکوی. دوی عموماء میلمه ته وچه ډوډی شرومبی اویاژیړ غوړی ورکوی، په هغه صورت کی چی په کلی کی کوم پسه حلال شوی وی په هغه وخت کی ښوروااو غوښه هم میندل کیږی. که دکلـی په کوم کور کی خیرات یا کومــه میلمستیا وی، نوپه دغه صورت کی میلمه هم هلته غو ښتل کیږی. او د دوستانو په شان ګڼل کیږی کــه دشپی هر وخت وغواړی چی ویده شی نو دکور خاوند بستره او نور سامان راوړی. دغه میلمه پالنه دټو لـو خلکو له پاره ده او یوازی دافغانانو (پښتنو) یا مسلما نانو له پاره نه بلکی دهندوانو او نورو مذاهبوپیروانو سره هم دغسی چلند کیږی، حو دمیلمه پالنی په څنګ کی دو ی دلو ټماری عادتونه هم لری. څرنګه چی درانیان دحکومت شخه لیری پرا ته اوپه خواره واره ډول ژوند کوی نو ځکه خپلو دغو عادتونو ته ادامــه ورکوی ، په تیره بیا هغه وخت چی په ملک کی څه شر، فسادو نه او بـی انتظامی منځ ته راځی نو دلوټماراتو شمیر زیاتیږی ، خوله ټولو څخــه اڅکز یان ډیر لاری وهونکی دی.

درانیان په خپل ملک ډیر ویاړی او کند هار ته په درنه سترګه ګوری اووایی چی زموږ دمشرانو اډیره او مړی هلته دی. ددرانیانو اکثره مشران عموماء دلیری لیری ځایونو څخــه خپل مړی دښخولو له پاره دلته راوړی. دغه خلک ډیر لږ سفرونه کوی اوټل دخپلی کورنی مینه ورســره وی . همداراز هندو ستان ته هم دسوداګری له پاره لږ ځی. دوی په کورنی کی داوسیدلو څخه پوره خو ند اخلی .

**دااڅکزیو ښاخ :**

---

دغه خلک په کړو وړو کی دنورودرانیو نه پوره توپیر لری نو ځکه ددوی حالات په جلا او بیل ډول لیکل شول ددی ښاخ دخلکو شمیر ډیرزیات نه دی او داکثرو روایاتوله مخی دوی (۵۰۰۰) کورنی دی. دقــوی احتمال له مخی به دوی د (٤٠٠٠)کورونه زیات نه وی .

ددغه ښاخ اکثره خلک په مالداری بوخت دی، خوپه لږه اندازه دکرنی چاری هم ترسره کوی چی ددوی له پاره کفایت نه کوی. ددوی دپسونو رمی په خواجه امران (عمـران) او د توبی په غرونو کی څرول کیږی، حو

پوازی داچې دخپل دین په ضروری احکامو عمل نه کوی بلکی دنورو مذاهبو پیروان زوروی. ملایان اکثره غریب وی او په عامو خلکو کی کم وعظ کوی .

ددرانیو په قبیله کی دفقهی عالمان لږ دی، خو تقریباء ټول درانیان په پارسی ژبه پوهیږی او خبری پری کولای شی، همداراز دوی اکثراً په دواړو ژبو یعنی هم په پارسی او هم په پښتو باندی له یاده شعرونه وایی. ددوی اصلی ژبه پښتو ده.

**دواده دود او دستور:**

دواده کوم دود چی په نورو پښتنو کی دی په دغه قبیله کی هم په هماغه ډول دی. ددوی ځوانان کله چی (۱۸) یا (۲۰) کلن شی او پیغلی یی چی (۱٤) کلنی یا (۱٦) کلنی وی وادونه سره کوی او د واده واك او اختیار دمور او پلار په خوښه تر سره کیږی. درانی ښځی هم دینداره او لمونځ گوزاده دی، میړو نه له خپلو ښځو سره ډیر ښه چلند کوی او ځینی پوهی او وفاداری ښځی دخپل میړه دکور ټول واك هم لری . میړه او ښځه اکثراء په یوځای کی ډوډی خوری او په یوه ځای کی سره گوزاره، کوی، خو کله چی کوم پردی او یا میلمه ددوی کور ته راشی نو سره بیلیږی .

**معمولی عاد تونه :**

ددی قبیلی اکثره نارینه عموماء په حجرو ، مهمانخانو او یا په جوماتونو کی سره راټولیږی. دوی له جومات نه پرته عموماء په حجرو او مهما نخانو کی چلم څکوی او نصوار اچوی او هم دخپلی کرنی او مالداری او یا دسر دارانو داعمالو او دکابل دحالاتو په باب خبری کوی. دوی دښکار سره هم مینه لری. همداراز ددوی تر منځ ډول ډول لوبی هم تر سره کیږی. تقریباء هر ماښام دوی اتنونه کوی او دسندرو ویلو کیسو او خبرو کولو نه پر ته هیڅکله نه سره راټولیږی . ددوی له دغه کړ کتیرو نو نه جو تیږی چی دوی دژوند ځپه خاو ندان دی .

**میلمه پالنه :**

درانیان ډیر میلمه پالونکی خلك دی. دوی دهر پردی سړی په لیدلو او میلمه کولو باندی ډیر خو ښیږی. کوچی خلك یی که څه هم ډیر نیستمن دی، خو دهغوی په حجرو کی هم تل دمیلمنو له . پاره بندوبست موجود وی. په دوی کی ډیر لوی ملك او خان هم دمیلمه پالنی او هغوی ته

شول، کله چې دمقدود زوی شاه حسین له کندهار نه دپنجاب خواته راغی نو ښایي چې له دې سره به دابدالي قبیلې ډیرې کورنۍ ملگرې وې او هم کله چې غلجي میرو پس هوتک قدرت تر لاسه کړاو دهغه جنگیالی طبعې په وجه ډیر ابدالیان خواره واره شول چې ځینې یې ملتان ته هم ولېږدېدل داسې روایت هم موجود دي چې دابدالیانو څخه لومړی ځل په ملتان کې دتمن یعنې دجمند یازمند افغانانو (پښتنو) ښاخونه میشته شول او کله چې دغه پښتانه ابدالیان ملتان ته وکوچېدل او هلتـه په رانگپور گهیړیان واله کې میشته شول اوخپل ژوندبه یې کله دتجارت له لارې او کله به یې دتجارتي مال دوړو راوړو دکرایې له لارې څخـه چې دنورو پوونده وخلکو رواج دی تامیناوه ،خو دشاه حسین کورنۍ ته دپاچاهۍ دربار لخوا دگوزارې لـه پاره څه منصوبه ورکړل شول. که څه هم په هغه وخت کې دابدالیانو هر ښاخ چې په ملتان کې میشته و له ځانو نه بیل بیل خانان او ملکان لرل لکه چې دعلیزیو بیل خـان او صدوزیو ځانته بیل خان درلود دبادوزیو اونورو حال هم په همدې شان و، خو ددې ټولو خیلونو مشر دشاه حسین مغدود له اولادې څخه و.

کله چې دابدالیانو شمیر زیات او پیاوړی شول نو دجمندي زمندله ښاخ سره یې دزراعتي مسئلو له کبله شخړې رامنځ ته شوې او په پای کې ددواړو ښاخونو تر منځ سخته خونړۍ جگړه وشوه . او دابدالیانو قبیله دجمند په ښاخ بریالي شول اودجمند یازمند دښاخ ډیر خلک ووژل شول ، پاتې یې له ملتان څخه وایستل شول او په دغه ځای باندې ابدالیانـو خپله قبضه ټینگه کړه. کله چې د دغو پېښو خبر د ډیلي دربار تـه ورسیده نو له هغه ځای څخه په ډیر نارضایت سره دابدالیانو ښاخ دځار- جید لوفرمان صادر شو کله چې ابدالیانو دغه خبر واورېده نو هک پک شول . دوی په خپلو منځو کې پریکړه وکړه چې ددوی دښاخ ټول خانـان او ملکان دډیلي پاچا حضور ته ولاړ شي او دخپلو جرایمو عفوه وغواړ ي تر څو دډیلي پاچا قهر اوغضب سوړ شي او ددوی کورنۍ له کړاوونو څخه وژغورل شي، له همدې کبله ددوی دری تنه خانان او مشران په ډیلي کې د پاچا حضور ته ورغلل او له هغه څخه یې دخپلو گناهونو بخښنـــه وغوښته او ددغه جرم سبب یې دجمند یازمند ښاخ په غاړه واچاوه. دډیلي پاچا دومره نرم شو چې ددوی په کورنیو باندې یې تیرې بند خو ابدالي خانان او مشران یې تر ډیرې امره پورې بندیان کړل، کله چې په دغې کې مرهټه وو او نورو په بغـاوت لاس پورې کړاو څوځله یې شاهي

لښکری ماتی کړی نو په هغه وخت کی ابدالی قید یا نو له ښندی خا نی
شخه ده ته دخدمت کولو غوښتنــه وکړه چی دوخت د ضرورت له مخی
ددوی غوښتنه ومنل شوه او دیـوه پوځ سره ابدالیان هم ددکهن په لور
روان شول او په دغه جګړه کی یـی داسی زړه ورتوب وښود چی پاچا له
هغو نه ډیر خو شحال او دوی ته یی خلعت او جاګیرونه ورکړل او بیابیر-
ته ملتان ته راستانه شول، له هماغه وخته دغه خلك زمیندار اودملتان
په شاو خوا کی دجاګیرونو خاوندان دی، چی دشاه حسین له اولادی شخه
شجاع خان سوجاع باد (شجاع آباد) ودان کړ . دغه کورنی دټولو ملتا نی
افغا نانو (پښتنو) خانان وو.

کله چی دخدا ی رضا و شوه چیدغه ښاخ واك دی په ملتان کـــی
له منځه ولاړشی نودنواب مظفر خان په دوره کی چی دملتا ن ډیرمشهور
نواب و . او دده دنسب شجـــره وړاندی ولیکل شوه دلاهور وا لـــی
رنجیت سنګك په ملتان بانـــد ی تسلط و موند اونواب مظفر خـــا ن
شهید شو . په (۱۸۷۵) عیسوی کال بکر ما جیتی کال کی سکانو پـــه
ملتا ن تسلط ټینګ کړ او هغـــه افغانان ( پښتانه ) چی د سکانو په
عام قتل شخه خوند ی پاتی شو ل له ملتان شخه و لیږ دید ل او دنوا ب
محمد خان بهادر خیل سدوز ی سیمو یعنی منکیرا او بکهر ته راغلـــــل
او کله چی منکیرا درنجیت سنـــګ لاس ته ور غله هغو ی دیره جا ت
په تیره بیا په دیره اسمعیل خـــا ن کی میشته شول . اوتر اوسه پور ی
دوی اکثراً په دیره اسمعیل خـــا ن کی پرا ته دی . دنوا ب مظفر خا ن
له اولاد ی شخه احمدعلی خان ا و نواب عبدالمجید خان تر اوســـــه
په لاهور کی ژ وند کوی.

**دنواب محمد خان کورنی:**

دغه کورنی دسدوزیو دقبیلـــی دبهادر خیلو په ښاخ پوری اړه لری
که شه هم په لومړی سر کی دجمندویازمندو سره دجنګ او ملتان دنیولو
په وخت کی دنواب محمد خان نیکه صحبت خان دډیر عزت ،اعتبار اوشتو
خاو ند و او دده پلار یار محمد خـــان چی په یاراخان باندی مشهورو ډیر
غریب سړی و.

په پیل کی نواب محمد خان دسوداګری په چارو بوخت وګر هغه څو موده وروسته په بهاولپور کی‌دسر کار ملازم‌شوخودغه کار یی‌هم‌پریښود او دملتان‌صوبدار حاجی مظفر خا ن‌سره دمیاشتی دشپیته روپی تنخوا ه په بدل کی نوکر شو .داسی ویـــل کیږی چی دنوموړی تنخواه لومړی‌څل دیرش روپی وه چی وروسته شپیته روپی شوه، خوده ته به ډیر عز ت ورکول کیده، څه موده وروسته دخپل‌ذاتی لیاقت په اثر نواب محمد خان دیوی دلی ملتانی‌افغا نانو سره‌دنورو‌ملکو نو دنیولو ملاوتړله لومړی یی دمونده کلاه‌فتح او ورپسی یی‌ورورودتهل، کچرهی، لیه او بکهر سیمی یوپه بل پسی‌و نیولی او پوره څپلوا کی یی ترلاسه کړه‌په دغه وخت‌کی دلیه ښار چی تهل دعلاقی دحاکم‌استوګنځی ود عبدالنبیٔ خان سراهی په لاس‌کی واو کله چی نواب محمدخان‌وربا ندی یرغل وکړ لومړی دعبدالنبی خان دزوی محمد عارف خان لخـــوا ددوی یرغل په‌شا وتمبول شو مګر کله چی‌محمد عارف خان دتوپك‌ګولی دلګیدو په اثر مړشو نو ملتانی‌پښتا نه سره‌له دی چی‌دماتی سره مخامخ وو، په ناڅاپی ډول یی بری په نصیـــب شواو دلیه ښار ددوی لاس‌ته ورغی.

کله چی نواب محمد خان دومره‌سیمی ونیولی‌نو دتیمور شاه سدوزی زوی شاه‌زمان د افغانستا ن پا چـا ده‌ته دنوابی خطاب‌او دشاهنواز خان لقب ورکړو له‌دی کبله ده‌په نواب محمد خان شهرت وموند ده‌دمنکیرا کلا جوړه او هغه یی خپل استوګنځی وټاکله، په (۱۸۲۱) عیسوی کـال رنجیت سنګ د منکیرا کلا اودداواب‌سیمه دنواب محمد خان څخه ونیوله او نواب محمد خان په دیره‌اسمعیل‌خان‌کی دسند درود په‌لوید یځـــه غاړه کی میشته شواو بیاهم دی‌نواب‌واو دخپلوفتو حاتولمن یی دلویدیځ خواته ددامانه مروت اوعیسی خیلو پوزی وغزوله، خو دده پوځونه په پنو کی دماتی سره مخامخ شول.

نواب محمد خان نارینه اولاد نه لاره نوځکه یی پخپل ژوند کی‌دحاجی عبدالرحمن زوی حافظ احمدخان چی‌دده زوم او دنواب محمد خان له‌لور څخه ددغه حافظ احمد خان کو چنی‌زوی عبدا لصمد خان زیږیدلــی و. ددی کبله او په دغه‌ا مید چی یوه‌ورځ به دده ریاست دده دلورزوی ته ورسیږی نو حافظ احمد خان یی‌خپل ولی عهد وټاکه. دده تر مړینی وروسته نواب حافظ احمد خان دریاست واګی تر لاسه کړی، دی دلوړ همت خاوند او زړه‌ور نواب تیرشوی‌دی. عبدا لصمد خان‌پرته له دی‌چی دنوابی مقام ته ورسیږی او دخپـل‌مرحوم نیکه هیله ترسره کړی مـړ شو په دغه‌ډول‌دنواب محمد خان‌هیله تر سره نه شوه او دحافظ احمد خان تر مړینی وروسته دده له زامنـــو څخه شیرمحمدخان چی ددویمی ماندـ ینی څخه د خپل پلار جانشین شـــو په دغه وخت کی‌چی دبکرما جیتـــی

(۱۸۹۳) کال د مساتون میاشت وه چې گورنر نونهال سنگ د دیره اسمعیل خان د ټولو مربوطو سیمو سره یوځای د سکانو خالصه سرکار ته ورپاتېشو او په بدل کې یې نواب شیر محمد خان ته د کال شپېته زره روپۍ د جاگیر په دول ورکولې. د نواب شیر محمد خان تر مړینې وروسته د ده زوی نواب محمد سرفراز خان، نواب شو چې تراوسه هم په ډیره اسمعیل خان کې ژوندی دی او خلک ورته نواب وایي او په ډېره درنه سترگه ورته گوري. د لته د نواب محمد خان دوه وریرونو ځنې حیات الله خان محمدزی هم او سیږی.

## علی زی (الیزی):

د علیزیو له کورنی څخه نواب فوجدار خان ته انگریزی سرکار د نوابی لقب ورکړ کله چې ابدالیانو په ملتان باندې خپل تسلط ټینگ کړ نو په هغه وخت کې د علی محمد خان د زوی عیسی خان لوی نیکه په خپله قبیله کې ډېر اعتبار خاوند و. تر هغه وروسته خدایار خان د نواب فوجدار خان نیکه د ملتان د والیانو نواب شجاع او مظفر خان په دربار کې د ډېر عزت خاوند ملازم و خو کله چې رنجیت سنگ ملتان ونیوه نو ابدالی قبیلې ته ډېر زیان ورورسېده ډیری کورنی یې تباه شوې او ډېری یې هم خواره واره شول په دغه وخت کې د دغې کورنۍ ته هم پخوانی حیثیت او جاه و جلال ورپاتې نشو، څه موده فوجدار خان د نواب شیر محمد خان محمدزی چېــــدار و وروسته د عاشق محمد خان علیزی د ورور ملازم واو کله چې د دیره اسمعیل خان ضلع د سکانو سرکار ته په لاس ورغله او دې د خپل وطن نه چلا شو نو د تانک او سید ونکی الله داد خان د تانک سیمه عاشق محمد خان علیزی، محمد پاینده خان خواجکزی او حیات الله خان محمدزی ته د جاگیر په دول ورکړه، خو چې د منوشانانو له خوا فوجدار خان د تانک په کلاگی ملازم و تاکل شو، او بیا د دیوان لکهی مل سره چې د اسمعیل خان دیری تیکه دار و مقرر شو او ده له خوا څه موده د مروتو د سیمې کارونه هم ده ته وسپارل شول.

په (۱۸٤۷) کال کې کله چې په ملتان کې بغاوت منځ ته راغی له نیکه مرغه دی د کرنیل سرهربرټ اډواردس سره ملگری او هغوی ته یې ډېر خدمتونه وکړل او تل د انگریز سرکار خیر غوښتونکی و. د دغو خدمتونو په بدل کې انگریزی سرکار ده ته د خان بهادری لقب، چا نیر او ډېره تنخواه وټاکله او کله چې ده ته په کابل کې د سفارت د نده ورکړه شوه بیا هم ده خپله وظیفــــه په ښه توگه تر سره کړه، انگریزی سرکار له ده څخه ډېر خوښ او کله چې له کابل څخه بیرته راستون شو د نوابی لقب یې ورکړ او همداراز جاگیر هم دده په اولاده کې میراثی پاتې شو او په افتخاری توگه د پوځ سرداری هم ده ته سپارل شوی وه، دې ډېر پوه سړی دی.

## غلام حسن خان هليزی :

نوموړی هم له همدغه کورنۍ څخه دی. ددهٔ پلارعاشق محمد خان نومیده چې یو ډیر باغیرته او زړه ور انسان و او دامیرفتح خان توانه له لاسه ووژل شو. غلام حسن په (۱۸۵۷) عیسوی کال چې په هندوستان کی کوم لوی بغاوت پیښ شو، دغه غلام حسن خان دسپرو دیوه‌فوندپه مشری انګریزی سرکار ته دقدروړ خدمتونه وکړل. دی یوزړه ور، رښتینی اودښه خوی خاوند دی اود سرکار له خوا یوځل کابل ته دسفیر په توګه لیږل شوی و اوهو کاله وروسته په (۱۸٦٤) عیسوی کال بیرته راستون شو. په (۱۸٦٥) عیسوی کال سرکار دده دښو خدمتونو اونېی کورنۍ په وجه دنواب لقب ورکړ.

## دخود که کورنۍ :

دغه کورنۍ دسدوزی له قبیلی څخه دخواجه خضر دمشرزوی خداداد سلطان له اولادی څخه ده، له دی کبله چې خداداد ته پښتنو پخپله محاوره کی خدا کی وایه نو ځکه دده اولاده په خودکه سره‌مشهوره شوه په ملتانی پښتنو کی ددغه کورنۍ مشر نظام خان خودکه یو ډیر منلی او داعتبار خښتن سړی دی چې اوس دباولپور دنواب سره، نوکر دی او هغه ته ډیر دعزت په سترګه کتل کیږی. دده زوی په دیره اسمعیل خان کی استوګنه لری.

## خاکوانی :

ددغه ښاخ څخه غلام سرور خان خاکوانی چې ددیره اسمعیل خان او سیدونکی دی دخلکو په منځ کی دډیر قدر وړاو په درنه سترګه ورته کتل کیږی. دده زوی عطا محمدخان هم ډیر بختور سړی اود سرکار ښه خادم دی.

له یادو شوو کورنیو پرته دابدالیانو شو نوری کورنۍ هم په دیره اسمعیل خان کی میشته دی، خودیادولو وړنه دی. په دغه ځای کی ددی قبیلی تقریباً (۸۰) کورنۍ ژوند کوی.

## پوښاک او دژوندانه ډول :

د ملتانی پښتنو ژوند په مطلق ډول دلویدیځ افغانستان دابدالیانو نه توپیر لری. دوی تقریباً ددرو یا څلوروګزوپه اندازه سپینی‌لونګی په سروی ددوی اوږده ویښتان چې یوی او بلی خواته پراته تر اوږو پوری رسیږی‌اویوډول لوی کمیسونه چې لستونی یی اکثراً چین شوی‌وی اورنګه او لوی‌پرتوګونه چې‌پایڅې یی تنګی وی اغوندی. عیاش خلک

اکثراً گلبدن کالی اغو ندی او هغه کسان چی لمونځ گوزاره دی دوریښمو اوکتان شخه جوړشوی کالی اغوندی او گلبد نه، سوب چی سور جگری رنگ لری استعما لوی، خو ځینـــی شتمن خلك دسپین سان پر تو گو نه اغوندی. دوی عموماء ملتانی نازکی پنی په پښو کوی اوخپل ځا نو نه او کالی پاك ساتی.

په دوی کی ځینی خلك حلیـــم ،سپیځلی او پاك دی خواکثراء یـــی کبرجن ځان حوښوو نکی، کینه کښی او اندك رنجه دی .نوی ځوانان یی تنبل (لټ) هوسایی غوښتو نکی او عیاش دی،خوپه پوځی چارو کی ډیر فعال ، تکړه،اوښه سنپایان دی،دپاخه عمر خلك یی دینداره، لمونځ گذاره اوپه لاسونو کی یی تسبیح وی.دوی په اسانی سره خپل کوراو وطن نه پریږدی او په خپله قبیله کی هم دبل سړی لویی اوعظمت ته په ښه سترگه نه گوری دخبل ځان ستاینه وربه عیب نه ښکاری، خو دخپلو دوستانو سره په میړانه چلند کوی .

# د ترین ابن خرشبون د نسب شجره




د ابدال د نسب شجره وړاندې راغلې ده

# د ترین قبیله

ددوی د نسب د شجری نه داسی ښکاره کیږی چی ابدال چی دده له نسل څخه درانیان منځ ته راغلی دی هغه هم د ترین زوی و. مګر د هغه اولاده په ابدالی او درانی باندی مشهور او بیل ګڼل کیږی. د ترین د پاتی دوه زامنو اولاد د ترین په نامه بلل کیږی چی ددغو دوو زامنو نه د ترین قبیلی دوه لوی ښاخونه منځ ته راغلی دی چی یو ته یی تور ترین او بل ته یی سپین ترین وایی چی له دغو دوو ښاخونو نه واړه ښاخونه او څانګی منځ ته راغلی چی تفصیل یی د نسب د شجری نه ښکاره کیږی.

**تور ترین:**

دغه ښاخ د درانیو د ملك سهیل ته په پشین کی اوسیږی چی لویدیځ ته یی د شوراوك یا شورابك سیمه چی د بریڅو قبیله پکی استوګنه لری او سهیل ته یی د شال سیمه پرته ده چی د تکتو غر ددغو سیمو تر منځ پوله جوړوی.

د پشین سیمه تقریباً (۸۰) میله اوږد والی لری او دغه اوږدوالی له شمال ختیځ نه د توبې ختیځ خواته غزیدلی دی چی له ټولو نه سور ـ ورځای یی شلو ینبت میله پلـــن والی لری.

د پشین سیمه د بریڅو د ملك (شورابك) نه لوړه د ملو سطح یی هم له شورابك څخه ډیر لوړوالی او زوږ والی لری. څرله شورابك نه ډیره اباده

اوشنه‌ده. دلته غوایان دیوی‌له پاره‌داوښانو په نسبت زیات استعمالیږی، که څه هم اوښان هم کله ،کله په یوی کی تړل کیږی، نوځکه دلته اوښان هم روزل نیږی که څه هم بوز ترین په عمده ډول‌په کرنی‌اومالداری باندی خپله گوزاره کوی، خو یوزیات شمیر یی دسنداو کند هارتر منځ په سوداگری بوحت دی. دعی قبیلی ځینی دودونه او رواجو سره درانیو ته ورته دی اوددوی خان ددرانیو له سردار سره مطابقت لری.

دکابل امیر او دکندهار حاکم‌پخوادغو خانانو په چارو کی مداخله نه کونه ،یواری په یی په تاکلی اندازه سپاره دربارته دخدمت له پاره‌استول چی دغه کاربه دملنگ په بدل کی‌برسره کیده او گله کله په‌هم ددو ی خانان دربار ته غوښتل کیدل.

دپشین دتولو اوسیدو نکو شمیر تخمیناء (۱۰۰۰۰) لس زره کورتی شمیرل شوی دی چی‌په دغه سیمه کی ډیر سیدان هم اوسیږی چی په دغو سیدانو ئی ښه تکړه‌سوداگران‌هم شته دپشین په سیمه کی‌دتور ترین سیدانو او کاکړ و نه پرته‌همسایه او بله کومه قبیله استوگنه نه لری. داسی ویل کیږی چی‌له هغوی‌نه دتور ترینوشمیر تخمیناء (۶۰۰۰) کورنیو ته رسیږی.

## سپین ترین:

دغه قبیله په شمیر کی له تورو ترینو څخه لږدی. دوی په ځلورو ښاخونو ویشل شوی دی او دژوره په نامه وادی کی چی دتل‌او چوتیالی‌په میدانی سیمو کی پرته ده اوسیږی. ددوی او تورو ترینو ترمنځ یو څه دګ‌ترو ملک پروت دی. دوی په‌دوداو دستور کی له تورو ترینو سره ورته والی لری او تقریباء په‌مساوی‌ډول دکرنی په چارو اوپه مالداری باندی اخته دی. دوی‌تندرست ا وقوی خلک دی ددواړو ترینو یعنی هم دسپینو ترینو اوهم دتورو‌ترینومشری او ریاست‌سره‌له‌دی چی‌لیری پرانه دی، دیوه خان په لاس‌کی ده‌اوله پښته پښته نه مشری دتور ترینو دقبیلی‌دبتی‌زی‌په ښاخ پوری‌اړه لری‌ددی دثبوت لپاره‌یومشهور متل دی چی دپښتوپه ژبه‌کی دپخواوختونه پاتی شوی او هغه دادی:

خانی ده په دوه کوره په لوحانی کی پرکتی ده

په ترین کی په بتی ده.

مقصد داچی خانی په دوو کورونو کی ده یو‌یی دلودی له نسل څخه د لوحانی دقبیلی په کتی زیو او بل‌ئی دترینو په بتی زیو کی او دغه پیسرو مقوله ثابته شوی‌هم ده اوپه دواړه ترینو کی یوخان دی‌او هغه هرکال دسپینو ترینو ملک ته‌هم د قلنګ دراټولو له پاره ځی‌اوهم‌که

څوك نه غواړي نوكري وكړي نوله هغه نه ددغه كارپه بدل كې پيسې اخلي. كله چې دكابل په دربار كې بې نظمي رامنځ ته شي نوپه دوي هم دغه بې نظمۍاو فسادونه تاثيركوي‌او خپل سرې كيږي. دوي دفسادونو له وخته پورته هم تش په نامه رعيت‌كنټرول كيږي او او س دكند هار حاكم دپښين له سيمې څخه په تا كلــــې اندازه نقدي روپۍ اخلي او دسپينو تر ينو داستو گني دري وا ړه سيمې‌سره نښتې‌دي .ژوره چې دو ادې‌څخه په پور ته سيمه كې دڅپر دغره لــه نږدې سيمو څخه پيل كيږي دغرونو په منځ كې تنگه، خو كوزې‌خوا نږدې پراخه دي، تر هغې اندازې چې آبادي هم پكې دي او ددغه ځاى په مينځ كې دوه لوى كلي هم‌شته . تل تر دغه ځايه هم‌څه پراخه دي او د بورې اوچوتيالى ميدانونه هم‌ورسره يوځاى كيږي ،دتل اوچو تيالى ځمكه دسيوي له ځمكې سره پرتله كيداى شي،خو هوايي له سيوي څخه يو ه‌اندازه ښه ده.

## دشيراني قبيله :

داسې ويل‌كيږي‌چې شيراني‌دكاكړ دلور زوى (لمسى) و،كله يې‌چې‌مور مړه شوه نو پلار يې بله ښځه پــه نكاح كړه چې دهغې څخه يو بل‌زوى پيدا شو، شيراني غوښتل چې تــول واك دې ده په لاس كې‌وي، مگــر ترين چې دورو ستي ښځې مشراولاد وداي ونــه منله ،همداو چــې ددې خبرې له كبله شيراني دخپل پلاراوورونو نه خپه شو اويو پيغام‌يې كاكړ ته چې مورنى نيكه يې‌و په دې‌مضمون واستاوه چې‌زه دلته ديرپه تنــگ شوى يم، راشه لوما دځانه سره بوزه. كله چې كاكړ داخبره واوريده‌دخپلو څو تنو زامنو سره دشرخبون كورته راغى اوويې‌ويل چې‌ته شيراني‌پرېږده چې زما سره لاړشي ترڅو چې زمــا دزامنو سره يوځاى پالنه اوروزنه ترلاسه كړي. شرخبون په‌دې خبره راضي نه و. كله‌چې شيراني په تللو باندې ټينگار وكړ نوپه دې وخت‌كې ترين په قهرشو اوپلار ته يې ووېل چې شيراني پرېږده چې دكاكړ سره لاړشي كه چېر ته هغه دلته نه‌وي نوڅه به وشي په پاى كې كاكــړ،شيراني له‌ځانه سره بوت‌او شيراني هم ژمنه وكړه چې‌ما‌يا زماا‌و لادې‌ته دې هيڅكله سړبنى نه ويل كيږي، په همدې دول دخپل‌مورني نيكــه يعنې دغر غښبت په كورنى‌كې‌شامل شو لوتر اوسه پورې كه دسړبن‌اوغورغښبت ( غرښت )دقبيلو تر منځ څه تميز لوتوپير پيښ شي نوشيراني دغرغښت په قبيله كې راځي. دنسب دشجرو دمطالعې نه داهم څرگنديږي چې جلواني، هرپپال، بابړ او نـور ښاخونه هم دشيراني دنسله دي ،خو هغوى په جلا نامه نومول‌شويدي.

لوس يولزي‌دحميم بن‌عمر ابن‌ودم‌داوو زامنو اولادې ته شيراني وايي چې تفصيل يې د هغه په نسب نامه كې د رج‌دي.

دغه قبیله دزمری خلکو شمال خواته په غرو نوکی او سیمو ی
او دوزیرو قبیله دمغوی په شمال او دگومل ددری په قطبی برخه سی
استوګنه لری، همدا رازد دوی په لویدیځه برخه کی ژوب او دمندو
خیلو کاکړو سیمه موقعیت لری. دهغوی دملك اکثره برخه دتخت سلیمان
په یوه جګ غره کی پرته ده. ددوی غر ډیر سخت دی. دغه قبیله په
کوچنی کوچنی کلیو کی تقریباء (۲۰) یا (۴۰) کوره اوسیږی اوپه وادی
ګانو او دغره بیله خوړو برخو کی خواره واره دی. دوی په غره کی
اکثره خپل کورونه دتنور په شکل کی او دکندل شوی ځای دری خواته
دیوال جوړوی او بیا هغه پټوی. هر کور یوه کوټه اویوه دروازه لری چی
دشپی لخوا داغزی لرو نکو ونو دبناخونو په واسطه بندیږی. دیخنی په
موسم کی هم دغه ډول دروازی ساړه نه شی بند ولای، نوځکه دوی توری
سطر نجی دپردی په ډول پری راځړوی دوی خپلی اوږدی چپنی چی دپوستین
په ډول دپسه له پوستکی څخه جوړی شوی په خپل ځان اچوی او شملی او
هغه ونی چی ددوی په غرونو نـ ی پیدا کیږی دهغه څخه ډول ډول لرګی
لاس ته راځی او اکثره شیرانی دډغو لرګیو څخه غشی او لیندی جوړوی
او دخرخلاو له پاره یی ډیره اسمعیل خان او کلانچـی تـه راوړی، دوی
په خپلو کورونوکی د رو ښنایی له پاره دنښتر لرګی استعمالوی، چی له
دود څخه یی ددوی کورونه ، پوښاك اوحتی شیری هم تور بخونی وی .

شیرانی اکثراء منځنی ونی اومتوسط اندامونه لری ، مګر قوی اوچا-
لاك دی. دعامو شیرانیو خلکو پوښاك له ډبلوتوکرانو څخه جوړ یوه شړی
هم پر اوږو باندی اچوی او دغوایـی دخا می خرمنی څخه جوړی شوی څپلی
په پښو کوی دوی ددریو یا څلوروګزو په اندازه سپینه پګړۍ هم په
سروی او ځینی خلك یی خړ رنګـه پر تو کونه او قباډو له چیـن دار
کمیسو نه هم اغو ندی. په دوی کی ډیر ماړه اوشتمن خلك هم تر دغو
یاد شووکالیو ډیر ښه کالی نه اغوندی، که څه، هم دوی خپل پوښاك له دی
امله چی دملتانی وریښمونه جوړ شوی دی ډیر ښه ګنی. ددغی قبیلی
خوراك اکثراء دجوارو ډوډی، کوچ او کورت دی. دغنمو ډوډی اکثـراء د
میلمستیا وو په وخت کی پخیږی. دوی اکثراء دپسونو غوښی خوری،
خو کله چی غوایی یا سخو ندرناروغه اویا دکوم بل عامل په اساس مرګ
ته نږدی شی نو هغه هم حلالوی اوخوری یی. دوی دزیتونو میوه هم په
تازه ډول اوهم په وچ ډول په داسی حال کی چی په اوبو کی یـی لمدوی
خوری، همدا راز دوی ځنګلی انـار، جنغوزی او نوری میوی چـی ددوی

دشیرانی بن شرخبون ابن سربن د نسب شجره



په غرونو کې پیدا کیږي خوري. شیراني په پاخه عمر کي وده کوي. دشیرانیو او نورو پښتنو تر منځ یو عمده توپیر په دې کې دی چې شیرانیان دخپلې لور په بدل کې دزوم نه پیسې نه اخلي، بلکې له خپله کوره هم دواده په وخت کې ناوې اوزوم تـه دخپلې وسې په اندازه یوڅه ور نوي. ښځې یوازې دخپل کور کارونه کوي او همدارنګه دفصل دلوکولو په وخت کې دخپل میړه سره مرسته کـوي. په شیرا نیو کې پیسې لـږ ی دي ځکه چې دوی د اخیستلو او پلــورلو په وخت کې یو جنس دبل جنس سره تبادله کوي. په دوی کې دمریانو او نوکرانو ساتنه نشته، همداراز په دوی کې کار ګران هم لږ دي.

دشیرانیو په سیمه کې تقریباً شل تنه هندوان شته چې دوکان داری کوي، دوی غلې، توکران، کوره، تمباکو، ژیړ غوړي او ځینې نـور ارزان شیان چې ددوی په سیمو کې جوړیږي خرڅوي. ترکاڼ، پښ اویا پاولي (!) له دامان نه دلته راځي. شیراني اکثراً په وادي ګانو کـې کرنه کوي، همداراز دغرونو لمنـې په للمې ډول کرل کیږي خو ددوی نوري ځمکې دغرنیو ویالو په ذریعه خړوبیږي، دخانانو او ملایانو نـه پرته نور ټول پخپله کار کوي. ددوی اکثره ځمکې دوه فصله دي. په منۍ کې وریجې، جوار او تمباکو پیدا کیږي. دسړو له کبله تمباکو په پسرلـي کې نه کرل کیږي او کله چې دمنـۍ دموسم فصل وریبل شي نو بیا غنم او وربشې کرل کیږي او کله چـې ددوبي موسم راور سیږي هغه ریبل کیږي. دغه خلك اکثراً دمالدارۍ په چارو بوخت دي او اکثراً غواوې او غوایې ساتي هغه خلك چې پــه غرونو کې په خواره واره ډول ژوند کوي هغوی ډېسونو او وزورمې هم ساتي. دشیرانیو غوایې ډېر واړه، تور رنګې دي او جګې اوږې نه لري. ځینې خلك خره هم ساتي. دلته کچری او مینبې نه ساتل کیږي. دشیرا نیــو په ټول ملك کې حتی شل اسونه هم په سختۍ سره موندل کیږي. دوی خپل خان ته نیکه وایي چې په عربي یې جدبولي. خان په قبیله کې ډېـر واك خاوند او ډېرې ځمکې لري او خلك پخپل وار دده ځمکې کري او کار پکې کوي. دی په کور کې نوکر نه ساتي. هغه څوك چې ډېسونو رمې لري هغوی دکال په هر کور یوورې او څوك چې ډېر غوایې او سخوندر لري دوی یوڅو سګې خان ته ورکوي او هغه یې له چانه په زور نه اخلي او خلك یې پخپله رضا ورکوي شیراني داسې فکر کوي هغه څوك چې ددغه محصول له ورکولو نه ډډه وکړي په

هغه به کومه بدمرغی نازله شي. که څه هم دغه خلك خپلی شخړی په جبری توګه فیصله کوی خو په اصل کی نیکه دعدالت چاری سر ته رسوی او کله چی ده ته دعوه راجع شـی هغه ددواړو خواوو خبری اوری بیا ورو سته دعا کوی اوپه ښه نیت سره دادعوه فیصله کـوی او دده حکم تل دخدای دغضب له ویری منل کیږی ،ددی له پاره چی ددوی پـه عقیده دده فیصله دخدای الهام ګڼل کیږی .

شیرانیان هم څلویښتیان لـری اوکوم څایونه چی دنیکه داستوګنځی څخه لیری دی هلته څلویښتیان دنیکه په حکم دده دنایب په ډول کارکوی شیرانیا ن په خپلو منځو کی لږی شخړی سره کوی ، ددو ی په هرکلی کی ملایا ن شته چی دکر نی دمحصولا تو عشر ور کول کیږی .

ملایان دجومات له امامت نه پرته نکاح ګانی تړی، هلکانو ته مذهبی فرایض ورښیی اوپه همدی ډول مړو ته دغسل او کفن ورکول هم دملااو دده دښځی په غاړه وی. په شرانیو کی ډیر خلك دقران شریف تلاوت کوی او څوك په پارسی نه پوهیږی، پوازی ملایان خلکو ته په پښتوژبه هغه کتا بونه ورزده کوی چی پـه مذهبی مسایلو پوری مربـوط وی . دوی په عمومی ډول لمونځ اوروژه نه قضاء کوی، خو دزړه له اخلاصه یی عبادت لږ دی. *

هغه پوونده اونور خلك چی ددوی له سیمو نه لویدیځ افغا نستان او دامان ته تګ او راتګ کوی نوشیرا نیان له هغوی سره شخړی کوی ، خوتول خلـك په دی عقیده دی چـی شیرا نیان پخپله ژمنه ټینګ ولاړ دی او هغه خلك چی ددوی بدر که له ځانه سره ولری نو ددوی لـه سیمی څخه په امن تیریدای شي . کله چی شیرا نیان دکومی مخالفـی قبیلی سره په جګړه لاس پوری کړی نو نیکه (خان) ددوی مشری پـه غاړه اخلی. په دغه وخت کـی ددوی ټول لښکر دنیکه دپګړی لاندی په داسی حال کی تیر یږی چی قران شریف یی په کی اچولی اودوو تنو دپګړی سرونه نیولی وی اوله دغه ډول تیر یـدوڅخه شیرا نیو ته دا عقیده پیداکیږی چی دوی به ددښمن په توپك او یا توری سره مړه او ژوبل نه شـی او دلا نیکه دعظمت او لوی والی یوښه دلیل او ثبوت ګڼل کیږی. * *

---

*آیا مؤلف دزړونو په حال هم خبر دی؟ (رشاد)

**تر قران شریف ایستل یا تیریدل په نورو پښتنو کی هم باب دی، شیرا نی دی که نور پښتانه ټول دقـران شریف برکت منی.
(رشا د)

دشیرا نیو وسلی چقمقی ټوپک، توره او کرچ دی، خو خلک داسی وابی چې ددوی ټوپک دخلکو دشمیر په نسبت یو په دری لږدی، خو تقریباء ټول بالغ خلک توری لری. دوی په عمومی ډول بی ازاره خلک دی، خو مهینی یې غله، لوټمار اولاړ وهونکی دي.

# دبابړوښاخ

دنسب د شجرې له لیدلو نه‌دا جوتیږي چې بابړ هم په اصل کې د شیرا نیوله نسله وو ، خود دوی‌اولادې ځانته بیل‌نوم غوره کړ اواوس په مطلق ډول دبابړوپه نوم یا دیږي. بابړ د میاخیلو په سهیل‌کې استو- گنه لري چې لویدیځ ته یې سخت‌غرني ملکونه پراته دي او دیوه غرني وادي څنډې ددوی ملك‌ته‌رسیږي اوله هغه څخه یوه غرني ویا له‌راوځي چې د دغې ویالې په‌ذریعه ځمکې خړوبیږي. ددغه‌وادي څخه یوه‌لاره‌لوید- یځ افغانستان ته تللې ده، خوخلك‌وربانديډیر تګ اوراتګ نه کوي ، لکه‌دغوایلري اویاګومل په‌لا رو یې‌چې کوی ویل کیږي چې د بابړ وښاخ داسترانی د قبیلې څخه پرته دنوروټولوافغا نانو ( پښتنو)څخه وروسته د شیرا نیو له غره څخه را ووتل‌اودچوډې په سیمه کې میشته شول . د بابړو ښاخ خلك اکثرآ دسوداګرۍپه‌چا رو بوخت او ددامان د نورو قبیلو په‌پر تله شتمن او هوسا ژوندې لري چې ځینې تردریو لکو پورې نغدې روپۍ‌لري. په دغه ښاخ کې‌ددو مره پیسوخاوندان ډیر شتمن‌ګڼل کیږي.

د میانه ابن شرخبون بن سربن د نسب شجره

میانه



دتوموري ښاغ خانان دېر و اکخاوندان دي بابر د نورو پښتني قبيلو په نسبت ډېر نيك اوښه چلند لري .

دکابل پاچاسدوزي تيمورشاه په وخت کې د بابړو دښاغ سردار ته دامين الملك منصب ورکړای شو .

هغه بابړ چې په اوارو سيمو کې او سيږي د هغوی شمـــــير تقريباً شلورو زرو کـــور نيو ته رسيـــږي. ددوی زياته برخه د سليمان غره په هغه غاړه کې په صحرا يي سيمو کې اوسيږي چې ددوی پولې دشيرا نيو ملك سره نښتي دي .

دبابړو دود او د ستــــــــــــورد شيرا نيو په شان دي . ترهغو بابړو پر ته چې په حتيځ کې ميشته دي دلويديځ افغانستان په ځينو ځايونو کې هم دوی ليدل کيږي ، لکه څنګه چې د کندهار په ښار کې هم څو کوره او کند هار ته نږدې په سوزنی کې چې د ار غنداب په سيمې پوري تړلي ده هم د دوی څو کلي شته دي ، همداراز په کابل، لوګر او د نورې په دره کې په ځينو ځايو نو کې په زيـــا تشمير او په ځينې ځا يو نو کې په نم شمير ميشته دي . له هغو مختلفو روايا تو څخه چې تر او سه لاس ته راغلي داسي اټکل کيدای شي چې هغه بابړ چې په لويديځ افغا نستان کې په حواره واره ډول ژوند نوی دهغوی شمير د پنځـــــــه سوو کورنيو نه زيات نه دي . څو د هغـــوی د و د اودستور دختيځو بابړو سره ورنه ندي . د دوی اړيکې يوازې ددې امله دي چې په يوه ښاغ پورې تړلي دي .

**دهر يپال ښاغ :**

هريپال دشيراني لمسی واودکيږيا کپ زی ښاغ چې دودم له نسل څخه دی هم په هر يپال ور کډيږی او ددوی دغر نيو سيمو ترڅنګ دګو مل دری سهيل ته دوا نه دسيمي په مقابل کې پراته دی. ددوی رواجو نه او دو داو دستورد شيرا نيو په شان دی .هريپال ډير بې ازاره خلك دی .

**دجلواني ښاغ :**

دا ښاغ هم د شيراني د نسل څخه دی چې د شيرا نيو دغرو نيو سيمو ترڅنګ سيمو کې ميشته دی څود هغـــوی معصل حال ترلاسه نه شوداسې ويل کيږي چې د هندوستان په ځينو ځينوځا يو نو کې هم دجلوا نی ښاغ شته دی ، خود شمير دلږ والی له کبله دافغا نستان دمقتد روبباحو نو له جملې نه شميرل کيږي .

## میانه قبیله :

دد غی قبیلی دنسب‌شجره ترحفه ځا یه چی ومو ندل شوه په پور تنی جدول کی راغلی ده ، خوږه مجموعی‌ډول دغه قبیله په کوم خاص ځای کی استو گنه نلری ، بلکی په خواره واره ډول ژوند کوی‌او ددوی د لږوالی په سبب په ا فغا نستان کی یی نوم‌چندان شهرت نلری . د توغ ښاخ‌یی‌د ښکیتو په سیمه کی اوله‌پاتی ښا خونونه یی ځینی دکندهار په شاو ـ خواکی اوسیږی .

د شکوڼ له اولادی نه د کتران‌ښاخ یو شمیر ډ گرانك په سیمه کـی میشته دی . . یو ه پوه سړی د بیان‌له مخی حضرت سلیمان چشتی (رح) چی مزار یی ددیره‌غازی خان د ضلعی‌په توسه نومی‌ځای کی دی ددغـــی قبیلی‌څخه و.دغرشین په باب داسی روایت شوی دی چی نوموړی د میانه له نسل څخه نه و،بلکی د یوی بلی‌نجیبی او سیدی کور نی نه وچی له، گوښیوا لی نه میانه روزلی اود غرشین ښاخ د ده له نسله څخه دی .

## غرشین :

د غر شین دتسمیی دوجی نه داسی معلومیږی چی د دو ی نیکه یـو دیر متلی اوخدای دوسته سړی‌و چی‌د خپلی دعا په سبب یی یو وچ غـر شین کړ. څرنگه چی دپښتوپه‌ژ بـه کی دده نوم له دوو کلمو غر اوشین نه مرکب شوی دی نو دغه نوم د ده په کرامت دلالت کوی. دغرشین ښاخ اکثره خلك دلو یدیځ افغـا نستا ند کندهار په غرنیو سیمو کی میشته دی او دوی ته خلك په ‌درنه‌سترگه گوری . دنو موړی ښاخ څو کورونه د راو لپند ی ضلعی دبرها نعلاقی‌په شین نومی ځای کی اوسیږی . لـــه دوی نه خدا ی بخښلی لعل شاه یـو دیر متلی او ښه سړی ؤ .

## د بریڅو قبیله :

دغه قبیله اکثرا په ښـورا وك(شورابك)کي ژوندکوی .د دی‌سیمی خلور خواوی په دی ډول دی . قطب‌ته ددرانیو ملك،سهیل ته یی‌دبراهو بی بلوڅو غرنی سیمه ، ختیځ ته یی دخوجه عمران غراولویدیځ ته یی صحرا او بیا بانی سیمه پرته ده چی ددغوحدودو په منځ‌کی دښوراوك سیمه تقریبا د شپیتو مربع میلـــــــــــوپه پرا خوالی‌پر ته ده .ددغه سیمی

## د بریڅ ابن شرخبون د نسب شجره



جنوب لوید یخ ته بلوڅان پراته دی‌اود لوړی توی دښوراوك دسیمی‌په منځ کی بهیږی چی له اوبو څخه یی ددغسی سیمی د وارو غارو ځمکی تر لیری ځایو‌نو پوری خړوبیږی او دغه ځای ته نژدی‌میوه‌لرونکی او بی‌میوی ونی هم شته دی پاتی سیمه یـــی سختی خا وری لمخه جوړی او یواوار اوروچ میدان دی .

د ښوراوك د سیمی د اوسیدونکوشمیر تقریبا دری زره کـــور - نیو ته رسیږی . که څه هم د بړیڅو قبیله په لوموړی‌سر کی‌په ووښاخو- نوویشل شوی ده او وروسته نه دغوښاخونو نه لکه څنګه چی د نسب‌په شجره کی را غلی دی نوری فرعی‌څانګی هم‌منځ ته راځی ،خو د بړ - یڅو څلور تپی‌مشهوری اوهره یوه‌تپه‌ځانته جلاخان لری چی هغه په‌خپل ښاخ کی د ډیر واك او اختیار څښتن‌دی ، خود کندهار حاکم‌ته یوازی‌تش په نامه‌خراج ور کوی. دوی په لومړی‌سرکی (۴۰۰) سپاره دخراج په‌ځای منلی ؤ ، خو اوس دغه دود له مینځه تللی دی .

دوی ډیراوښان ساتی‌اود سورلی له پاره هم ورځنی استفاده کوی . د اوښان نه پرته له نورو بوده کانو نه په یوی کی لږه ګټه ایسلی. دوی په یو ډول خېږ وکی ژوند کوی‌چی په خپله ژبه ورته کوډله وایی دغه کوډلی په ګرد ډول چی پور تنی‌برخه یی اواره‌وی جوړوی ،خوشتمن خلك خپل کورونه په مسقف ډول جوړوی چی بالا خانی‌ته ورته او یوازی یوه کو ته لری . د پسرلی په موسم کی ټول خلك چی د او ښانو او نورو حیوا ناتو رمی ور سره وی په دښتوکی په کیږ دیو کی ژوند کوی . ددغو خلکو دود او دستوراو پوښاك دډیروغیر متمدنو درانیو سره ورته والی لری. دوی د اوښان او اسانو غوښی‌خوری . بړیڅ ډیر ساده اوبی ازا ره خلك‌دی ، که څه هم دغه قبیلـه په مجموعی ډول په ښوراوك کی‌اوسیږی خو په هندو ستان کی هم د دوی څوکوره شته دی‌اوځنی نوریی د هلمند سیند پرغاړه د پلالك اورود بار ویالو پرغاړه‌چی سیستان‌ته نږدی‌دی‌پر- تی‌دی ژوند کوی . همدارازد دوی‌څوکورنی‌په قلعهٔ بست کی او سیږی‌او بست د هلمند سیند پر ختیځه غاړه پروت دی ، چی له هغه څخه دوه‌میله ښکته د ار غندا ب سیند د هلمند دسیند سره یو ځای کیږی .په دغه‌ځای کی دډیرو پخوا نیو زمانو پخی ودانی‌چی دخپلی دو ری د عظمت ښـــکا - رندوی دی ، تر او سه هم موجو دی‌دی او داسی روایت شته چـــی دغه

ودانی د سلطان محمود دلښکروڅاوڼی‌وه او پخپله پاچاهم د ژمی په موسم کې په دغه ځای کی اوسیده ددغی و دانی په ځینو ځایونو کی په کوفی رسم الخط داسلام دسپیڅلی دین کلمه او نور عبارات لیکل شوی دی .

په کلای بست کی ډیری ښې هند وانی چی میر ملنګی اوشهیدی‌نو ـ میږی مشهوری دی . همدا راز ددغه ځای انګور هم ډیر شهرت لری . په قلعهٔ بست کی د اسلم خان د زوی فتح خان بریخ کیسه په پښتنو کی ډیره مشهوره اوپه حجروکی ویل کیږی . دغه کیسه ځینو پښتنو په نظم کښلی ده چی ما لیدلی او ژباړلی‌می‌هم ده خو څرنګه چی ځینی مز خرفی او بیهوده‌جملی‌پکی‌وی‌نو ځکه می‌دلته دهغه دلیکلو نه ډډه وکړه ، خو دومره باید وویل شی چی فتح خان دخپل کوره خپه او د خو تنو دوستا نو او ملګرو سره د هندو ستان خوا ته‌راغی اود اکبر پاچا د زوی جهانګیرد واکمنی په وخت کی د سیا لکوټ په‌شاو خوا کی په لوټماری بوخت شو

هغه په‌پای‌کی دپاچا دنوکرانو له خوا ووژل شو ، څرنګه چی ده په ډیری زړورتیا سره دشاهی پوځ مقابله وکړه او هم ځکه چی په مساپری کی ووژل شو ، نو ځکه یې په کیسی‌کی‌ترا ژیدی اوله سوز او ګدازه ډکی جملی لیکل شو یدی . دا کیسه دپښتنو په مجلسو نواو محفلونو کی دساز او سرود سره یوځای ویل‌کیږی او نوز پښتانه یې په ډیر شوق سره اوری . اوس په کلای بست‌کی دبریخانو مشر ارباب اوز بك نو ـ میږی چی ډیرمیلمه پالو نکی اودښواخلا قوخا وند دی ، خواوس په قلعهٔ بست کی د درانیانو سلطه ټینګه ده .

## د اور مړ قبیله :

جوته ده چی د اور مړ پلار امرالدین د شر خبون له پنځو زامنو نه کوچنی و . ده یو زوی در لود چی اور مړ نو میده‌چی قبیله یې هم دده‌په نوم نو مولی شوی ده او تراوسه هم په‌دغه نامه بلل‌کیږی. دده په باب داسی ویل کیږی چی د اورمړ زوی چی په کوم ځای‌کی پیداشوی دهمدغه ځای نوم یې ورباندی ایښی اوپه یوه منظومه‌شجره چی میا عمرڅمکنی و یلی ده په هغه کی اور مړ ته شل زامن منسوبوی چی په دی ډول دی.

۱ ـ سنګتوی ۲ ـ منتوی ۳ـ مشکور ٤ ـ شکتوی ٥ ـ زیق ٦ ـ مشوی۷ـ جلو یان ۸ ـ دهری ۹ ـ ګانی ګروم ۱۰ ـ حران ۱۱ ـ کو ئیـخ ۱۲ ـ خصران ۱۳ ـ رنګ ١٤ ـ دانجـا ١٥ ـ ملانی ١٦ ـ سیداقی خان ١٧ـ دوتو می ۱۸ـ سین ۱۹ـخلیل ۲۰ـ بوکی .

ددوي استوګنې سيمه د سليمان‌دغره هغه برخه وه چې اوسن په ګـې دمسعودو او وزيرو قبيلې اوسيږي. د کانې ګورم ښار چې د وزيـرو او مسعودد بدر په علاقه کې پر وت دې‌هغه د اور مړو له خوا جوړ شوی دی چې اوس هم داور مړ پنځه ښاخه په کانې ګورم کې پـــه دې ډول او ـ سيږ ي . خيکنې شپيته کــوره ، خرم چانې شلوپښت کوره ، ملا تا نې شپيته نوره ، بيډنې دوه‌سوه‌کوره‌او جرانې شل کوره چې ټول لــه در و سوواتيا ياشلوروسوو کورو ترمنځ په خپل پخوانې تاټو بې کې اوسيږ ي . پاتې کسان تقريباً د پنځه سوو کالوراپه دې خوا د قحطې اوورسته بياد وزيرو قبيلې دغلبې له امله دغه ځايه لو هګر (لوګر) ته چې د کا بـل سهيل ته پروت دی ولیږ دیـد ل او هلته ميشته شول چې تر اوسه هم دلو ګر دعلاقې دبرکی برك په سيمه کې اکثراً خلك اور مـړ دي .

د پيښور په سيمه کې د اور مړوځينې کلې شته دي، همدا راز په هندو ستان کې هم ځينې اور مړ پـه خواره واره ډول اوسيږي . څرنګـه چې دغه قبيله په افغانستان کې هم‌په تيت او پرك ډول ژو ند کوي نـو ځکه دوی ډير کم زوري دي ، له ټولو پښتنې قبيلو څخه دو ی غر يـب مګر د ښې روېې خاوندان دي ، په دو ي کې دغلا او لاره وهنې‌عادات بيخې‌نه ليدل کيږي .

د لو ګر اورمړ اکثراً د کرنې په چارو بوخت‌دی ، هغه اورمـړ چې‌په پيښور کې اوسيږي په تجارت او کرنې لګيادي، دکانې ګرم اور مړد ټر ـ نې او لرګيو دخر څولو له لارې خپله ګوزاره کوي ، خو دوی غريب او بسې پيسو اود وزيرو او مسعود وقبيلې‌تابعت يې منلی دی .

دلوهګر (لوګر) اوکانې ګرم اورمړ په خپلو منځوکې په‌اور مړي ژبه رغيږي چې هغه دپښتو هندي‌اوپارسي او نورو ژبو د يوځاى کيدوڅخه جوړه شوی‌ده ، ددې امکان شته چې‌دپښتو په شان ددغه ژبې په باب‌هم څوك داادعاوکړي چې دغه ژبه دکوم‌پيغمبر اويا پاچادرازونو د بيانو ـ لو له پاره منځ ته راغلې وه .

## د پير تاريك كيسه * :

په دغه قبيلې کې د پير تا ريك کيسه دليکلو وړ ده . اخوند درويزه (رح) د پيرتاريك په باب داســـې‌ليکلي دي چې :

« دکانې ګروم په اورمړو کې عبدالله ډير باد يانت ا نسان ؤ او کله

* نو موړی باېز يدپه ډير وپښتنې‌سيموکې د پير رو ښان په نا مه ياد يږي دهه په بـــــــاب د تعليقا تو برخه وګوري .

چې د هغه زوی پیدا شو بایزید نوم یې ور باندی کیښود ، بایزید دخپل پلار تر پاملر ېی لاندی د علم زده کړه کوله اوپه عبادت او اطاعت ــــی مشهورو . ترهغه وروسته چې یوڅه پیسی یې لاس ته راوړی نود اسانود تجارت له پاره سمر قند تــه لاړ اوهلته یې دوه اسان وا حیستل اوهند ته راغی کله چې کالنجرته راورسید ه د ملاسلیمان سره یې لیدنه او کتنه وکړه اود هغه څخه یې د تناسخ په باب معلومات تر لاسه کړل اوپه دغه باندې یې یقین او عقیده ټینګه شوه کله چې بایزید د کالنجر نه بیرـ ته کانی ګرم نه راغی ، نود خپلــې تنا سخی عقیدی له مخې یې په مذ هبی فساد ونو لاس پوری کړ .او څنګه چې پلار یې عبدالله ډیر متدین سړی و، ددغه بدعت له کبله یې خپل زوی بایزید تېپی کړاو بایزید له هغه ځاـ یه ننګرهار ته راغی او هلته دمومندوپه سیمه کې د سلطان احمد په کورکې یې استو ګنه غوره کړه . خو د ننګرهار خلکود خپلو عالمانو د تبلیغ له کبله د هغه پیروی او ا طاعت ونــه مانه کله چې دی هلته پخپل مقصد کې بریالی نشو نو پیښورته راغی اود غور یا خیلو په منځ کې اوسیــده خو څنګه چې په دغه وخت کې افغــانان د علم څخه په زیاته اندازه نه و بی خور داره شوی ، نو اکثراً د ده دطر یقی پیروان شول . ده د پیــر ی او مریدی یوه سلسله رامنځ ته کړه اود خلکو تر منځ به یې داســــی تبلیغ کاوه چې خدای ته رسیــدل دپیر کامل د موجود یت نه پرته امکان نه لری ، څنګه چې زه پیر کا مل یم نو تاسی ته لارښوونه او هدایت کوم . ده د خپل دغه چل ول په ذریعه ډیر خلك خپل کړل اود شهوت پر ستا نو د خوښی له پاره یې نا محر مو سړیو او ښځو ته په یوه ځای کی داوسیدـ لو او خوړ لو اجازه ورکړه ده به چې څه ویل مریدانو به یې هما غسی کول اود شریعت او ملت په خلاف به یې کاروونه سرته رسول لوداسی فکرـې نشو کولای چې ویلی یې دی .

محال است سعدی که راه صفــــــا

توان رفت جز درپــــــــی مصطفــی

لنډه داچې دخلیلوقبیلی ا کثره خلك ددهٔ مریدان شول ،دی وروسته د ا شنغر محمد زیو ته ورغی اوهلته یې هم همدغه ډول تبلیغ وکړ خو نګه چې افغانان ناپوه وو نوځکه دده په تبلیغاتو و غولیدل او هغه یې و منل پــه اشنغر کې نو موړ ی ډیر رسوخ اوا عتبار وموند اوغوښتل یې چې محمدی (ص) ددین له عالما نو سره مبــــا حثی او مشا جری وکړی .

اخوند درویزه چې په دغه وخت کې یو لوی عالم و له ده سره مباحثه و کړه او ور پاندې بریالی شو ، خودخپلو مرید نو دملاتړ له امله یې اخوند درویزه هیڅ ډول نصیحت ونه ما نه او ځان ته یې د پیر روښان لقب غوره کړ . مګر د خپلو مریدا نونه پرته په عواموکې دپیر تاریک په نامه مشهور شو . په پای کې کله چې ددغه پیښې خبر د کابل صوبدار

محسن خان ته چې داکبر پاچا لخوا د دغه ځای حکمران تا کل شـوی ؤ ورسیده نوهغه په اشنغر باندې یرغل وکړ، پیرروښان یې ونیوه اوله ځان

سره یې کابل ته راوست . څه مـوده یې هلته په بند کې تیره کړه او کله چې خوشې شو بیرته اشنغر ته لاړ او خپل یاران اومریدان یې راټول او د نوتې غره ته لاړ اودهغه ځا یه بیرته راغی اوپه اړ یـدو او اور ـ کزیو کې یې هم مریدانو موندل ،په دغه وخت کې یې خپل فعا لیت ښکاره

اود اکبر پاچا پر ضد یې په بغا وت لاس پوری کړ او خلک یې بلوا تـه هخول اود دوی په منځ کې به یـې تبلیغ کاوه چې مغول ډیر ظالمـــان او په افغانا نو پاندې یې له حده زیات ظلم کړی نو ځکه د هغوی اطاعت په کار نه دی .

ددغه لار ښود د تبلیغ او وعظ په سبب ډیر و سر حدی ، قبا یلو په بغاوت لاس پوری کړ اوډیر لوی فساد ونه را منځ ته شول ، پیر تاریک

اود هغه ملګرو و کړای شول په لومړی ځل شاهي لښکری ما تې کړي چې ددغه بریا لیتوب له ا مله دوی ډیر زیات تقویه شول او دوی د بیرا

خلک چې ظاهراً د دوی تا بع او په با طن کې د مغلو طرفدار او خیر خو ـ له وو اکثره یې د فریب اوچل په ذ ریعه وو ژل او ځنی یې ددغه ملک څخه، وشړل اوپه تیرا کې یې خپل پلویان اومر یدان میشته کړل. پیر تار یک

یو کتاب ولیکه او خیرالبیان نوم یې ور باندې کیښود او داورګز یواو داپر ـ ید یو نه یې یو لوی لښکر جوړ اوپه ننګرهار باندې یې یرغل وکړ .

دلته یې ډیر کلی لوټ او دننګرهار په غرونو کې میشته شول. دکابـل صو بدار محسن خان له جلال آباد نه په ده باندې شبخون وکړ اوپه هغه،

---

* نه د کابل په حکمرا نا نوکې محسن خان سته اونه دبایزید اور ـ مرد ژوند په زمانه کې کابل داکبر مغل ( ۹٦۳ ـ ۱۰۱٤ هـ .ق) ترلاس لاندې و. په کابل کې تر ۹۹٤هـ.ق کاله پو ری د همایون کشر زو ی حکیم میرزا پا چهي کو له او شـوکاله دده له خوا معصوم خـــان دپیښور حاکم و. (رشاد)

چېرې کې چې ددوی تر منځ پېښې شوې د پیر تاریک لښکرې ماتې، ځینې یې ووژل شول او ځینې یې هم ډېرو سختو او صعب العبور و غرونو ته وتښتېدل ، پیر تاریک پیر ته اشنغر ته ستون او هلته مړ شو.

پیر تاریک پنځه زامن لرل لومړی شیخ عمر ، دویم نورالدین، دریم خیر الدین، څلورم کمال الدین ،پنځم جلال الدین *، د پلار تر مړینې وروسته دده زوی شیخ عمرد نوموړي ځای ونیوه او بایزید چې څومره مریدان او پلویان درلودل هغه ټول په شیخ عمر را ټول شول څه موده وروسته ددوی او یوسفزیو تر منځ چې یوسف یو مشر او لار ښود اخوند درویزه و خصومت پیدا شو او یوسفزي دسندرود په غاړه سره را ټول او په خپلو دښمنانو یې یرغل وکړ په دغه جګړه کې شیخ عمر او د هغه ورور خیر الدین له هغه ځایه وښتېدل او په اشنغر یې دګو جرولاس ته ورغلل او هغوی ووژل ، جلال الدین هم یو سفزیو ونیوه ، خو کله چې اکبر له دغو پیښو څخه خبر شو هغه یې له خپلو ټولو خپلوا نو سره د یوسفزیو نه خلاص کړ او جلال الدین چې جلا له هم ورته ویل کېږي د تیرا غرونو ته راغی او حپل پلار ټی ناروانه یې پیلاو په لوټ لارو هنو او د حلمو په زور ویو یې پیل وکړ . په دغه وخت کې دراجا مان سنګ او د نورو خو ښو شاهي امیرا نو په مشری غرونو ته لښکری واستول شوی تر څو جلاله ونه وی خو هغه یو داسې مشهور غل و چې تر ډېری مودې پورې یې په سر حدې سیمو کسی فسادو نه رامنځ ته کول .

په دغه وخت کې د تایلاو پېښور تر منځ لاره هیڅکله په امن کې نه وه، دده ورور کمال الدین ونیول شو او اکبر پاچا دی ، د مرګ تر ور ځې پورې په زندان کې بندی و ساته تر څو چېرو ورو مسته کله چې راجامان سنګ ترډیرو سیری ځا یونو پورې جلاله په غرونو کې تعقیب کړ ، نو هغه د عرنیو په خوار ښتېده او هغه دهزاره قوم له خوا ووژل شواو سر یې د اکبر پاچا در بارته راولېږل شو ، د جلاله تر مړینې وروسته دده ځای دشیخ عمر زوی احداد چې د بایزید لمسی وو نیوه او هغه هم ډېر فسادونه او بغاوتونه منځ ته را وړل . په پای کې دډیرو زیاتو نقصانو نو ترر عملو وروسته دشاه جهان پاچا په وخت کې یې دخپل عمل سزا ولیده . په دغه وخت کې د دوی مریدان په دغه خبره و پو هیدل چې د دوی پیرد او مریدی د سرومال له زیان نه پر ته بله نومه ګټه نه لری .داحداد میرمن ډیره زړه وره او باتد بیره ښځه وه ، ددغه کیسې څخه ښکاری

---

* د بایزید اور مړ شپږم زوی هم چې الهداد نومیده او د دنی (اشنغری محمد زی ) له نسه و .

اووم زوی یې دولت نومیده، دتوری ادی له نسه و .

## د سربن د دویم زوی خرشبون د نسب شجره



## د اتمانزي بن مندړ د نسب شجره




* دی هم شیخ ملی دی چې په لومړي سر کې یې خپل مقبوضه ملک په ټولو یوسفزیو ویشلی و او د هغه د ویش په سبب تر اوسه پورې ملګ د شیخ ملي دفتر بولي

## د اتمان د دویم زوی کنازی د نسب شجره




## د اتمان د دریم زوی علی زی د نسب شجره



چې ساده افغانان ډیر ژر ددرواغجنو او مکارو پیرانو په ذریعه غولیږي
داتك د ښلا په محاذ کې د اباسین رود په لو یدیځه څنډه چیرته چې په
اتك کې کنبتی تګ راتګ کوي هلته یو خطر ناك ځای دی چې په دغه ځای
کې د تیرو سره د کنبتي د ټکر یدواوماتیدو امکان شته چې دغه ځای ته
خلك جلالیه او کما لیه وايي ، ددغه ځای د تسمیې وجه داده چې یوکال
اکبر پاچا د هندو ستان نه دکابل په نیت روان شوی و او کله چې داتك
نه راتیر شو هغه لنبتي چې په کې خزانه باروه د هغه تیرې سره
ټکر او ماته شوه او ټوله خزانه په دریاب کې ډوبه شوه. په دغه وخت
کې اکبر پاچا په خندا سره وویل چې دغه تیرې زمونږ له پاره دجلاله
او کماله په شان غلي او لوټماری شوی چې مقصد یې دبایزید اودمړو
زامنو جلاله او کماله څخه و.

## داتمان زی قبیلي په باب یادونه :

داتمان دسیمې دتسمیې وجه یوازې داتمان داولادې د اوسیدوله امله
ده .

که څه هم اتمان ددوو میر منـو اوس یوازې ددریو زامنو اولاده یعنی
دنسب په شجره کې راغلي دي، خو څخه څلور زامن لرل لکه څنګه چې
اکازی ، کنازی اوعلیز ی دخپل نیکه په نامه اتمان زی بلل کیږي. دسدو
اولاده که څه هم په اتمان ورګډیږي مګر ځان ته یې بیل نوم غوره کړی دی.

اتمان زی دیو سفزیو دسیمې پـه ختیځو برخو کې داباسین رود پـه
غاړه اود مهابن دغره په سهیلي لمنو کې پرا ته دي .داتمانزی قبیلي دری
واړه ښاخونه دشیخ ملي د ویش په اساس برابری پلرنی ، برخی لری.
چې دری واړه ښاخونه په برابرډول دخپل نیکه ځمکې کری او ور څخـه
استفاده کوي . داتمان په نوم سیمه کې (٤١) برخي دي چې له هغـو
څخه ( ١٣ ) برخي په اتمان زیـو پوری مربوطي دي، چې ترټولو لوی
کلي یې دکوهاری په علاقه کې توپي، مینې اوکوتهیه نومیږ ی . دکوهاری
علاقې څخه بهر دکهبل په سیمه کې داباسین رود په لویدیځه څنډه تور-
بیلی ته مخامخ کلي ډیره ښه هـوا لري، په مهابن کې هم ځیني وړي وړی
بانډې شته . دعلیزیو له قبیلي څخه دطاهر خیلي ښاخ دګند ګهر دسیمې
په ګهړی او مررو کې په خواره واره ډول اوسیږ ی . د هزاره ضلعـې
دکهلابټ په سیمه کې دسید خا نـې ښاخ اوسیږي اوپاتې علیزی او نورپه

تور بیله او نورو نږدی کلیو کــی اوسیږی ، او دیوی اندازی ځمکــی خاوندان دی، اوس طاهر خیلــــی غلام محی الدین او سید خانی میرزمان

خان او دکهیا خیل کنازی فضل خا ن ډیر مځوراو دشتو خاوندان دی ، خو دفضل خان نه پرته پاتی دوه تنــه پخپله سیمه کی ډیر واك خاوندان نه دی .

## دسدوزي داولادي اتمان د شجری په باب یادښت :

لکه چی دسب په شجره کــی راغلی دی له هغه نه جو تیږی چی سدو هم دانمان زوی واود ویش په وخت کی نیمه برخه سد وته اودویمه نیمایی یی داتمان دریو نورو زامنــو ته چی دیوی مورنه وو ، ور پــه برخه شول. داتمان زیو نه د ســد واولاده په لویدیځه برخه کی پراتــه دی . دزلوزی د ښاخ څخه دابا خیلو په ځانګه کی درانا خیلو کور نــی دزیده او هنډ لی خانان دی ، دزیده او سیدونی ار سله خان (ارسلاخان) دسکاو، په وخت کی د اتما ن پــه سیمه کی یوډ یر مشهور او بااقتداره خان تیرشوی دی چی دده لمســـی ابراهیم خان اوس هم د زیدی خــان دی ، دهنډ لی خان شهدا دخان د ی چی له ده سره مخالفت لری.

دهنډ او زیده کورنی هم په خپلو منځو کی کلکی دښمنی لری لــه دوی نه پرته دهری کورنی په منځ کی په لویه پیمانه دښمنی او اختلا فو نه شته ، عمر خیل دمانیری په صوا بی کی اوسیږی . ددری زی له ښاخ نه میر احمدخیل په مرغه او تهنډ او ځینی په سلیم خان او ګار مناره کی اوسیږ ی، بیزادخیل په کهلا بټ کی او خدو خیل زیاتره د انګریزی سر کار له سیمی څخه بهر دپنج تار په دره او چکلی لی پراته دی او دسر کــار سیمی په دننه کی باجه بام خیل هم ددوی ملکیت دی، ددوتالی اوسیدونکی خدو خیل زیاتره دانګریزی سر کا رسیمو ته نږدی په اواروا و دکرنــی په ور ځمکو کی استوګنه لری او ددوی دفسادو نو دمخنیوی له پــاره انګریزی سر کار ښه تدابیر نیو لــی دی .

دخدو خیلو له قبیلی څخه پــه پنج تارکی یوه ډیره پخوانی کور نی چی دعثمان خیلو ښاخ دبیرو خیلــو په ځانګی پوری تړلی ده ډیره دعزت خاوندہ کورنی ده. فتح خان او د ده زوی مقرب خان دپنج تار اوسیدونکی دډیرواك څښتن خان و مګر دمقرب خان دبی ځایه ظلم اوتیری په وجــه دده قبیلی او رعیت دی خپل دښمن وګانه اوله پنج تار څخه یی وشــاړه . ده اوس دباجه په سیمه کی چی د انګریزی سرکار په سیمه کی مو قعیـــت

# اتمان د دویمې میرمنې زوی سدوزی د نسب شجره

سدوزی

زلوزی — دری زی (دده د نسب شجره وروسته راځي)

زلوزی: اباخیل — عمرخیل

اباخیل: نصرت خیل — دولت خیل

دوی درې واړه د خپلې مور یعنې مرجانه خیلو په نامه بلل کیږي

دولت خیل: قاسم خیل — موتی خیل — براهیم خیل — دنیاخیل — سه صده

بودله خیل — عزیزخیل — ادین خیل

سعروف خیل — بره خانخیل

شرغه خیل — بره خان خیل — ځچي خیل — راو خیل

پاندو خیل — شهداد خیل — یعقوب خیل

هاشم خیل — حسن خیل — لعلو خیل

نصرت خیل: صنو خیل — اوسی خیل

اوسی خیل: بهلرخیل — طاوس خانی — آیب خیل — پنج پای

تاجو خیل — ذکریا خیل

رانا خیل * — بهلرخیل

اسوخیل — غالی خیل — دری تپي — منصورخیل — حفری خیل — بابو خیل

خگاخیل — مکاخیل — حسن خیل

## د عمرخیل بن زلوزی د نسب شجره

مائي خیل — بسوخیل — محمد خیل

محمد خیل: نیکنام خیل — بوخان خیل — خل خیل — میرخیل

مائي خیل: طاوس خانی — شمشه خیل — کرم خیل — شبیرزاد خیل

بسوخیل: مزید خیل — متی خیل — سلطان محمد خیل — رجوخیل — قمی خیل

* دا هغه کاله وهلني خانان دي چې په غوبناخ دي

لری پناه اخیستی ده . دی یو باغیرته ، ساده ، کینه کښ ۱ ورښتینی سړی
دی .

## د مندړ دتولی قبیلی په بـــا ب یادښت :

هر کنده ده چی دمندړ یا مندڼ داوسیدلو څلور ځایونه مشهور دی .
داتمان نامه تپه چی داتمان او لا د ه اتمانزی اوسدو زی په کی استوګنه
لری اوپه دغه تپی پوری څلور تعلقی ترلی دی، داتمان په لویدیځ کـــی
درزړو تپه پرته ده چی په هغه کی درزړ اولادی پنځه ښاخونه په پنځو
تعلقو کی میشته اومشهور دی .

درزړ دقبیلی په لویدیځ اوقطبی برخه سدهوم په سیمه کی درود په،
غاړه دامازی تپه میشته ده چی دری تعلقی لری دا ماز یو په لویدیځ کی
دکمال زیو تپه پرته ده چی په هغـــی کی دکشران زیو او مشران زیو دوی
تعلقی دی. دغه څـلورتپی دیوسفزیو دانګریز، ترلاس لاندی سیمه کـــی
پرتی دی چی د هغوی ملک سیمـــه ، میدان اویادمندړو دملک په نامه هم
یاد یږی . ددی نه پرته دچملی سیمه چی در زړو دتپی اوسد هوم ختیځ ته
څزه کی واقع ده اود مهابن په شمالی برخو کی هم د مندڼ اولاده استوګنه
لری چی دخدو خیل ، پنجتار اوچنګلی په شاو خواکی تسلط لری .

دیو سفزیو په پر ګنه کی دمندړ اولادی دمقبوضه ملک نه پر ته پنځمه
تپی دبایی ز ی ملکیت و. بایی زی په اصل کی دیوسفزیو یو ښاخ دی خو
دجهانګیر د واکمنی په وروستیـــو وختو اود شاه جهان دسلطنت په پیل
کی دختکو قبیلی دهغی تپی په زیاتی برخی قبضه وکړه خو د یو سفز یو
د قبیلی دبایزی ښاخ د بابوزی اوازی خیلو څانګی تراوسه هم په ځینو
ختیځو برخو باندی تسلط لری .دبایزی د تپی شمالی او ختیځی برخی داتمان
خیلو په قبضه کی د ی. چی وروسته به یی بیان وشی .

### یادښت:

دیوسف اولاده یعنی یوسفزی په یوه لویه غرنی سیمه کی په خوا ره
واره ډول ژوند کوی اوپه دغوځایونو باندی تسلط لری چی وروسته به په
مفصل ډول ددوی بیان را شی.

له بونیر نه ختیځ خواته په غرنیو سیمو کی دتنول غراو داګرور تـــر
سیمی پوری داباسین رود په غـــاړه په زیات شمیر دغیبی اولاده حسن زی
او مداخیل اکازی استوګنه لری .په بونیر او د هغه شاو خوا مر بو طـو
سیمو کی دموسی او مالی اولاده یعنی الیاس زی ، دولت زی ، نور ی نی او

چغرزی اوسیږی ، دسوات اود هغه شاو خوا سیمو کی دیوسف د زو ی اکوزی اولاده ژوند کو ی چی له هغوڅخه خوا جو زی ، با یـــی زی او رانی زی مشهور او پیژ نـــــدل شوی ښاخونه دی .

دخواجوزی له ښاخ څخه ملـی زی ددیر په پنج کوره کی اوسیږی ، د دیر دسیمی خان غزن خان نومیـــده او ډیر مشهور سړی وخو دده زامنو دهغه ځای ونشو نیولی. دیو سفزو په قبیله کی دری ډیری محتر می او درنی کورنی چی ډیر شته او نفـود لری موجوددی لومړی ددیر دملـی-

زیو کورنی دویم دابا خیلو بائیز ی کورنی چی دسوات دسیمی په تها نه کی اوسیږی دغی کورنی له پخوانـه په بایی زیو کی ډیرواك او عـز ت درلود ، ددغه کورنی نه اوس شاه نظرخان دتهابی اوسیدونکی، امیرالله خان دپنی اوسیدو نکی او خراسان خا ندشیر خا نه اوسیدونکی مشهور خلك دی ، خو ددوی واك او اعتبار دبـی اتفاقی په وجه دپخوا په شان نه دی

خو سره له دی هم په خپلو سیمو کی ډیر واك لری ٠ دموهراد غره اوسید ونکو کوچرو څخه د حیوانانو د څرځایو مالیه ددوی له خوا اخیستـــل کیږی چی کله کله په دغه باب پـه هغوی ظلم کوی ، دریم درانـــی ز ی ښاخ نه د علی زیو دازی خیلوخانکی څخه دالاډهند کورنی په کاچو کو کی اوسیږی .ددغه کورنی خانانو پخو اډیر اختیار لاره خو اوس یـــو از ی درانی زیو په شپږ زره اولس باند ی حکم لری ٠ اوس ددغی کور نی محبت خان سره له دی چی عمر یی کم دی خوډیر هوښیار او با تدبیره انسان د ی مکر دده تره شیردل خـــــــــا ن دده سره سخته تر بګنی لری .

ددوی څخه پرته په بونیر کـــی زید الله خان ، احمد خان ، عاصم خان او نور دخپلو خپلو قبیلو مشران د ی خو له دوی څخه یو یی هم د ډیرواك خاوندان نه دی.

## دیو سفزیو او مندړ قبیلی :

### ددغه قبیلو تاریخ :

څرنګه چی دنسب په شجره کـی لیکل شوی خرشبون دځړ بـن زو ی اودقیس عبدالرشید لمسئی و.خرشبون دری زامن لرل ٠ کند، جمند یازمند، او کاسی چی د وروستیو دوو بیان به وروسته راشی .

کند دوه زامن در لودل یو یی غری نو میده چی د هغه اولاده غوریا خیل نومیږی اود هغو بیان به وروستـه وشی ، دویم خشی یاشخی چی یوسفزی هغه په پښتو ژبه د څو خی په نامه یادوی ، چی دهغه اولادی څخه دغه قبیلی منځ ته راغلی دی ، داخو نددرویزه دقول له مخی چی په دغه قبیله

## دیوسفزی ابن مند دنسب شجره



# د رانی زئی ابن اکوزی د نسب شجره



کې یې ډیر وخت ژوند کړی او ډیر ماهر انسان و، داسې ویل کیږي چې دخشي لومړی میرمن مرجانه نومیده او مند اومك ددی زامن وو. مرجانې یوه خور لرله چې بسو نومیده خرنگه چې په خشي باندی مینه شوه نو دخپلې خور سره یې چل او خیانت وکړ اودده کور ته ورغله چې د ده له خیټې څخه یې دریم زوی وزیږیده او ترك نوم یې ور باندی کیښودچې دده نسل ته تر کلاني وا یي * ، داخوند درو یزه په کتاب کې دا هم لیکل شوی دی چې تر اوسه هم د ترکلاني په قبیله کې د ښځوغو لو ل ډیر رواج لری چې ښایي دا رواج به له نیکونو څخه دوی ته پاتې وي.

دمند له دوو زامنو څخه یې عمر ډیر بادیا نته انسان و چې هند ته په سفو ولاړ او د خپل وطن څخه یي دباند ې دیوی قریشي کورنی سره خپلوی وکړه ، چې دهغی ښځی نه یې دمندړ په نامه زوی وزیږ یده او داسې ویل کیږي چې عمر په هغه ملك کې له نړی نه سترگې پټې کړی. او ورور یې یو سف ور پسې ورغی اوغوښتل یې دخپل ورور کونده او اولادو نه خپل وطن ته بوزی خو هغی وفاداری ښځی دیوسف سره دتلو نه په دغه دلیل انکارو کړ چې دوروز کونده اودده مال په زور سره غصب کو ی او زما رضا په دی کې ده چې ددویم ځل له پاره نکاح ونکړم . یوسف دغه ښځه د ډیرو قسمو نو او وعدو په ذریعه دی ته راضي کړه چې له ده سره وطن ته لاړه شي او هلته کله چې ددی زوی مندړ ځوان شونو یوسف خپله لورده ته ور کړه چې اتمان اوعثمان دده له پښته دنیاته راغلل ، خو دویم زوی یې چې راز یاراجړ نومیده دده د دویمې میرمنی څخه دنیا ته راغي.

دیوسف له پنځو زامنو څخه یویي اور یانومیده چې ډیر کبر جن اومغرور انسان ونو ځکه په ځینو خلکو دی دبادی په نامه یا داوه چې له نسل څخه یې بادی خیل منځ ته ر اغلي دی، ویل کیږي چې په هغه وخت کې دافغانانو په منځ کې داسې رواج وچې زوی به یې د بلوغ سن ته ورسیده دپلرو نو جایداد به یې په خپل منځ کې سره ویشه، او مور او پلار ته به یې برابره برخه ورکوله، ددغه رواج په مطابق کله

---

* ددی تور ، رد دتعلیقا تو په برخه کې وگوری.

چې د یوسف زامنو غوښتل په خپل منځ کې جایداد سره ووېشي نو دمغوی مورهم دخپلې برخې د بېلولو غوښتنه وکړه په دغه وخت کې د یوسف نور زامن غلي ووچې بد بخته بادي خپل دذکر خواته اشاره وکړه اوورته ویې ویل . ته دا واخله ، چې د هغــه مور ده ته ښېرې وکړې او دده پـه حق کې یې داسې وویل چې خدای دې تاته له دیار لسو کسو څخه زیا ته اولاده نه در کوي . ا خوند درویزه دخپل عصر په حالاتو کې د دوی پـه باب لیکلي دي چې د هغـوی اولا ده تر اوسه له دیار لسو کسو څخه زیاته شوې نه ده او څو تنه چغر زي لــه دوی سره گډ شوي دي ، خو داوسنیو تحقیقاتو او څېړنو له مخې دده لـــه اولادونو څخه دیوه پته هم څر گنده شو ی نه ده او داسې گمان کیږ ي چې دهغه نسل به له منځه تللی وي. همدا راز ویل کیږي چې د یوسف زوی غیبي یو ولس اولا دو نه لر ل. یوه ورځ دمنډړ دآسانو گله مغولو لوټ کړه اود شاله خوا غیبي دخپله نه زامنو سره دلوټمار انو په تعقیب پسې روان شول او تر تولو مخکـې په هغو پسې ورسیدل او دهغه جگړې په نتیجه کې چې ددوی تر منځ پیښنه شوه داخوند درویزه په قول تو ل شهیدان شول او دوه زامن یې ژوندي پاتې شول چې یویې حسن نو میـد ه چې نسل یې دحسن زیو په نا مـه بلل کیږي اوبل یې یعقوب چې اولادې ته یې یعقوب زي وایي، کله چـې غیبي مړشو دهغه میرمن حاملــــــه ( امیند واره ) وه چې وروسته لـه هغې څخه یو زوی دنیا ته راغی ا وداکا نوم یې ورباندې کیښود چـــې د هغه اولاده اکا زي دي . د یوسف دپاتې تولو زامنو نو مونه د نسب په شجر ه کې څرگند دي .

## د یوسفزیو لومړنی استوگنځی :

اوس په دغو خلکو کې داسې څوك نه شته چې دخپل د استو گنې لــه لومړي ځای څخه باخبره وي ، کلــه چې له دوی څخه پوښتنه وشي دوی په ځواب کې وايي چې زمونږ نیکو نــه له غوره مرغه څخه راغلي د ي ،خو دانشي ویلای چې غوره مرغه دکو م ځای نوم دی یوازې دومره وایي چـې بنا یې په لویځ افغانستان ی بـــه د کوم ځای نوم وي، د ځینو څېړ نو څخه داسې څرگندیږ ي چې غـوړ ه مرغه دار غستان سین ته نـږ د ی د یوه ځای نوم دی چې د سور غر او غندان ترمنځ موقعیت لري او ښا یې هغه ځای به وي چې دلومړي و یـش په وخت کې دار غستان دویالې پـه شمول دغه قبیلې ته ور په بر خـه شوه.دمرغه نه مقصد چمن اود غوړ مقصد آباد اوشین دی . چې د دواړو کلمو معنی شین چمن دی . همدارنگه

یو دول غرنیو وابنو ته هم غوره وایی او دغه بوټی ښایی دمرغه په نامه کوم ځای کی را شین شوی وی او دنو موړی بوټی دز یاتوالی په سبب دغه ځای په غوره مرغه نومول شوی دی، چی اوس په دغه ځای کی لېبړ شمیر علیزی، درانی ، ادوزی اوغلجی توخی اوسیږی ، ځینی ناصر هم د گرمی په وخت کی هلته ځی . ددغه قبیلی د لومړنی استو گنځی په باب چی تراوسه کوم معلو مات تر لاسه شوی هغه په لاندی ډول دی .

کله چی افغانانو د کندهار دشاوخوا سیمی سره وویشلی نو د ترین دنسل دبرخی په منځ کی د کنـــداوز مند برخه وورورسید له نوځکه له ورونوځخه یو یی هم دیو بل ننگی اوملاتړ ته نشو رسیدلای، د ابادی په وجه دخشی قبیله چی یو سفـزی او مندړیی ښاخونه دی د غور یا خیلـو په پرتله ترینو ته لنډ دی اودهغوی برخه دار غستان ویاله وه ، چی هغه ویاله تر ینو ته نږدی وه اوددغـی ویالی په سر باندی دخشی قبیلی او ترینو ترمنځ شخړی پیدا اوپه پـای کی دغه شخړی دو ینو په تویو لـو بدلی شو ی. په دغه جگړو کی ترینو دخشی په قبیلی باندی بر یا لیتو ب ترلاسه کړچی ځینی خشی ووژل شول او پاتی یی له ملکه و شړل.د زمنـه او غوریا خیلو ځخه هیڅ څوك ددوی ملاتړ ته راو نه رسیدل په پای کی دخشی قبیلی خپل ورور غوریاخیـل ته پناه وروړه او هغوی ده ته یوه توته خرابه ځمکه ورکړه . ویـــل کیږی چی دکندهار په ځمکو کـــی د پسرلی په موسم کی دزیاتوورښتونو په سبب ډول ډول وابنه زر غونیږ ی او داوړی په موسم کی د گرمی پـــه پیل سره دغه وابنه وچ او تویږ ی او په دغو وښو باندی ټول کـــا ل حیوانات گوزاره کوی او خوری یی ، کله چی د اور ښت په موسم کـــی زیات بارانونه وشی نو سیلاب د غه وابنه له ځان سره وړی اور می او مالونه له سختیو سره مخامخ کیږی. له بده مرغه په هغه کال هم داورښت د زیاتوالی له امله دغوریا خیلـو مالونه او رمی دوښو دکموا لی لـــه امله دسختی سره مخامخ شول، نو په دغه وخت کی د بی همتی په سبب هغه ځمکه چی خشی ته یی وربخښلی ده په زوریی له دغه قبیلی ځخه واخیسته او دغه قبیله له هغه ځای ځخه هم وشړل شوه او په گاره نوشگی کی میشته شول .

دغه ځای دشت لوط ته نـږد ی دبلوچستان شمال ته پروت د ی ، دلوط دښته یوه لویه مالگینه دښته ده چی اوس دبلوڅانو په قبیله او دکلات ، دنصیر خان په لاس کی ده .

لنده داچي په هغه وخت کــــي يوسفزي ١ مندړ چي د خخي يا خشتي د قبيلي يوښاخ دی دوګړو شمير يې ډير لږ و ، څه موده وروسته يعني د څوارلسمی (ع) پيړی په پيل کــې چې له هغو نه تقريباً (٥٥٠) کالــه تيرېږي دغه قبيله له کاره اونوشکی څخه هم د کابل په لور رهی شوه .

د تر کلانيو او ګګيانيو نه پر ته چي هغه هم دخښي قبيلي ښاخونــه دی داتمان خيلو قبيله چي دکرراني يا کرلاني ښاخ دی د تاك او ګومــل ددر ى له لاری راروان او په دغــه قبيله کې ورګډ شول. دمحمد زيــو قبيله چي د زمند له نسل څخه د ی هغه هم له خپل پاتی زمند قبيلــی څخه ناراضه اوديوسفزيو سره دکابل په لور را روان شول او کله چــی ددغه ځای شاو خواته را ور سيد ل نوپه دغه ځای کی يې استو ګنــه غوره کړه اود ابو سعيد زوی ميرز االغ بيګ سره يې د تخت د کښيناستو په وخت ډيره مرسته وکــره او ددو ی په مرسته نو موړی د کابــل په تخت کښيناست .

ميرزا الغ بيګ په پيل کی په دغه قبيله ډير مهربان و او کله چــی ددغه قبيلي شمير او شتمني ز ياته شوه نود کبراو نا پوهی له کبلــه يې دميرزا الغ بيګ حکومت ته اهميت نه ور کاوه اودسر کښی اوبغاوتونو له پاره يې ملا وتړله او دکابــل اوسيدونکو ته يې په زيان رسو لو پيل و کړان تردی چي د ميرزا الــغ بيګ دخاصو ملا زما نوشته اومالونه هم ور څخه خوندی نه وواودسلطنت په خاص ديوان کی به يې هم بيهوده خبــــــرې کـــو لــــی ،په پا ی کی دکابل والي ددوی دبدو کړو وړو په سبب دی ته مجبور شوچي دهغوی شر لوته ملا وتړی . لــه بله پلوه په دغه وخت کی دمير ز االغ بيګ اختيارات او واك ز يات شوی او دخپلو هم قومو مغو لانو پــــه راتلو سره دده قدرت او زور زيــات شوی اونوريی ددوی کړه وړه ونشول زغملای ځکه يی دهغو ی د له منځــه وړلو له پاره په ځينو اقدا ما تو لاس پوری کړ په دغه ډول چي ديوسفزيو او ګګيا نيو تر منځ يې نفاق واچاوه اووروسته يې دګګيانيو او خپل پو ځ په ذريعه په دوی حمله وکړه اوله دوی څخه يې څوتنه ووژل او پاتــی يې دکابل د غرونو په درو کی خواره واره شول . په دغه وخت په نوموړی قبيله کی دری مشهور شيخان موجو د وو ، چي دوه يې سره ورونه وو چــې يو يې مداداو بل يې مدد نو ميدل ا وهغوی ديوسفزيو د قبيلي دعيسی زی له ښاخ څخه وو دريم يې شيخ عثمان نو ميده چي ملی زی و ، د دغو دريو په غيب ويلويي اعتبا ر وکړاو له دوی نه يې يو تن د پلی پلتن مشــر

وتاکه اود جګړی له پاره یې تیاری‌ونیوه دمیرزا پوځ چی ګګیا نی هم ورسره ملګری وو‌له دوی شخه سخته ماته وخوړه له‌دغه بر یالیتوب وروسته دوی زیات یاغي او خپل‌سری شول اوتل به له غرونو شخه راوتل او رعیت به یې لوټاوه .

دکابل حاکم دسولی نه پرته بله‌چاره ونه موند له . ده څو تنه سړی یوسفزیو ته وروا‌ستول اوددو ی‌ملکان یی را وغو ښتل او هغوی ته یې عزت و ر کړ او ساده افغانان‌دمیرزا په‌دغه چل و غولیدل او هر ه ورځ به یی له ده سره تګ راتګ کاوه ، یوه ورځ د میرزا په‌میلمستیا کی تقریباً دقام اته سوه تنه مشرانوچی ټول بې‌وسلې وو ګډ ون کړ ی‌وو، خوپه دوی کی یوه تن‌دمحمد زوی محمود نومیده اودچغرزی له ښاخ شخه وله ځان سره پټه یوه‌چړوکی راوړی وه کله چی دربار ته ورغلل اودمحمد زوی محمود دمیرزا بدنیتی و لید له ټوخپلو ملګروته یی وویل که‌ستاسی خوښه وي نو زه به‌میرزا ووژنم خوټولو دی له دغه کار شخه منع کړ او ورته یی وویل چی باید دنمك‌حق‌یی وساتی ښا یی دی‌له موږ سره بد ونه کړی . دجنګا په نامه یو سړی چی د یوسفز یو قبیلی د ګګیا نی له ښاخ شخه اودیوسفزیو اصلی دښمن و هغه دکابل حاکم میرزا ته‌داسی مشوره ور کړه‌چی په دومره زیات شمیر نفر په یوه ځای کی بی وسلي لاس ته‌راتلی‌نه شبی اودسولی په واسطه له دوی شخه هیڅ کله نشوخلاصیدای، دغه وخت باید غنیمت و شمیر ل شی او ټول ووژل شی اوپه دغه بدی مشوری نوموړی عمل و کړ ا و ټول یی ګرفتار اوپر ته له یوه تن‌نه چی ملك احمد نومیده‌د مقتولو ملکانو د وروستی غو ښتنی په‌سبب‌بچ پاتی شو او نور ټول یی یویو ووژل . ملك احمد ډیر ځوانمرده‌اود لوړ همت خاوند و ددغو اتو سو و ملکانو تروژلو وروسته پاتی‌یوسفزی‌او خشی دکابل دشاو خوا نه په‌ډیره بی وزلی حالت وشړل شول او د ننګر هارخواته وکوچید ل د ترکلانی ښاخ په لمغان یا لغمان کی میشته شول. څه موده وروسته د یوسفزیو او احمد زیو ترمنځ اختلاف پیدا شواوحصارك ته نږدی ددوواړو قبیلو تر منځ سخته جګړه پیښه شوه په پای‌کی‌یوسفزیو بریالیتوب تر لاسه کړ . تر دغی جګړی لږه موده ورو سته یوسفزی اومندړ هم دبیښور خواته وخوځیدل اود خیبر له لاری دغه ځای ته ور داخل شول . په هغه وخت‌کی د پیښور ښار له نن سره ډیر توپیر درلود ، هغه قبیلی چی اوس په دغه ځای باندی تسلط لری‌په هغه وخت کی په لوید یځ

افغانستان کې اوسېدل اود پېښور میدان او اواره سیمه او ور سره تړلې نورې سیمې دیوه دا سې قوم تر تسلط لاندې وې چې او س هلته هېڅ نشته او شړل شوي‌دي. د تر کلاني قبيله چې پخوا په لغمان کې اوسېده اوس د باجوړ په سیمه باندې قبضه لري ، گګيانی په باسول کې اوسېدل . خیبرې او بنګښ په هغه سیمه کې اوسېدل چې اوس هم هلته مېشته دي خو د کابل له ختیځو میداني سیمو څخه را نیولې دپېښور تر میدا ني سیمو هم دا راز د باجوړ یوه برخه دچهچه او هزاره علاقې اوله دغه ځا یه نورهم ختیځ خواته ددلا زاك په واك کې وې .

او له دې امله چې دلازاك د کرلاني قبيلي يو ښاخ دی‌په همدغه دليل ددوی د نسب شجره اود عروج‌او زوال لنډ بيان ددی برخی په څلورم باب کی ليکل‌شو ی د ی. په هغه وخت کی دغه ملك چی ددلازاكو قبيلی په حدود وکی اود هندو کش‌دغرونو ترمنځ دسند رود په دواړو غاړو کی پروت دی په هغه باندی‌دسوات ، پاچا حکم چلاوه او يو بل قوم په کی اوسېده چی په هغو ی باندی سلطان اويس سواتی حکومت کاوه .

دسلطان اويس نيکونه له پخوازمانو څخه ددغه ملك حکمرا نا نوو. کله چی يوسفزی د پېښور ختيځو سيمو ته را ورسېدل نود سفيد سنګ په نوم يوه ځای ته راغلل اوملکانو يی د جرګی په ډول د دلازاكو له قبيلی څخه دخپلی ګذاری‌له پاره‌ځمکه وغوښته دغی قبيلی هم‌دسخاوت له مخی يوه تو‌ته ځمکه ور کړ ه کله چی نوموړی قبيلی په هغه ځمکه کی مېشته شول نود‌شلمانی‌له قبيلی‌نه يی داوبو غوښتنه وکړه‌او کله چی هغوی داوبو له ور کولو نه ډډه‌وکړه نودهغوی سره يی په‌د ښمنی، لاس پوری کړ .

يوسفزی دوابی ته راغلل اوهلته‌مېشته شول اوپه دغه ځای‌کی يی دشلمانی له‌قبيلی سره چی له پخو اوختونو نه يی په اشنغر باندی‌سلطه ټينګه کړی وه . دجګړی له پاره‌تيارشول . په‌دغه جګړه کی‌د شلما نی قبيلی مشرچی خالو نومېده‌و وژل شو او نوموړی قبيله له اشنغر څخه وشړل شوه چی دغه شړل شوی‌خلك‌دسوات خواته ولېږ دېدل ، د سوات پاچا دوی ته د الادهند په‌سيمه کی د اوسېدلو له پاره ځای ورکړ .

ديوسفز يو قبيلی ته اشنغر څخه دهغی سيمی نه پرته دبا جوړسيمی هغه برخه هم په لاس ور غله چی‌ددلازاكو وه . په دغه وخت کی ديوسفز يو اودلا زاكو تر منځ‌دښمنی پيل شوه که څه هم ددغه دښمنی اصلی علت د ځمکی د نيولو له کبله وه خو ښکاره علت يی اخوند درويزه داسی ليکلی دی چی په هغه وخت کی‌د لازاك دمېره لښکر کوټ په سيمه

کې مېشته وو.

د مؤلف په وخت کې یې لنګر لوټ دکپوره ګهرې په نامه یاد اوه او یوسفزي په دغه وخت کې په اشنغر کې پراته وو، خو څنګه چې دلا زاک دمیره لنګر کوټ ځړ ځایو نه ونیول او ګله به چې د یوسفزیو رمې او مالونه دغو ځړځا یونو ته تلل نود لازا کو به لوټول او هم کله به چې د یوسفزیو کوم سړی دسودا ګرۍ له پاره ددوی سیمې ته ورته نو هغه به یې هم زوراوه لنډه داچې دوی تل ددلازاکو له لاسه په تنګ وو او ملک احمد خان چې په دغه وخت کې د یوسفزیو مندړو دقبیلې مشرو داسې پرېکړه وکړه چې باید ټول دخشي قبیلې په مرسته ددښمنې قبیلې سره په جګړه لاس پورې کړي. دمحمدزي قبیلې سره له دې چې یوسفزیو سره یې دښمني لرلې په دغه، وخت کې له یوسفزیو سره یو ځای شوه، په دغه وخت کې ملک احمد خان دوی ته په ننواتې ورغی اوهغوی هم له یوسفزیو سره مرسته ضروري کنه. همدا راز ګګیانې هم له دوی سره یو ځای شول او اتما نخیل له پیل نه ددوی سره یو ځای وو. دترکانیو نه پرته نور ټول خشي محمد ز یاواتمان خیل هم سره یو ځای ددلا زاکو جنګ ته ملاوتړله او هغه خوا ته روان شول، له بلې خواد لازاک هم چې پخپلو میړو باندې غره وود لنګر کوټ خواته را روان او ددوی تر منځ سخته جګړه پیل شوه او دغشو لګیدو په سبب زیات شمیر خشي ووژل شول په پای کې ددواړو خواوو تر منځ د تورو په ذریعه دیره کلکه جګړه وشوه او کله چې ددلا زاکو قبیلې مشر د زنګي زوی ووژل شو. په دغه وخت کې دلازاک له میدان نه وتښتیدل او د کابل یالنډې سین نه چې قطب خواته ددوی ملک و تو ل یوسفزیو ته په لاس ورغی ددې مقصد ترلاسه کولو وروسته دوی په د غه فکر کې شو ل چې سوات هم ونیسي اوددوی مشرانو ملک احمد او شیخ ملي په اجازه ټولو قبایلو په دې ا تفاق وکړ چې دسوات په لوري وخوځیږي او د شا کوټ درې ته نږدې یې خپله اردوګاه جوړه کړه.

دسوات خلک په هغه درې باندې راټول شول اولاره یې بنده کړه خو دنورو لارونه بې خبره وو. په یوه شپه کې یوسفزیو دښمن ته د فریب ور کولو نقشه او پلان جوړ کړ اوخپلو ښځو ته یې وویل چې دوې دې سندرې ووایي او په دغه سندرو کې دې دخپلو خلکو صفتو نه او دسوات خلکو هجوه (غندنه ) وکړي، کله چې سواتیان له دغې خبرې څخه باخبره شي نو سبا به د جنګ نیت وکړي کله چې سواتیا نو دغه سندرې واور یدلې نو پوه شول چې سبا به په دغه ځای کې جګړه پیښه

شتی اوه لنډ فکری په وجـه د دوی پاتی لښکری چی په نورو ځایو نـو کی پرتی وی هم په شا کوټ کــړا توی سوی او یوسفزیو دسپی په خوا په ډیره هوښیاری په یوه بلـه لاره دملاکنډ (ملکنډ) لخوا سوات ته ورننوتل . هره ورځ به له سواتیانو سره جنګیدل او وړاندی تګ به یـی کاوه ، دوی تدریجاً ددو لسو کا لو په موده کی ټول سوات ونیوه او د تالاش وادی هم ددوی لاس ته ورغله ،او سواتی سلطان اویس په خپـل ځان کی دمقابلی توان ونه لیده او دسوات نه دکافر ستان په لور روان شو او هلته یی دیوه نوی دولـت بنسټ کیښود چی تر څو نسله دده په اولاده کی په میراثی ډول پاتـی و. ددغو جګړو په تریخ کی د کابـل حکمران میرزا الغ بیک مړشو او خرنګه چی په لومړی برخه کی وویل شو ل دکابل سلطنت دبابر لاس ته ورغی.

بابر په (۱۵۱۹) عیسوی کال چی له هغه وخت نه تقریبـاً دری سوه څلویښت کاله تیر یږی په دغه قبیله یرغل وکړ په هغه ، وخـت کی دمیدان په سیمه کی یوسفـز ی او په سوات او بونیرکی یوسفزی او مندړ میشته وو ، په اشنغر کــی محمد زی په دوا به کی ګګیا نـی او دباجوړ په یوه برخه کی ترکلانی او په ختیځو غرنیو برخو کی اتمان خیل میشته وو . او دپیښور شاوخوا ته غوریا خیل اولږ دلا زاك هـــم اوسیدل .بابر دکابل څخه دانچـل له لاری باجوړ ته راغی او دغه ځای یی ونیوه او خواجه کلان یی حاکـم مقرر کړ او کله چی د ی په دی وپوهید چی دیوسفزیو پر قبیلی باندی لــه حملی څخه څه لاس ته نه راځی ددی له پاره چی دوی دحملی په وخت کی سختو غرونو ته تښتی ، نو ځکه دده دد ی خپلواکی قبیلی سره سولــه ووکړه . کله چی بابر سوات تــه ورسید ه نو دسلیمان زوی شاه منصور چی د یوسفز یو د قبیلی ملـك و او سلطان اویس سواتی دده هر کلــی ته راغلل او بابر دشاه منصور لـه لور سره واده وکړ . اودسوات دلو ندخوړ له لاری تر شهباز ګړی او اشنغر پوری سیمی دبابر ه لښکرو لخـوازیانمنی شوی .

بابر په خپل کتاب کی ددغو جګړو په باب لیکنی کړ ی او دغه جنګونه اوهم یی دشاه منصور له لور سر ه دواده تصدیق کړیدی . ددغو جګړو بیان ډیراوږ داو دلته یی لیکنــــه مناسبه نه بلل کیږی. تردغو فتوحاتو وروسته یوسفزیو په آرا مــی اوسو کالی سره خپل وخت تیـراوه ا و شیخ ملی چی ددغی قبیلی مشر او باتد بیره سړی وتولی نیــول شو ی سیمی یی په داسی ډول وویشلــی چی لومړی یی لوی تقسیمات و کړل،

داسی چی اشنغر یی‌محمد زیو تـــه ورکړ، ددی‌له پاره‌چی دوی‌د ننگرهار
نه دیرسمریو دجګړی په وخت کـــی‌چی د دلازاکو سره یی کـــړ ی وه ٠
دیوسفزیو سره مرسته کـړی وه ، دوا به یی ګکیانیو ته ورکړه چی تر
اوسه پوری هم هلته اوسیږی ،همدا راز دباجوړ یوه برخه هـم
دوی ته ور کړل شوه ، خوا و س‌یی‌لاس له هغه ځایه لنډ شوی دی ٠
پاتی ملك یوسفز یو او مندړو تـــه پر یښودل شو ، همدا راز په کورنیو
باندی د څمکو ویشل هم‌د شیخ‌ملـی‌له خوا ترسره شو چی هری کورنـی
ته دسړی په‌سر حق ور کړ شو چی‌تراوسه هم میراثی ځمکی دده‌دویش
په اساس تقسیمیږ ی. کله چی په‌دغه قبیله کی دمندړ دبهزاد خیلو
له ښاخ نه‌خان کجو سردار شو، نـــو هغه له ملك احمد شخه هم‌دز یـا ت
رسوخ اونفوذ خاوند شو او په خپلی‌قبیلی کی‌یی زیات اقتدار تر لاسـه
کړ . په دغه وخت کی شیر شـاه،همایون پاچا له هندو ستان څـخـه
شړلی او پخپله یی په هندوستا ن‌پاچا هی کوله . په دغه و خت کی
کجو خان په بغاوت لاس پوری کړاوهم دده د سر داری په وخت کی دده
قبیلی د غوریا خیلو له قبیلی سره‌چی خلیل مومند اوداودزی یی‌ښاخونه
دی دشیخ تپور په‌سیمه کی چی اوس‌یوازی تپور بلل کیږی سخته جګړ ه
پیښه شوه اوبر یالیتوب دیو سفزیوپه برخه شو . غوریا خیلو سختـه
ماتی وخوړه او ډیر زیا نونه یـــی‌ولیدل . شیخ تپور یوه پخوانـــی
کلاده چی دزړ ی‌نو شهری نه پورته پرته ده اوجګړه په هغه ځای کـــی
پیښه شوه چی هلته اوس د پوستی‌دفتردی . هغه غور یا خیل چـــی
یو سفز یو ته ژوند ی پـــــه لاس ورغلی وهغه یی دخپل شهرت له‌پاره
دمریانو په ډول په دوه ، دوه پیسوو‌پلورل .ددی ستری فتحی په نسبت
ددوی په کړوو ړ وکی زیات تغیـیرراغی او دکبر اوغرور له مخی یـــی
داکبر پاچا په زمانه کی په ښکا ره‌بغاوت لاس پوری کړ ، لو تمـار ی
اولارو هنه یی خپله دایمی دنـــده‌وګرځوله . ددغو بدو چارو له کبله
خدای (ج) لوړی په دوی با نـد ی‌دقحطی بلاناز له او ددوی نه یی‌ډیر
خلك ووژل ، ورپسی اکبر پاچا زین‌خان کوکه سره له نورو افسرانوچی
په لوړی برخه کی‌یی ذکر وشودیوه‌لوی لښکر سره په ( ۱۵۸٦ )عیسوی
کال کی ددغی قبیلی د تکو لو لـــه پاره ولیږه اپه لوړی حمله کــــی
بریالیتوب یوسفزیو ته ور په برخه‌شو اوراجا بیربل دنورو څو تنو نو-
میالیو ســـر دارانـــو او اوه ز ر ه‌تنو شاهی عسکر و سره و و ژ لا
شول ، خودویم ځل زین خان د کابل‌نه دکونړ او با جوړ له لاری پـــر
سوات حمله وکړه ، په باجو ړ کـــی‌یی شاهی تانه جوړه کړه او کله‌چی
دسوات ختیځی برخی ته ور سید ل‌نو دیوسفز یو قبیله د تری په‌دری

کی یو ځای اودده لاره یې و نیو له اوویې ګړای شول چې تقریبا د یوې میاشتې لپاره دلته لښکر ی تم کړی، خو بیا دفعتاً د اختر په ورځ چې د یوسفزیو د لښکرو اکثره غړی د حلوا خوړلو لپاره خپلو کورونو ته تللی وو، ددغې خبر ی اطلاع زین‌خان ته ورسیده. نوموړی له وخت نه ګټه واخیستله او سمدلاسه یې پردوی باندې وروډانګل په یوه برید سره له هغه سخت‌ځایه واوښت اود سوات سیمې ته ورننوت اودغه ځای یې‌ونیوه هغه یوسفزی چې غرونو ته ښتیدلی وو په هغو پسې یې شاهي سپکری ورولیږلې او له هغو نه ډیر کسان و نیول شول اوډیر غنیمتونه لاس ته ورغلل. زین خان په سوات کې دد مغار په نامه کلا جوړه او په دغه قبیله یې تسلط ټینګه کړ. اخوند درویزه چې د دغه مصیبت په وخت کې د نوموړی قبیلې سره و په خپل کتاب کې لیکلي دي:

« ددغې قبیلې نه هغه خلك چې غرونو ته وتښتیدل زه هم له دوی سره وم. هلته دشپې لخوا تر د ې اندازې سخت باران او واوره وشوه چې ترسهاره موږ ژوندا نه هیله نه لرله ددې سختۍ له کبله خلك دواورو نه په ډك غره کې تم کیدلای نه شول، نو ځکه یې ځانونه د شاهي پوځ سردار ته وسپارل »زین خان دغه خلك له غرونو نه راښکته او اشنغر او پیښور ته یې را وستل او په محمد زیو، ګګیا نیو او عوریا خیلو کې یې په خواره‌وار هوول سره میشته کړل، خو له دوی نه یوه ډله دمحمد خان تر مشر ی لاندې د هندو کش دغرونو په لور روان شواو دپنجکوړې ددریا بپر غاړه ځایونه یې له کفارو نه خالي کړل، دوی قا شقار ته دتللو نیت درلود خو ددوی مشر محمد خان دکافرانو له لاسه ووژل شو. دغې‌قبیلې وروسته غازي خان ملیزی کوکه لاس ته ورغله چې هغوی هم د پیښور سیمې ته راوستل شول او یوه ویاله یې ددوی د کو زا ر ی له پاره دوی ته ور کړه. ددغو خلکو حواس او مورال دومره خراب شو ی ووچې د کلیو او ځمکو د آبادی قدرت یې هم نه درلود دغه خلك ترنړی‌مودی و روسته دکابل صوبه دارپه امر د یوسفزیو سیمې ته ولاړل او هلته میشته شول او ورځ په ورځ د یوسفزیو خوره وره قبیله سره راټولیدله. څه موده یې په آرامۍ سره کوزاره و کړه اودحکومت لخوا زر روپۍ مالیه پردوی مقرره او دوی په حپلو مینځو کې د قلبې په سر ویشلې وه. د دغو فسادو نو او بغاوتونو په سبب هغه ملکونه چې دوی د خپل زړه ور توب او زیار په سبب نیولي وو له لاسه ووتل، هغه میداني سیمه چې د سند رودپر غاړه پرته وه ددلازاکو قبیلې ونیوله اوسوات‌دسواتیو لاس ته ور غی. بونیر د بونیر خلکو، چمله د چملی خلکو او باجوړ دننګرهار خلکو ونیول.

کله چی دیوسفزیو متفرقه قبیله سره یو ځای شوه او مغولو ددلا زاکو قبیلی سره په جګړی لاس پوری کړاو مغول یی دخپل تاتوبی نه وشړل، ددلازاکو دوتلو سره یوسفزیو ډیر قوت وموند. د (۱۷) او لسمی عیسوی پیړی په پیل کښی د لغمان، سوات اوباجوړ سیمو اوسیدونکي دسرحدی مسایلو له کبله په خپلو مینځو کی سره وجنګیدل. یوسفزیو چی دغه حالت ولیدنو دوخت نه په استفادی سره دلغمانیو سره یو ځای شول او دباجوړاوسوات دخلکو لاس یی له خپلو سیمو نه لنډ کړ.

دلغمان تر کلانیو باجوړ ونیو اویوسفزیو تر بر سوات پوری، خپله قبضه ټینګه کړه.

دیوسفزیو مشهور سردار علی‌اصغرتومیده چی دخپلی توری په زور یی دخپلی قبیلی دسیمو حدود ډیر پراخه کړل دتنول دغره نه پرته یی دبونیر، چملی اود یر سیمی، پخپل لاس کی راوستلی، او هغه سواتیان چی دوړلو او فرارته ژوندی پاتی شول دیوسفزیو تابع شول چی تر اوسه دفقیرانوپه نوم د یو سفز یورعیت شمیرل کیږی.

لنده داچی دغی قبیلی په تدریج سره دومره ملکونه تر لاسه کړل چی تراوسه یی‌هم په واک کښی دی‌او د مندړو دقبیلی مناخونه چی له غرونو څخه سمی یا میدانی سیمو ته راکوز او د یو سفزیو په ملک کی میشته شول یوازی په نامه شاهی رعیت ګڼل کیدل خو د واکمنی او د ملک په چارو کی د یوه ښه دسپلین او انتظام له امله به اکثره فسادونه او بغاوتونه منځ ته راتلل.

په (۱۰٤۷) هجری کال کی شاه‌جهان د یوسفزیو د سیمی ټیکه ددولبس‌زره روپو په مقابل کښی شهباز خان ختک‌ته ورکړه چی ترهغه وروسته دده زوی خوشحال بیګ‌خان‌ته هم دا اجازه ورکړل شوه‌اوځرنګه چی د ختکو د قبیلی او یو سفز یومندړو ترمنځ پخوانی دښمنی وه، نو په‌دی پلمه یی ترهغی اندا زی‌چی ممکنه وه، پخپلومنځو کی سره جنګیدل تر څو مصنوعی شجاع مرسته وکړه، لکه څنګه چی په لو مړی برخه کی ذکرشول دسند رود په غاړه داورنګزیب عالمګیر لښکر و

په (۱٦۷۰) عیسوی کال‌د یو سفزیواو اره سیمه ونیوله ددی پوځ‌دراتلو نه لږه موده تیره شوی ده.

دکپور ګهری یا لنګر کوټ‌پخوانی‌کلانه چی دمړ مړو کومه دبره لاس ته راغیله په‌هغه باندی لیکل شوی چی په‌کال [۱۰۸۰) هجری کی چی

داورنګزیب پاچا د تخت کینا ستلو دولسم کال و شمشیر خان ترین د شاهي لښکر وپه مشری دمندړو ملك فتح ړ او کلا ، جومات او حاجیي په دغه ځای کي جوړ کړه . د شاه‌عالم دوا ممني په دوره کي یو سفزیو په هیڅ بعد وت لاس پوری نکړ ، خو دمحمد شاه په وخت کي دوی په بلوا لاس پوری کړ او په (۱۷۲۵) عیسوی کال یی دپیښورد حاکم زوی و نیو ، له دی کبله دمغوی غرور لا پســـي زیات لا شواو له ټولو قبیلو دجملی نه یوازی همدی قبیلی دایرانـــي نادرشاه حکمراني و نه منله او کله چي نادر شاه په (۱۷۳۸) عیسوی کي پیښور ته ورسید نوهغه ملك ناروخان را وغوښت ، خوهغه له راتلو نه ډډه وکړه . کله چي دغه کار دنادر شا ه دقهر او غضب سبب شو نو ویـــي غوښتل چي دده نه ددی کستاخی بدل واخلي او دصوبه دار جالیر* ترمشری لاندي یی یو پوځ په هغه پســي واستاوه ، ټول خلك میدا نـــي اواوارو سیمو نه په غرنیو سیمو کـي راټول شول .

یوازی په شیر دره کي لږ شمیر خلك دمخکیني پوځي ټولګی په شکل پاتي شول او هغه کسان به چي وروسته پاتي کیدل دهغه مال او فصل به لو ټ شو . کله چي شاهي پوځ شیر دری ته راښ دی شو نو دسور کاوی او شیر** دری دواړو قبیله راټو له شوی وه ، دغه پوځ ته یی دیوی سختي جګړی وروسته ماتي ورکړه او له هغه ځایه یـــي تر کلپاني پوری تعقیب کړ . کله چي نادرشاه دغه خوا شینو ونکي خبر واورید نو په ډیر زور ، شور او قوت سره پخپله دغي خواته راو خوځیـداود چینجلی له لاری راتیراودشاه کوټ غرنیو سیمو ته چي د مهابن د غرونو لړی ده راور سید . په دغه و خت کي یو سفز ي مجبور شو ل چي سولـــه ومني وروسته په (۱۷٤۹) عیسو ی کال کي کله چي در دران احمد شا ه ابدالي پیښور ته راغی نو دیو سفزیو ټول مشران او ملکان دده سلام ا و مرستی ته راغلل . داشنغر دمحمدزیو حضور ته راغی ، وروپسی دنازو خا ن زوی فتح خان او وروسته دطور داو بابوزی د ځانګو خانان په هند باندی دیرغل په وخت کي د خد مت له پاره

---

* په اصل کي هم لـــیکلی د ی (و ګ ۱۸٤ مخ) خوددي نامه صحی بڼه «جلایر» ده . (رشاد)

** دا هـــغه دوی لاری دي چـــي د ګها تـي نه تـــر انبیله پوری د انګر یزی سر کـــار لښکر ی په ( ۱۸٦۳ ) عیسوی لـــي په سختي ورو رسید لی . ( مؤلف )

راور سیدل ،له دوی نه پرته دطاهرخان زوی بلند خان چی دتاج خان لمسی اودکوه گند کر په سیمه کی‌چی دچچ او هزاری دسیمو په منځنی برخه کی موقعیت لری سلطه لرله ،هغه هم دپانی‌پت په جگړه کی‌داحمد شاه خدمت ته حاضرو. دبلند خان‌پلار طاهر خان چی له ده څخه دطاهر خیلی ښباخ منځ ته راغلی دی، داحمدشاه دراتلو نه لږڅه وړاندی یــی لومړی دگند گر سیمه ونیو لــه .احمد شاه دبلند خان له خدمت نــه خوشحاله شو اود (۱۱۷۲) هجری کال‌دلیکل شوی سند له مخی یی‌ده ته، دیر جاگیرونه ورکړل. دغه طاهرخان‌منډړ اتمان‌زی دعلیزی له ښباخ نه و. بلند خان څه موده داحمد شاه‌دامر سره سم دانبالی په شاوخوا کی دسرهند صوبه دارو. دبلندخان‌زوی فتح خان چی دده دنوم له کبله دده قبیلی ته فتح خانی ویل کیږی‌یو زړور انسان‌و. فتح‌خان یومشهور لارو هونکی وچی‌دمارگلی نه دحضروتر سیمی پوری ده دلوتماری فعالیت کاوه او تر اوسه هم په گندگر اودهغه په شاو خوا دهرو په سیمه کی تقریباء سل کورنی‌طاهرخیلان‌اوسیږی.داحمد شاه دواکمنی نه وروستــه دتیمور شاه دحکومت په دوره کـــی‌دیو سف زیودسیمی خلکو خپله تاکلی ونډه * دنوښار حاکم اویا دهوتـــی‌دفتح‌خان دزوی‌شاه‌ولی خان‌په واسطه ادا کوله . دتیمور تر پاچاهی وروسته دشاه زمان او محمود دحکمرانی پــه وخت کی‌هیڅ‌یوه مهم‌کار ترسره‌نکړ.

دامیر دوست محمد خان او سردار پاینده محمد خان بارکزی دنورو زامنو تر سلطی وروسته. چی رنجیت سنگهدپنجاب حکمران‌دسندم دروددلویدیځی غاړی ونیولی نود هغه په وخت کی‌یو هندو ستانی سړی چی سیداحمد نومیده اوډیرباتدبیره سړی‌ودپیښورنه دیو سفزیو سیمی‌ته ورغی‌اودهغه ملکانو، دزیده خان او بونیر سیدانوله ده سره مرسته وکړه، سیداحمد چی خلکو ده‌ته میا صاحب وایه دجهاداعلان وکړ، کله چی سکانو دغه خبر واورید نو دپنجاب نه یی یولښکروزولیږه، له بلی خوا بی شمیره غازیان چی دیوسفزیو او نورو قبیلو څخــه راټول شوی و دسیدو ** په نامه یو

*دلته دونډی نه مقصد دیوه ټاکلی‌اندازه مالیه او لښکر ته، دسپا یانو برا بر ول دی. (ژباړونکی).

** په اصل کی هم سید ولیکلی‌دی (وگ ۱۸۵ مخ) خو ددغه ځای نـو م شیدو دی‌چی دکابل درود جنوبی‌خواته اکوړی ته نژدی واقع دی.

«مسیدو»دسوات پایتخت له دغه ځای‌نه لری‌دی ،بایدسره خلطنه شی. (رشاد)

ځای کې ډېره سخته جګړه پېښــــه شوه، خو په لومړي حمله کې دسید
احمد لښکرې دماتې سره مخامخ شوې، دی پخپله هم وتښتېداو په (۱۸۲۷)
عیسوي کال کې سوات ته لاړاو تر څه مودې ورو سته بونیر ته راغی
او هلته یې داسې پرېکړه وکړه چې داتك کلا په چل باندې ونیسي، خو
ددغه پلان او نقشې دطرحې خبردهند دملك ښادي خان له خوا سکانو تــه
ورکړل شو. سید احمد غوښتل چــې ښادي خان ته دده دکړو سزاورکړي،
میر بابو اود چارغولي نورو ملکانو دسید احمد سره مرسته وکړه او د
ښادي خان سره یې په جګـړې لاس پورې کړ، خو ددغې جګړې نتیجه
کټوره نه وه. تر هغه وروسته سیداحمد دملا عبدا لغفور په معرفتچې
اوس دسوات اخوند دی ښادي خـان راو غوښت او کله چې دی دسولــې
په هیله راغی نو نوموړي یې وواژه.

تر دې پېښو ورو سته غرنیوسیمو ته د خد و خیلــو میا صا حــــب
تــــه ور غی او د پنجتار فتـــــح خان په سلا او مشوره یې پر یوسفزیو
باندې دحکمراني اعلان وکړ، خـــو څرنګه چې یوسفزي یوه ازاده قبیله
ده نو دغه خبره یې خوښه نکړه. پر ته له دې ده غوښتل چې دیوسفزیو
پیغلې هغو هندوستا نیانو ته ورکړي کوم چې له ده سره ملګري وو، نو
له دې کبله اکثراء له ده نه بیزاره شول، چې په دغه جمله کې دهوتي
اوسیدونکي هم وو. سیداحمدد چارغولي دملکانو په مرسته هوتي مردان ته
اور ورته کړاو کله چې دغه خبـــر دپېښور حاکم یار محمد خان بارکزي
ته ورسید نو دیوه پوځ په مشرۍ د یوسفزیو خواته راو خوځیده. سید
په زیده کې دیره و،دده په پوځ کې شپږ سوه(۶۰۰) غښتلي هندوستانی
ځوانان وو چې دمولوي اسمعیل تــر قیادت لاندې جنګیدل. دیار محمدخان
پوځ له دریو زرو (۳۰۰۰) تنو سپا یانو نه چې شپږ توپونه یې هم لرل
جوړ شوی و.

مولوی اسمعیل * په دغه وخت کې له یوه داسې چل نه کار واخیست
چې دشپې له خوایې دیار محمد خان دعسکرو کمپونه محاصره کړل اوخپل
ټول سپایان یې دکمښت له املـــه متفرق او خواره واره کړل او ددښمن
دډارولو په خاطر یې په یوه اوږده پړۍ کې په لرې لرې فاصله کې توپکونه
وتړل او بیا یې باتیو ته اور ورته کړ او په ډزو یې پیل وکړ. کله چې

*مولوي اسمعیل دشاه عبدا لغنــــي(۱۲۰۳ ه قمر) زوی اود حضرت شاه
ولی الله دهلوی (رح) (۱۱۷۶ ه قمر ) لمسی و.
(رشاد)

درانی پوځ دغه حالت دښمن په تیاره کی ولیده هو وارخطا شول او داسی فکر یی وکړ چی له هری خوا نه ددښمن په زرګونو پوځ راغی‌او ددغه اسانه حکمت له کبله په ویره کی شول‌او وتښتیدل یار محمد خان ټپی او بیا مړ شو. په دغه ډول هندو ستانیانو ته بریا لیتوب وزپه پرخه اوهم یی شمیر زیات شو وروسته سید احمدد‌تنول دعلاقی دانب سیمی ته ورغی او دیار محمد خان ورور سلطان‌محمدخان او دمحمدعظیم خان‌زوی حبیب‌الله خان بارکزی دبدل اخیستلو له پاره‌دده مخی ته ورغلل او دمعیار په سیمه کي ددوی ترمنځ جګړه پیښه شوه .

په لومړی یرغل کـی حبیب الله خان، هندو ستانیان‌تر ګهری کپو و پوری په شاو تمبول ،خو مولـوی‌اسمعیل‌دښی خوانه سلطان محمدخان په شا وتمباوه او کله چی حبیب‌الله خان چی یوزړور انسان ودغه حال ولید نو سمدلاسه راورسید اوسلطان‌محمد خان یی دملا اسمعیل دتعقیب څخه وزغوره. په دغه ترڅ کــــی‌هغه هندو ستانیان چی حبیب اللـه په شا تمبولی‌وو بیر‌ته راستانه شول‌او دپیښور پوځ یی‌په شاتګ ته‌مجبور کړ. سید احمد ددغی فتحی وروسته په اشنغر کی میشته شو اوله هغه ځایه یی سلطان محمد خان ته لیک ولیږه‌او په هغه کی‌یی له ده وغوښتل چی: ((زما سلام ته راشه اود خپلـی‌ګناه معافی وغوله.)) همدا راز په نوموړي لیك کی داهم لیکل شوی‌وو‌چـــی :

«که این‌در گاه ما درگاه‌نا‌امید ی‌نیست، صد بار اگر بشکستی با ز آ هرآنچه گردی بازآ ، بــاز آ ،باز آ»

ددغه لیك ځواب سید احمد ته و نه رسید. کله چی‌ده میچنی ونیوله ، دپیښور حاکم سلطان محمد خان وویریده او سید ته یی پیښور ته دراتلو بلنه ورکړه، مګر دریاست حـــرص‌پخپله دی هغی خواته وباله کله چی دی پیښور ته ورسیده نو پرکلایـی‌خپله قبضه ټینګه کړه‌او دوابه او اشنغر یی سلطان محمد خان ته پـه جاګیر کی ورکړه او نور ټول ځایونه یی خپل وبلل. دغه پیښه په (۱۸۳۰)عیسوی کال کی مینځ ته راغلـه . سید احمد څو ورځي په پیښور کـی‌اوسیده او ملا مظهر علي یی پیښور

ته نږدې په ګور کتهنۍ کې خپل نایب مقرر کړاو پخپله دمهابن غرنۍسیمې ته ورغۍاو دکوهاټ نه یې تر ننوله پورې خلکو نه عشر حصول کـړ . خپلوا کو خلکو چې نه یې شو کولای دهندو ستانیانو دسختې حکمرا نـې تحمل وکړی نوپه بغاوت یـې لاس پورې کړاو ملا مظهر علـې او دسید احمد نور ټول خادمان یې ووژل .

کله چې سیداحمد دغه خبرواوریده اوهم په دې وپوهیده چې فتح خـان پنجتار والادده دوست ندی نودهزاره ضلعې بالا کوټ ته لاړ او هلته دملا اسمعیل سره چې دیارلس سوه (۱۳۰۰) هندوستانیانهم ورسره وو په (۱۸۳۱) عیسوی کال کې دسکانو سره پـــه جګړه کې شهید شواو دده له ملګرو څخه یې د (۳۰۰) درې سوو په شاوخواکې ژوندې پاتې وو دبونیر خوا ـ ته ونښتیدل او له تخته بند څخـه دمولوی نصر الدین تر مشرۍ لاندې ستهانه ته راغلل، خوله هغه ځای څخه دکوتهه داخوند سیدامیر اوفتح خان پنجتاری له خوا وشړل شـول.

لنډه داچې دسکانو دحکمرانۍ په وخت کې نه په دغې قبیلې او نـه د یوسف زیو په سیمه کې هیڅ امنیت نه و، دپنجاب دسیمې ترنیو لوورو ـ سته کله چې دپیښور ضلعه دانګریزی سرکار په قبضه کـې راغله نو دیوسفزیو په اوارو سیمو کې چې دانګریز سرکار د متصر فاتو نـــه دی امنیت رامنځ ته شوخو دهغوی په غرنیو سیمو کې امنیت او انتظام نه لیدل کیږی. دستهانه په سیمه، کې چې دمهابن په غرنۍ سیمه کې پرته، ده ددغه ځای دسیدانو او متعصبـــو وهابې هندو ستانیانو دغولونـې او فریب له کبله ددغه قبیلې هغـه ښاخونه چې په غرنیو سیمو کې اوسیږی دانګریزی سرکار سره په جګړه بوخت دی چې په لنډ ول یې په لومړی برخه کې ذکر وشو. لومړنې مقابله، چې دحسن زیو او ستهانه، والوپه هغـه کې ګډون کړی وکمزوری وه.

خو دعبدالله وهابې په مشوره دوی دانبیلې ددرې په سرکې دانګر ـ یزی سرکار له پوځ سره ډیره کلکه جګړه وکړه. دســـر کـــار لـــه دغې لښکـــر کشـــې څخـــه یوازینې مقصد داو چـې دملکا سیمه چې دچملې دوادی په منځ کې دمندړو دښاخ دامازی ځانګی استو ګنځی، د ی اوپه هغه کې وهابې اولوتمار وخلکو پناه اخیستې ده وسوځوی ، خوهندو ـ ستانی مولوی عبدالله وهابې دچالا ې په سبب دغه غرنیو قبیلو ته داسې وښو دله چې ګواکې انګریزی سرکارغواړی ددوی ملکونه ونیسی، لـــه. دغه سببه دسوات خلك دسواتاخوند تر مشرۍ لاندې اود باجوړ دتوکلانی

ښاغلی دسردار فیض طلب خان باجوړی تر مشری لاندی ددیر ملی زی چی د
یوسفزیو ښاخ دی دسردار غزن خان دیروال تر مشری لاندی دمداخیل ،
امازی او جدون قبیلی سره راټولی شوی چی ددوی دلښکرو شمیر دشلو
زرو په شاو خواکی وو. تر ښوجګړو وروسته دمیجر جمس دښه تدبیر له
امله انبیله، مندی او لعلو وسوځول شول او متعصب وهابیان له هغه
ځایه شړلو ته مجبور شول. کله چی دغه خلك خواره واره شول نو
پورته دبونیر په چغرزی کی میشته شول او سرکاری پوځ تش په نامه
خپل مقصد ترلاسه کړاو بیرته راستون شو، سره دډیره زیانه دغه خلك په
هماغه ډول دخپل لوټ اوماتی سبب کم همتی بولی، په واقعیت کی دا
مناسبه نه ده چی دبلی قبیلی دملك له لاری دخبر ورکولو نه پرته په
یوه سیمه باندی یرغل وشی اوکله چی داکار وشو نوپه دغه ډول شاته
تګ دانګریزی سرکاردشان اوشوکت سره نه ښایی.

# دوهابي فرقې يادونه

ځر نګه چې هندو ستاني شرا چو ونکي وهابيان په غرنيو سيمو کې ميشته خلك چې مسلما نان دي ګمراه کوي نو ځکه دلته ددغي فرقې لنډ ذکر ته ضرورت احساسيږي او غواړم په لنډ ډول يې بيان وکړم. ددغې فرقې مشر او رامنځ ته کوو نکی عبد الو هاب په الحوطه نومي ځاي کې چې د عر بستا ن دنجد په علاقه کې دی دسلو کا لونه لږ څه زياته موده کيږي چې پيدا شوی واو په اصل کې دتميم له قبيلې څخه و.

نو موړی په بصره، بغداد او دمشق کې د علم زده کړه وکړه. او په پای کې بير ته نجد ته را ستون اوپه درية کې ميشته شو اود هغه ځاي دمشر محمد ابن (سعود) سره يې دواده او خپلوی له لاری رابطه ټينګه او دهغه ځاي دشاو خوا پر بد وی خلکو يې غلبه وکړه، خو ځر نګه چې دده زوی ړوند و نو په اخر کې دغه قدرت ددرية کو رنې تر لاسه کړ. په دغه کورنی کې عبدالعزيز او دهغه زوی سعود ډير نوميالی خلك وو او دوی دواړو د نجد ټوله سيمه ونيو له او کله چې دبغداد حکمران يو پوځ ددوی مقابلې ته را وليږه هغه ته يې دوه ځلې ماتې ور کړه او دبنی کلب او عتو بنې قبيلو خلکو يې مذهب وما نه او دځانه سره يې ملګری کړل. په کربلای معلی کې چې هلته دسيد الشهداء حضرت امام حسين ابن حضرت علي کرم الله وجهه اود کربلا دنورو شهيدانو مزار ونه دي د دغې سخت زړی ډلې له خوا لوټ کړای شو.

او دمکې شريف ته يې ماتې ورکړ او د مکې معظمې او مدينې منورې مقدس ښارونه او د حجاز علاقه يې تر لاسه کړه .

دجاسم قبيله چې وهابي شوي وه او په سمندرکې يې په غلا کانو او له تماري پيل کړي و ، له دغه کبله په ( ۱۸۰۹ ) عيسوي کال کې د بمبئي سرکار د فارس خليج ته پوځ واستاوه او ډېرې سختې مقابلې ورو سته يې د دغې قبيلې نه د شخاس تينګه کلا چې د کرمان خنګ ته پر ته ده و نيو له . په پای کې د اهل سنت او جماعت مسلمانانو هغوی ته سخت ګوزارونه ورکړل . چې په (۱۵۱۷) عيسوي کال کې د عباسي کورنۍ وروستی خليفه ووژل شو . نو موړی سليم ته چې يو کوچنی تفسير يې کښلی و د امام فقه خطاب ورکړل شو او له هغه وخت څخه ورو سته ده د امير المؤمنين لقب غوره کړ . دمکې شريف* د دغه نوي منصب د نيو لو په وخت کې خپل زوی ته د کعبې کلي ګانې د سپينو زرو په يوه غوري کې کېښودلې او د نذر له پاره يې ولېږه په دغه ډول د پخوانۍ عادت پر خلاف چې د حضرت خاتم الانبياؑ له خوا ويل شوي وچې امام بايد د قريش له نسله وي يو ترک امام شو . وهابيانو په ښکاره ډول امام نه مانه . عبدالعز يزاو سعود په دنيوي چارو او هم په ديني مسايلو کې ورانسدي وو . او د دوی ادعا د روم د پاچا د ادعا سره تضاد درلود خو کله چې محمد على هغه مريان چې واکمنۍ ته رسيد لي ووو تکول نوده ته د استانبول د دارالسلطنت له خوا امر وشو چې ملحد وهابيانو ته سزا ورکړي او مقدس او سپيڅلي ښارونه بير ته د هغوی نه تر لا سه کړي .

دغه جګړې د (۱۸۱۱) عيسوي کال نه تر ( ۱۸۱۸ ) عيسوي کال پورې دوام درلود . او پخپله محمدعلي د دوو کالو په موده کې په دغه جنګونو کې بوخت واو په پای کې ابراهيم پاشا په دزيه باندې قبضه وکړه او د سعود زوی عبد الله ونيو ، دهغه پلار په جنګ کولو کې داسې عادت درلود چې د هغه پوځ څخه چې نظامي روزنه يې ليد لې وه پوازې په غرو نو کې کار اخيست . خو عبدالله دغه قاعده پر يښوده او کله چې ونيول شو نو استانبول ته راستون شو او تر سختې شکنجې لاندې ونيول شو او په پای کې يې سرد تن څخه جلا شو . کله چې سيد احمد دريه ته ولاړ ، د دريه د نيو لو نه ډير کلو نه وروسته نه وو تير شوي او کله چې دی له هغه ځا يه څخه راغی په هندوستان او پښتنه تيره بيا په بنګال کې د يو شميرزيلو خلکو په منځ کې يې د وهابي طريقې په خپرولو پيل وکړ او دده په ذريعه دغه ملک ته هم راغلل خود اهل سنت او جماعت دعا لمانو په پاملرنه

---

* دلته دمکې د شر يف نه مقصد د مکې رئيس او مشر دی .
(ژبا ړونکی)

او کوښښ دده ملك په خلکو کی په تیره بیا دیو سفریو په قبیله کی دوها بی مذهب اثار دیر لږ لیدل کیږی ،خو سره له دی هم ځینی وهابیان دمها بڼ په غره ،بونیر او نوروځایو نو کی دخلکو عقیدو د خرابولو له پاره خواره شوی او باید چی مسلمانان دهغوی له شره خوندی وساتل شی .وهابی فرقه چی دبدی عقیدی خاوندان دی دهغوی دخو خرابو نظریو په باب چی اسلامی علماوو دهغوی د ابطال په باب فتوی ورکړی ده په دی ډول دی :

( ۱ ) وها بیان وایی چی پیغمبری او رسالت په حضرت محمد (( ص ) باندی نه ختمیږی .یا په بل عبارت حضرت محمد (ص) خاتم الانبیا نه دی. بلکی په هره زمانه کی به ضروریو پیغمبر موجود وی . د * حضرت محمد ( ص )په باب ددوی عقیده داسی ده چی دی هم دنورو انسانانو په شان یو فانی انسان و او تر رحلت وروسته هغه هم نیست شوی دی .

( ۲ ) پیغمبری دزهد او تقوی په سبب ترلاسه کیدای شی . * *

( ۳ )داولیاوو کرامت تر مړینی وروسته مطلق نه پاتی کیږی اودوی داولیا و ودقبرونو احترام او درناوی ته په بده سترګه ګوری .

( ٤ )مذهبو نه محدود او منحصر نه دی .

( ٥ )لمونځ دفاتحی ( الحمد )پرته جایز نه دی .

که څه هم سړی د لمونځ داداکولو په حال کی مقتدی وی .

(٦)دقران مجید ځینی ایتونه شعر بولی !

( ۷ )لواطت دسزا وړنه بولی * بلکی هغه مباح ګنی .

( ۸ )خدای (ج) ته په جسم او مکان قایل دی . * *

---

* له دی څخه ښکاری چی مطلب داوی چی د لواطت له پاره دتر ټنی ( سزا ) حد نه دی ټاکلی اوسزا یی دتعزیر په درجه کی راځی ، په هدایه کی راغلی دی : « ومن عمل عمل قوم لوط فلا حد علیه عندابی حنیفه و یعزر» «و کتاب الحدود ـ دالوطی الذی یوجب الحدود الذی لایوجبه بحث» (رشاد )

** داهغه تور دی چی په شیخ الاسلام ابن تیمیه ( ٦٦١ ـ ۷۲۸ هق) پوری تړل شوی دی. ( رشاد )

په همدې ډول دنورو ډېرو اسلامي ږښتیتو مسا یلو سره ،اختلاف لـري اووایي چې امام مهدي په نړۍ کې ژوندی دی خو خلک یې لید لای نه شي، دحکو متي چارو دانتظام په باب ددوي یوه ستر ه نیمګړ تیا او غلطي داده چې هغه خلک چې ددوي په نزد کافران دي دهغوی په مقابل کې جهاد لازم دی.

۱۸٦۳ عیسوي کال تر یرغل وروسته هغه وهابیان چې په مولوي عبدالله پاندي راټول شوي وو او په دغـــو شاوخوا ووکې یې ژوند کاوه هغـــه خواره واره اوتس نس شـــول .

امید دی چې په راتلو نکې کـــې به مسلما نان دهغوی دېو ډای کـدو اوقدرت ته درسیدو مخه ونیسي ،داځکه چې ددوی قوت اوقدرت دمسلما نانو دین دنیا ته زیان ونه رسوي .

# د یوسفزیو د قبیلې شمیر او د دغې قبیلې د ښاخونو د استوګنې ځایونه

جوته ده چې د یوسفزیو قبیله په لومړي سر کې په دوو برخو ویشل کیږي، لومړی مندړ او دویم یوسفزی. څه هم د مندړ پلار عمر او یوسف د واړه سره ورونه وو.

خو د مندړ ښاخ ته هم یوسفزي وایي، که څه هم پر حقیقت کې یو بېل شاخ دی.

یوسفزي په سوات، بونیر، پنجکوړه او دیز کې استوګنه لري او د مندړو استوګنځی د کابل او سندرود و شمال حوا ته په اوارو میدانو کې چې سمه یاد یوسفزیو سیمه یې بولي اوسیږي.

ویل کیږي چې د جملې په وادي کې د ټولو یوسفزیو شمیر څو لکو ته رسیږي، مګر د دغه شمیر زیات معلوم میږي او ښایي په دغو څو لکو کې د حبنې قبیلې هم شامله وي. دوروستیو څېړنو نه چې په ډېر غور او احتیاط سره راټول شوي دي، د دغې قبیلې اوسېدونکي په خپل ټاټوبي کې دوه لکه او شل زره شمیرل شوي دي چې د هغو د جملې نه یو لک او شل زره مندړ او یو لک او شپږ زره یوسفزي دي چې د وی ټولدري او یا زره د وه سوه تنه وسله وال ځوانان لري چې ډېر شل زره تنه یې مندړ او دری شلو یښت زره دوه سوه تنه یې یوسفزي دي.

مندړ او وه بېې دي چې له ټولو نه یې عثمان زی او اتما نزی لوی ټبي دي. څرنګه چې د نسبت په شجره کې یې لیکل شوي دي عثمانزي په دوو لویو ښاخونو باندې ویشل کیږي او کمال زی چې دا هم په دوو څانګو ویشل کیږي د طور و اوسیدونکي مشران زی او د هوتي اوسیدونکي

کشرانزی دی چی دیوسفزیو پښتنه سرکاری سیمه کی اوسیږی. دوی هم لوی ښاغ امازی دی چی دوی څانګی لریدو لت زی او اسمعیل زی، لسه، دغو امازیو نه یوه څانګه یی دمهابن په غرونو کی دچمله وادی په ختیځو غاړو لی اوسیږی.

دوی دوه زره وسلـــه وال کسان لری. چارغولی یاچارکلالی دامازیونوی کلی دی. ددولت زیو څانګه اکثراً دیوسفزیو دعلاقـــی دانګریزی سر کارپه سیمو کـــی اوسیږی.

کپور کهری ددوی لوی کلی دی.

دامان ریږ تپه په څلورو ښاخونو باندی ویشل کیږی، علیزی چی ددوی له نسل نه دطاهرخیلی څانګه په ګند ګهر کی استو ګنه لری کناری، اکازی، اوعلیزی دری وارهاتمانزی بلل کیږی.

او دوی دولسی سر نشـــه وسله وال کسان لری. څلورم دسدازی ښاخ دی چی په پنځو څانګو باندی ویشل شوی دی چی هغه دوی نه ابا حیل عمر خیل، میر احمد خیل لو بهـز ا دخیل په سر کاری علاقه کی میشتـه دی اوهند، صوابی، مرغوز او ګهـلابټ ددوی ستر کلی دی. پنځم خد و خیل چی اکثراً دسر کاری علا قـــی نه بهرد مهابن دغره په لویدیځ اودهغه په شاو خوا کی استو ګنـه لری او یوشمیریی په سرکاری سیمه باجه او بام خیلو کی او سیږی او (۱۸۰۰) یا (۲۰۰۰) تنه وسلـه کسان لری ددوی مشهور کلی چنګلی او پنجتار دی.

ددوی مشهور سردار خان ګجـــو یومیږی چی دسوری شیر شاه په وخت کی یی ژوند کاوه او دبهزاد خیلـــو سدازیو له ښاخ څخه دی. پاتـــی پنځه نپی یی د رزپیار خرپه نامـه یادیږی، چی اکثراً په سر کاری سیمو کی اوسیږی اوددوی کلی سمیلا یااسمعیلاء یارحسین، شوه، نو ی للسی ادینه، ډاګی، ترلاندی اودچمله پـه سیمه کی کوګا، انبیله او لعلودی،

## دیوسف زیو ښاخونه :

دیو سفزیو دپنځو لو مړنیـــو ښاخونو څخه د اوریا نسل بـا دی خیل له مینځه تللی دی، له پاتـــی څلوروڼه یی عیسی زی چی دری څانګی یی یعنی حسن زی، مدر خیـــــل او اکازی مشهور دی، دا ټول دمهابن غره په شما لی اوختیځو څنـــډ ودهزاره ضلعی په اګر وراود سنـــد د دواړ و غا ړو پـه غر نیـــو سیمو کی پراته دی. دسند رود په لو ید یځ کی دوی (۱۰۰۰) یا (۱۲۰۰) تنه وسله وال کسان لری. د موسی اولاده الیاس زی دی چی شمیر یـی (۱۱۰۰۰) تـــه او د و سله والو

کسانو شمیر یې (۲۰۰۰) تنه دئ.

الیاس زی په پنځو څانګو ویشل کیږی ،سالارزی، ګدای زی، پنج پا ی اواشیزی ،چې دغه څلور ښاخو نه په بونیر کی میشته او د پاشا پـــه ضیمه کی یې مشهور کلی جهوړ ،توروړسك او باګره دی . اشیز ی پـــه اصل کی د ممی له نسل څخه دی ،د ممی میرمن اشو نومیده او دمور د نوم له کبله دغه خلکو ته اشیزی ویــل کیږی .

پنځم ښاخ مخوزی دی چې د دوسری په غره کی استو ګنه لری او لــوی کلی یې شکو لی نومیږی .

دملی زیو څلور لوی ښاخو نه چی له هغو نه دولت زی او چغـر زی د ووتی له اولاد ی نه واباز ی او عیسوړی د نوری له بطن څخه د نوری زی په نامه یادیږی .دملی زیو تول شمیر (۱۶۰۰۰) کسانو ته رسیږی چـــی له هغوی نه یی (۴۰۰۰) تنه وسله وال کسان دی ،خو ډیر د ضیمی ملی زی چی د اکوزی او خواجو زی له ښاخو څخه دی داله هغوی څخه بیل دی. د اکوز یو د قبیلی پاتی تول ښا خــو نه له یوسفزیو نه زیات دی او ویل کیږی چی داکوزیو تول شمیر (۹۶۰۰۰) تنو ته رسیږی .

دغه قبیله د دوو میندو اولاده ده چی یوه یی ګوهره نومیده او څلورزامن یی خواجوزی ، ابازی ، باز یدزی ،او شرك د څلورو ښاخونو نیکونه دی. دویمه مور یی رانی نومیده چـــی له نسل نه یی رانی زی رامنځ تــه شوی دی ،مګر د هغو ډیرو ښا خــو د شمیر د کمښت په سبب اوس داکو- زیو قبیله په دوو لویو بر خو ویشل کیږی او په دوونومونو نومول شوی دی ، یویی خواجوزی او دویم یی بازیدزی چی ښښتانه یی پخپله ور ځنـــی محاوره کی د بایی زی په نامه یادوی او پاتی ښاخونه یی هم په دغــو دوو پوری تړی . خواجوزی په پنځو ښاخونو ویشل شوی دی چی له هغو نـــه څلور ښاخو نه د سوات سیند په شمالی برخه اوديره جاتو کی چی پـــه سوات پوری تړلی دی پراتــه دی .د هر یوه ښاخ د مشهور واو لویو کلیو تفصیل په دی ډول دی :

(پنځلس کلـــی ادیــن ز یٔ ،شپــږ کلـــی شا مو ن ز ی او نهه کلی بیك پی خیل ،خوعایشــه زی اوشمی زی پـــه علیحده د و ل یو ـ (۱۷) کلـــی لری ،له دی نه پرته په دغو ځایونو کی واړه کلی او باندی ډیری دی .

دملی‌زیو له پنځو ښاخونو‌نه د ری‌نوری ښاخونه څانگی راوتلی دی چی سلطان خیل یی دری زره پاینده خیل دری زره‌او نصر الدین خیل یی دوه زره وسله وال کسان لری .دملی زیو ښاخ ددیردپنجکوړی په علاقه کی اوسیږی .او اوس ددیر غزن خان ددوی مشر دی‌چی په خپل ښاخ کی ددیر والی‌څښتن دی . دخوا چو ز یو ټو ل شمیـــر پنځه څلویښت زرو ،تنو ته‌رسیږی چــی د و لس ز ر ه و سله وا ل کسان لری . دویم د باز یدزی یــا بای ز ی ښــا خ شمیــر اتـــه دیرش زره تنه او د وسله والـــو کسانو شمیر یی (۶۰۰۰) تنو تـــه رسیږی . دغه ښاخ اووه څا نـــگی لری چی تفصیل یی د نسب په شجره‌کی راغلی دی او له هغوی څخــه بابوزی دبایی زیو سیمی د غـــره‌په لمنه کی او سیږی چی دیوسفزیو دمیدان شمالی خواته موقعیت لری.له دی څخه پرته (۱۸) کلی یـــی په سوات کی‌درود سهیلی‌خوانه پرانه دی . دمتوروازی ښاخ څلور کلـــی په سوات کی پراته دی. دابا خیلو(۹) کلی ، موسی خیلو ۶ کلی ،د عزیز خیلو چی په ورځنی محا وه‌کی‌ازی خیل بلل کیږی (۶) کلی پـــه سوات کی موقعیت لری. سربیره پردی دلته ددوی واړه کلی او بانــدی هم شته .په سوات کی دزنگی خیلـــوهیڅ یوکلی نشته .ددوی ټول دایلم غره په سهیلی برخوکی پراته دی .رانی زی اکثراً دیو سفزیو په اوارو سیمو کی دانگریزی سرکارد مستعمراتو څخه دپاندی په شما لی غرنیـــو سیمو او همدا راز دټوتی په غرونوکی استوگنه لری دهغوی پنځلس کلی په سوات کی هم شته خوالاونه ددی‌قبیلی یوه مشهوره سیمه ده چـــی هلته درانی زیو خان اوسیږی .اوس په سوات کی‌صحبت خان چی یودیریبا تدبیره سړی دی اوپه الاونه کـــی اوسیږی درانی زیو خان دی.

نوموړی په خپله سیمه کی دډیرواك او اختیار خاوند دی ،خودده سره شیردل خان مخالفت لری .چی نتیجــه یی تر اوسه معلومه نه ده .ددغـــه ښاخ شمیر دیارلس زرو تنو تــــه رسیږی. دوی دری زره ټوپك لری .

څرگنده ده چی دیوسفزیو دقبیلـــی‌اصلی تاتوبی همدادی چی تفصیـــل یی وړاندی راغی خودغه قبیلـــی‌ځینی خلك هندو ستان ته تللـــی او هلته میشته شوی دی ،په تیره بیادمندړ وشاخ تر روهیلکند پوری اوت سیږی ،اوپه هندو ستا ن کی دوی‌ته روهیله وایی چی د تسمیی وجه یی په لومړی برخه کی ذکر شوی ده .

## نوری پښتنی قبیلی چی د یوسفز یوپه ملك کی اوسیږی:

دیو سفزیو په سیمه کی ختــــك ، محمد زی، اتمان خیل‌او هم دتالاش

په وادۍ کې د بیلو بیلو ښاخونو او ځانګو خلک میشته دي . د ختګو د بولاق ښاخ یو شمیر د لندی اوسند په غاړه په قطبي اواره سیمه کې او یو شمیر یې په لوند خوړ کې اوسیږي .

ټول ختک چې د یوسفزیو په سیمه کې اوسیږي د هغوی شمیر د ډاکتر بلیود لیکنې په اسناد څو اوولس زره کسانو ته رسیږي او د ټوپکو شمیر یې دری زره ښودل شوی دی . په لوند خوړ کې د ختکو مشهور کلي د بای زیو په سیمه کې په یوه جګ ځای کې موقعیت لري او دلته اکثرا سودا ګران تګ راتګ کوي او هلته په زیات شمیر د بولاق ښاخ د میووزی ځانګې ختک اوسیږي چې په دوی کې د شابې خیلو کورنۍ د عزت او اعتبار خاونده او خانان دي . ملک صدرخان او ملک غلام د دغه ځای مشهور سپین ږیري دي . د ترۍ له نسل ځخه مکوري اوسیني هم دلته استو ګنه لري د دوی نه پرته دلو ند خوړ د کاټلنګ او الوفاسمي په سیمو کې هم ختک شته او تقریبا د بای زیو په ټوله سیمه کې د ختکو شمیر زیات دی .

**محمد زی یا من زی :**

دزمند یا جمند د قبیلې ښاخ محمد زی یامن زی چې د یوسفزیو په سیمه کې اوسیږي د هغوی شمیر پنځه ویشت زره تنه او د ټوپکو شمیر یې پنځه زره دی او د اشنغر په سیمه کې اوسیږي .

**اتمان خیل :**

د کرراڼی د قبیلې ښاخ چې ذکر یې د دی برخې په غلو رم باب کې راغلی د یوسفزیو سره په هره پیښه کې شریک دی . د سوات تر فتحې وروسته یوسفزیو ، اتمان خیلو ته د هغه غرکي سیمه ورکړه چې هلته اوس هغوی د سوات د رود په غاړه له باجوړ ځخه سهیل ختیځ خواته میشته دي د دوی شمیر شلو زروتنو ته او د ټوپکو شمیر یې پنځه زروته رسیږي .

پرته له دی د بای زیو د سیمې په ختیځه او قطبي سیمه کې د دغه قبیلې دری نوی ښاخونه ، اسمعیل خیل ، دعوت خیل او سه صده په لاند نیو کلیو کې اوسیږي ، د اسمعیل خیلو ښاخ په کوی او برمل کې دعوت خیل په سنګا نو میا خان او پیپل او سه صده په خسر خر کې اوسیږي چې د دوی په برخه کې به زیات تفصیلات وروسته راشي .

## دتالاش وادي :

دغه سیمه دسوات تر فتحې ور وسته د یوسفزیو له خوا ولیـــــول شوه ، اوس دتالاش په سیمه کـــې متصرفي او بیلي بیلــــــــــــي قبیلې اوسیږي چې شمیر یې شپږزرونو ته رسیږي اوویل کیږي چې دوه زره تو پك سړی په دغه سیمه کې دوه خانان دي چې ددیر دخان تر نفوذ او حکمرانۍ منۍ .

## متفرق خلك :

د افغا نانو نه پرته دیوسفزیو اومندړ په سیمه کې بیل بیل خلـــك په دې ډول میشته دي . لومړی قسیران ،دویم سیدان ،دریم گوجـــــر ، څلورم اوان ،پنځم کشمیري ،شپږم هندکي ،اووم قریش، اتم غلام، نهم هندوان چې ددغو ټولو قومونو اوخلکو بیان به په لنډډول وروسته راشي .

## دفقیرانو فرقه :

د یوسفزیو او مندړ وپه سیمه کې‌همسا یه یارعیت چې دافغا نانـــــو (پښتنو) له قوم څخه نه دي د فقیرانو په نامه یادیږي .

فقیران اکثره دهغو خلکو اولاده‌دهچې دسوات ترفتحې وروسته په دغه ملك یې دیو سفزیو درعیت په ډول پاتې شوي دي .

ځینې ډیکان اوهغه هند کي‌چـــې‌دپنجاب له سیمې څخه دکاختي لـــه کبله هلته راغلي دي په دغه ډلـــه کې راځي ،خو په عمومي ډول په دغه فرقه کې سواتي خلك ډیر دي .دفقیرانو فرقې شمیر که څه هم په پـــوره ډول څرګند نه دی خو دځینو شفاهي‌روایاتو له مخې‌داخبره بایدتذکرشي چې ددغه فرقې شمیر له دریو لکـــو څخه‌زیات‌دی،فقیران دځمکو څښتنان نه دي بلکې دوی پخپله د مالکا نـــو او بادارانو ملکیت گڼل کیږي . دوی دیوسفز یو سره برابر نه شمیـــــرل‌کیږي اوپه جرګو کې هم دخپل مالـــك دحوښې نه پرته گډون نه شي کولای،او هر فقیر چې دهغه په ځمکه کـــــې اوسیږي دمالك په اختیار کې دی اوخپل مالك ته محصول ورکوي اودلښکر کشي په وخت کې‌دخپل مالك په لښکرکې دسپا هې په ډول کار کوي او د مالك ځمکه هم کري .که څه دمالـــك‌اختیار په غرنیو سیمو کې تر هغـــــه اندازې پورې دی چې که چیرې خپـــل‌فقیر ووژنی ،نو عیب یې نه ګڼــــی خو اکثرا دمالکانو له خوا پر فقیرانو باندې ظلم اوتیری نه کیږي اوداهم مناسبه نه بولي چې کوم بل یوسفزی‌دې ددوی پر فقیرانو تیری وکړ ي ، هر مالك دخپل فقیر تینګك مـــلا تړاو ننګه کوي هر فقیر چې وغواړي‌چې په نورو کسبو نو لاس پورې کـړي‌نو هغه ته پوره واك او اختیار ور نول

کیږي او دخپلو گټو دتر لاسه کولو لپاره دهر ډول مزدوری کولو اجازه ورنول کیږي همدا راز دوی ځمکه هم په اجاره اخستلای شي او کولای شي دهر یوسفزي چي خوښه یې وي دهماغه ځمکه وکري .خاوند یا مالك د خپلو فقیرا نو نه د محصو لخخه پرته دقتل اوجرمونو په بدل کي جرم اخلي چي اندازه یې دهغه ځای د مروجه دود او دستور په موجب تاکل شوی ده او که څیري له ټاکلی اندازي نه زیاتي واخستل شي نو دوی دغه کار ظلم گڼي ،فقیران غریب حلك دي ،دوی جنگیالی نه دي که څه هم دوسلو له گرځولو څخه منع نه دي ،خو دوی عموما له ځانو سره وسلي نه گرځوي. ددوی تورونه حراب ،خوراك یې په زیاته اندازه جوار او پوښاك یې ډیر ساده دی دافغا نانو د ځمکو له کرلو څخه پرته دوی رنگریزي ،جولا توب ،ترکاڼي او پښي ( اهنگری ) هم کوی .

**کوچـر :**

دوی په اصل کي جټــان دي اوراغلي تان ددغه قبیلي یو ښاغ گڼل کیږي چي دافغا نانو نخوا دوی تـه دابادی اجازه ور کړل شوي ده ددوی ترمنځ شمیر پنځه اویا زرو تنو تـه رسیږي چي ددي جملي نه دری زره اوان ،شپږ زره کشمیري ،او لس زره هندي چي ټول نولس زره تنه کیږي په دوی ني دهر ډول کسب خاوندان شامل دي او دوی ټول گاو نــدي رعیت گڼل کیږي .اوان او هند کسی دکاختی په کلو نو ني او کشمیري سوداگر ان دحرص په وجه په دغه سیمه کي میشته شوي دي ،دسیدا نو او ملا یانو شمیر شلرو یشت زروتنو ته رسیږي ،چي په دوی کي دوی فرقي موجودي دي چي یوه یې ستـا نه دار چي سید ،پیر او صاحب زاده په کي راځي چي دکوم پخواني لـوی ولي او بزرگ په وجه دوی ته ستا نه دار ویل کیږي اودوی نه شرانه او سیري ورکول کیږي اودیم اوتموـ یدات هم بوی .دویم ملا یا اخونـد ،دجومات امام ،شرعی عالمان اوطالبان په دغه فرقه کي شاملیږي او هیڅ یو کلي نشته چي دوی په کي نــه وی * دساداتو څخه دپیر بابا یعنـي سید علي ترمیزي اولاده ډیره ده .

**هندوان :**

ددوی شمیر دوه ویشت زرو تنـو ته رسیږي .داخلك دتجارت او سوـ داگری په منظور له پنجاب څخه دلته راغلي او اباد شوی دي چي پـــه دوی ني یې ځیني شتمن هم دي .

* پیران ،صاحبزاده گان ،ملا یان او طالبان زیاتره پښتا نه وی ،دوی له پښتـو ویلی نه دي – مونږ پوهیږو چي د ځمکنو میاعمر ترکلاني، دسوات اخوند صاحب سابي، دکوټي سیدامیرلودی ، ددیر اخوندالیاس ملیزی، کاکا خېل میاگان خټك دي . مولف چي دعلم و عرفان خاوندان له پښتنو باسی اود فقیرانو ،گوجرو او هندوانو سره یې په یوه ردیف کي راوړي دتعجب خبر ده .

# دیوسفزیو ځینې دودونه او دستورونه

**کسب:**

یوسفزي عموماً دځمکو په کرلو بوخت دي مځکې تر دې چې دوی په دغه ځای کې میشته شي په پوونده‌ول یې ژوند کاوه او هري خوا ته خواره واره وه مالداري یې کوله له همدې کبله دوی ډیر ځله د ښه ځایونو په خاطر د نورو خلکو سره جګړې کولې نو ځکه دوی له پخوا نه دجنګ اووسلې سره عادت وو که څه هم په خپلو منځو کې بې اتفاقي او نفاق ددوی پخوانی دو دو خو دبهرني غلیم دحملې په وخت کې به دخپلو سپین ږیرو په غوښتنه سره یو ځای او متفق کیدل چې اوس هم ددغه اصل څخه پیروي کوي.

**دملکیت ویش:**

څنګه چې وړاندې ذکر شو ل ددغه ملک‌لومړنی ویش دیوسفزیو قبیلې او نورو ترمنځ شیخ‌ملي* عملي کړ. دغه ویش لومړی په قبیلو ویشی

---

*شیخ ملي دمندړ و قبیلې داتمان زئ منا خ اکازی و ، چې څه اولاده یې تر اوسه هم دمیني په سیمه کې اوسیږي.

په تپو بیا په دفترو رپسی‌په برخه او بیا په پټی عملی ښو ، دپټیو دښبستنان برخه خواره ده او شپېږ،څلور یا هر څومره پټی یوه برخه کیږی او پټی په هره کور نی کسی‌دوګړو دشمیر دزیا توا لی اوکمښت له مخی ویشل کیږی .

په حقیقت‌کی‌د دفتر کلمه دحــــق‌معنی لــر ی چی دغه حق د کور نی دغړیود شمیر له مخی کم اوزیاتیږی.

دیوسفز یواو مندړو په ملك کی‌چی په هره اندا زه پلر نی جا یداد موجوددی‌هغه د شیخ ملی دد فتر په نامه یادوی او پاتی‌یی څه چی‌اخستل شوی اونور ملکیت په توپیر سره‌هغه ته هم دفتر وایی او شیخ ملی دپلر نی جا یداد (د فتر) پیما نـــه په هره قبیله او کلی کی‌په واضح دول منځ ته راوړه چی هیڅ وخت‌په غلطی نه راځی او دپلر نـــی ملکیت دبرخی له مخی دهره یـــوه برخه وال ، حصه په هره ریوونده کی برابره وی یعنی دځمکی اندازه‌دبر خوالو په شمیر پوری مربوطـه ده ، دچا د اولاد شمیر چی زیات‌وی‌دهغه میراث په ډیرو ورو ورو‌برخو ویشل کیږی‌او دچا چی د اولاد شمیر لږوی ، دهغه سره ځمکه زیا تـــه وی. په هغه‌صور ت‌کی چی‌داولادونوشمیر زیات او ځمکه په ورو توتو وویشل شی دکوم یوه حصه دلږوالی‌اوزیات ویش له امله د ګو زا ر ه ورنه وی ،نو ځکه جرګه د کلیـــودښ ځای یوه برخه هغوی ته ورکوی اودهغه له مخی پلرنی ملکیت سره بیلوی .

## دویشی لاری چارې :

ویش دول داسي دی چي جرګه ، دکلي خان اونور مخور هغه ځای ته یي چي هلته ځمکه ویشل کیږي اودویش ور ځمکه دپړی په واسطه چي یو تاکلی اوږد والی نه لري اودپنځوسو اوسلو فوټو تر مینځ اوږدوالی لري.دځمکی دانداژی کولو له پاره استعما لوي .هغه ځمکه چي دویش له پاره اندازه کیږي دونه په نا مه سره یادیږي .

لومړی دډغي ویش ور ځمکی څلور کونجونه سره برابر وي او بیا یي دپلرنی برخی سره په برابر دول ویشي .اوکله چي ټول پټی وویشل شی په دغه وخت کی دکرنی ور له هغی شریکی ځمکی څخه دسیری ځمکه بیلوی اوورپسی برخه او پټی په ورو،ورو ټوټو ویشل کیږي کله چي په دغه دول ځمکه په تاکلی شمیر وویشل شی. نو بیا اکثرا پچه ور باندی اچول کیږي اوبیا هریو برخه وال خپله برخه تر لاسه کوي .دپچی اچولو دول یي څرګند دی اوولضح کولو ته یي ضرورت نه شته پسه سر کاری سیمو کی عموماً او په غیرمقبوضه سیمو کی ټل هلته چي خلک په خیلو انو ویشل شوي دي اوددوی دځمکو تر منځ توپیر موجودوی نو د لسو یا دولسو یاد تاکل شوی وخت تر تیریدو وروسته خیلو نه په خپلو منځو کی ځمکی سره پدلوی اوبیا دغه بدله شوی ځمکه دبرخی په اساس دپورتنی دود له مخی دکور نیو ترمنځ ویشل کیږي ،په دغه تبا دله کی دکلی داوسید ونکو داوسید لوځمکی هم سره مبادله کیږي .ددغه ویش ،پلویان په خپلو کلیوکی یوازی تش کورونه پریږدي او خپلو نویو ویشل شویو ځمکو ته لیږدی که په غور سره ولیدل شی نودغه دود نیمګړی اوبی ګټی دي ځکه چي ددغه ویش او تبادلی دانتظار په سبب هیڅ څوک دزړه له کومی دخپلی ځمکی دا بادولواوښه کولو له پاره کار نه کوي نو له همدی کبله ددوی عاید او ګټی ته زیان رسیږي .

دانګر یزی سر کار دیوسفز یو په سیمه کی اوس دقبیلوی ملکیت تبادله هیڅ نه شته او څو کلن معیاری ویش هم دزړو بی دسیمی نه پر ته

دسرکار تر لاس لاندې نورو سیموکی لهٔ مینځه تللی دی . ټول خلك
پښپلو مقبوضه ګلیو کی په خپلو پلرنیو برخو باندې ژوند کوی او په ټولو
ګلیو کی ملکیت دول غیر قطعی ملکیت‌دی دزروبی سیمی مالکان چی باجوړی
بلل کیږی په هغوی کی دملکیت دویش یو عجیب دود موجود دی ، په دی
تر تیب چی هر لس کاله وروسته دکلی ټوله ځمکه مشتر که او ټول
نارینه غړی یې چی بالغ او یا دبلوغ مرحلی ته نږدی وی دسړی په سر
دیکړی په دول هر یوه ته ونډه بیلیږی‌او هری ، برخی ته متهی وایی ، چیرته
چی ځمکه دکوزاری له پاره کافی‌وی هلته په څړ ځایو نو کی هیڅ یو
تن دټولو دخوښی نه پرته کښت اوکرنه نکوی او دهغه کسانو چی ځمکه
یې بره او دکوزاری له پاره کافی نه وی نوهغوی خپله برخه په اجاره
یا تیکه ورکوی اوپه خپله دنو کری‌له پاره بل ځای ته ځی . یا دهندو-
ستا ن دلیدنی په شوق رو هیلکندواودهند نورو سیمو ته سفر کوی ، او
کله چی ددداسی بی وسه کسان ډیروی نو هغوی دټولو مالکانو دخوښی
په اساس خرابه اوبنجر ځمکه کی ځانته باندې جوړوی او دکلی خان
دهغو باندو ملك هم بدل کیږی ، د باندو اوسید ونکی اکثره کوجر ، همسا-
یه یارعیت وی اود ښینتنو څخه ځمکه په اجاره ، برخی اویا نورو ډولو نو
په اساس دکرنی له پاره تر لاسه کوی ، ځینی داسی باندې هم شته
چی هلته میا ، سید یا بل کوم روحانی‌شخص موجودوی چی هغوی ته کلیو-
الو ځمکه وربښلی وی ، چی ددغو باندو حال دهغو باندو په نسبت چی
وړاندی ذکر شوی ښه دی ، داځکه چی هغوی ته دمذهب داحترام په سبب
څه تکلیف نه ورکوی ، دباندو دزیاتی‌ابادی په سبب ملك ډیره تر قی
کوی لکه چی دسر نار د زیار اوهڅو په سبب دبا ندو د زیا توا لی
له امله ډیری خرابی اوبنجر ځمکی په مزروعه او دکرنی وړ ځمکو
باندی بدلی شوی دی .

## داستو ګنی دځایو نو ویش :

داوسید لو وړ ځمکی هم دنورو مور وثی ځمکو په شان ویشل کیږی
او په دغه وخت کی دبرخی دکلمی په ځای دچم یاکندی کلمی دیوی خا-
صی ځمکی داوسیدو نکو له پاره‌استعما لیږی چی دمحلی معنی لری او
یوه کور ته کنډر وایی چی په هغه کی کوټه او غولی دواړه شامل دی .
هریو کندی له ځان نه بیل ملك لری‌او ملك دقبیلی دخان تر لاس لاندی
وی ، هر کندی ځان ته بیل جو مات اوبیله حجره لری اوپه غرقبو ضه
سیمو کی برج هم لری .

داوسید لو ځای ویش هم دشیخ ملی ددفتر یعنی دپلرنی ملکیت په اساس تر سره کیږی . په هر اندازه چی یو برخه وال دمزروعی او دکرنی ور ځمکه لری په هماغه تناسب داوسید لو ځمکه هم ورکول کیږی او کله چی دیوه برخه وال ملکیت دبیعی اونورو عواملو په سبب له ده نه بل چاته انتقال وکړی . نومزروعی او داوسیدلو ورځمکه دواړه ورته انتقالوی. دهر ښاخ داوسیدلو دبرخی دفترهم بیل بیل ویشل شوی دی .

## جومات :

دجومات اختیار اوواک دامام پــه لاس کی دی او څو تنه ملایان او طالب العلمان هم دلته موجود وی ،هغوی په وظیفه خوری او د ځمکی په سیری خپله گوزاره کوی. د ښندی او سیدونکی هم دخیرات په دول هغوی تــه یو څه ورکوی .طالبان دمساپرانو له پاره دکند یو نه د وظیفی ( یعنــی د. دوډی غوښتنه کوی ،دجو ما ت ملاخلکو ته په جما عت لمونځ ادا کوی. نکاح تړی ،او خلکو ته قران مجیــدور زده کوی ،همدا راز کوم نوی ماشوم چی دنیا ته راشی دهغه په غوږ کی اذان کوی او هلکا نو ته لمونــځ ور زده کوی او دټولو فرایضو نــه یی خبروی دجنازی لمو ځ هم دملا امام له خوا سر ته رسیږی چـــی په داسی وختونو کی خلك هغه تــه خیرات هم ور کوی ،خو له بده مرغه ځینو ملایانو او طالبا نو سلوك داسی ناوړه دی چی په بچه بازی اودهلکا نوسره په مینی لاس پوری کوی * ،

که څه هم په ښکاره د و ل خلکـو ته ځانو نه پاك او پرهیز گاره ښیی او د ظاهر فریبی له پاره دحجرو اوعاموخلکوله کښیناستو څخه کر که کوی ،ښایی دهغوی نه به دا خبــره هیره شوی وی چی خدای (ج) د زړو نو مالك دی او زیاتره مشهورو فا سقانو ته چو تیا خیل وایی .

## حجــره :

حجره دکښینا ستلو یو عام ځــای دی .د حجری کوټه لوی ،انگړ اوطویله لری چی اکثراً د کلی د ملــك ملکیت اویا د کند ی د خلکو وی . د حجری پرخاوند باندی لازمه ده چــی میلمنو او مساپرا نو تــه دوډ ی او هوسا ځای ورکړ ی . دکلی اوسیــدونکی او رعیت په خپل وار سره میلمنو ته کټ ،بړستن اوډوډی حیوا نا توته واښه ورکوی . دکندی نارینــه په حجره کی سره راټو لیږی اوهلته شیبه په شیبه چلم څکوی او دکرنی، مالداری او نورو چارو په باب سره خبری اتری کوی . د کندی هغــه

---

* د مولف دا تور که ربښتیــــا کیږی نو په خورا دیرندرت سره به وی .

ځوانان چې مجرد وي هغه تل په حجره کې ویده کیږي ، ځکه چې د سیمې درواج له مخې هيڅ پهلوان یا میړنی په کور کې استراحت نه کوي ، سره له دې چې په کورنو کې بیل بیل او کوټه ځایونه نه وي او درواج له مخې هم په کور کې دحجرې دسرې ملاسته او ویده کیدل عیب او شرم گڼل کیږي . په حجرو کی کله کله چاربیتې او لنډۍ هم ویلې کیږي .

## برج :

برج دملك دکور دحفاظت او ساتنې په غرض جوړ شوي وي او په هغو کلیو کې چې خان او سپیږي هلته دګنډي دبرج نه پرته دخان د ګنډ ي نه ګرد چاپیره دکلا په دول چاردیوالی جوړ شوي وي چې دکړي په نامه بلل کیږي .

دخان او ملك عهده عموماً میراثي شکل لري او په یوه کورني پورې مربوطه وي ، خو کله کله خانی دخان دکورنی د غړو دکم عقلي او یاکمزورتیا په وجه بل چا او یا بلي کورني ته هم ورسیږي او داسي کوم خنډ شته چې هو ښیار او پوه سړی دې دخپل محنت او کوښښ په سبب ملك نه شي . دخان او ملك اختیار محدود وي او دعوا مو دارادي اوغو ښتنې په خلاف هیڅ نشي کولای .

## جرګه :

جرګه دعوامو دارادي او غوښتنې مظهر دی. جرګه دقبیلي دسپین ږیرو او ملکانو یوه مجموعه ده .د جرګه والو شمیر محدود ندی او له ځلورو ګنو نه نیولي تر زیات شمیر کسانو پورې پکې کدون کولای شي .که څه هم جرګه له پخوا او لرغو نو زمانو څخه رواج لري .خو په اصل کې په زور پورې تړلي ده او هره څو اچې زور وره وي نو جرګې ته ځاره نه پړدي او دخپل قدرت په اندازه پخپله خوښه او غوښتنه کار کوي .که د کومې قبیلي ددوو تنو تر منځ کومه شخړه ،را پیداشي ،نو ځینې وخت ددوا ړو دلو ددوستانو لخوا ددوي تر مینځ سوله کیږي او دواړه خوا وي راضي کوي ،خودغه شخړې اکثر آ دملکانو او سپین ږیرو لخوا دپښتو نولي درواج مطابق فیصله کیږي .دمثال په دول :

که زید دعمرو غوایی ووژ نی نو جرگه داسې فیصله کوي چې عمرو دې هم دخپل غوایي په بدل کې دزید یو غوایی ووژنی او همه یې هم ووژني او ددغې فیصلې نه ټول خلک راضي دي یا که چیرې زید دعمرو چریکار * ووژنی نو زید باید عمرو ته یو چیریکار ور کړي که چیرې زید عمرو ووژني او جرگه زید دعمرو وارثانو ته په لاس ور کړي نو اکثراً ددوی ترمنځ سوله کیږي او که ونه سپارل شي ترهغې چې دعمرو وار ثین بد له وا نخلي نو دد وی ترمینځ دښمنی جاري وي. کله چې په دووقبیلو نی په همدی دول دښمني پیښه شي نو دهغې رفع کول اوددوی تر مینځ فیصله ډیر گران کاردي او تر څو پښتنه ددوی تر مینځ دښمني روانی وي او دا دو ل دښمني ډیری لږي فیصله کیږي. له همدی کبله ده چې ډیو سفزیو په قبیله کې کور نی دښمنی له پخوانیو زمانو څخه راپاتې دي ، دهر کلي او قبیلو تر مینځ دښمني موجو دی وی اودوی دخپلو شیرو دبدلولو نه پرته بهر نشول تللای.

وړاندې تردی چې انگریزی سرکار په فعالیت پیل وکړ ډیو سفز یو په سیمه کې چا بې له وسلې نه حتی دکرني چار ی هم نشوای تر سره کولای او دفصل سا تنه هم پرې دلې وسله والو کسا نو ته ور په غاړه وه.

همدا رنگه حیوا نات هم په څرځا یونو کې دمحا فظانو په ذریعه پیول کیدل. اوس په سر کاری سیمو نی دغو احتیا طو نو ته هیڅ ضرورت نه لیدل کیږي. دانگر یزی سر کار ښه انتظام دخلکو دسا تنی اوامن له پاره ډیره پولا دی سپرحیثیت لري او ددغه سپر ترحما یت لاندې چیر ته چې خلک وغواړ ی هلته ژوند کولای شی او حتی ما شو ما ن هم حیوانات څرولای شی. هلته چې به وړاندې بدر کې اوپهر ی د حفاظت لپاره ټاکل کید لی او دپخوانیومحا فظو دلود تورو او تو پکو په ځای اوس هلکا نو دمالو نو د څر ولو لپاره له ځان سره وارهواره لرگی ساتي او هر سړي د خپل کور فاعل مختار دی.

---

* چریکار هغه بزگر ته ویل کیږي چې قلبه ، تخم او سره دځمکې دخاوند په غاړه وي او چریکار ته دځمکې دحاصلو څلورمه یا پنځمه برخه ورکوي. (ژباړونکی)

## پر رعیت با ندی دما لکانو حق:

همسا یکان دپیدا وار و ددریمی او څلورمی برخی نه پر ته مالکانو ته نور محصولات هم ور کوی. خان دلوټ اوتالان له مال څخه څلورمه برخه اخلی. دافغا نانو (پښتنو) سیدا نو او ملا یا نو نه پرته خا ن دنورو همسا یه وو څخه دواده، او دلوگی په نامه یوه اندازه محصولات اخلی. چی مقصد یی دهریوه کو رڅخه دکور شمیر نی په نا مه یو ډول کلنی محصول دی. همدا رازنا غه هم له مجرم همسا یه نه ترلا سه کوی. په هند وانو با ندی چی کوم محصول ټاکل شویدی هغه ته جز یه ویل کیږی که څه هم دمحصول اندازه ټاکل شوی ده، خوپه حقیقت کی داخیستونکی دزورواو دورکوو نکی په وسی پوری اړه لری اوبله کو مه منصفا نه لاره نشته. په سر کا ر ی سیمه کی میجر لمسډن هرډول محصول بند کړ، خو یوازی هغه یی پریښو د چی ډیر ضرور و اودهغه دبند یدوپه سبب دمالکانو حق تلفید ه، اکثراً رعیت مالکا نو ته تر او سه هم تا کلی محصول ورکوی.

دبایی زیو په تپه کی د کورونوشمیر لو او دځمکی دمحصول سره یو ځای کول سم عمل نه کنهل کیږی دا ځکه چی دکورو دشمیر لو محصول د ما لکا نو حق دی اوسرکاریوازی دزراعتی ځمکو محصول راټو لوی.

## خویو نه، عادتونه اود ژوندځر نګوالی:

یوسفزی اکثراً متوسط اندا مونه، غنم رنګه ، دلوړو ونو ښښتنا ن او زړور دی. دوی عمو ماً دکر نی په چارو او یا په ما لداری بو خت دی ، له همدی کبله دوی بی سواده دی. دمعتبرو کورنیو غړ ی هم دعلم اوپوهی سره مینه نلری. که څه هم ملایان دنورو خلکو په نسبت باسواده اوهم په هرلوی کلی کی پودعالما ن شته ، خو په عمو می ډول دلو یو عالما نو شمیر لږ دی .

یوسفزی خپل قوم پر نورو ټولو قومونو ډیر لوړ ګنی اود ځا ن ستا ینه عیب نه بولی . دوی مغرور، تمه ناك حریص اوکینه کښ خلك دی او خپل پور وړی * نه ښښی اوتر هغه یی چی لاس رسیږی دبدل اوغچ اخیستلو اراده په زړه کی ساتی. له بله پلوه دوی ددا سی پاکو زړو نوخاو ندان دی چی حتی بیهوده خبری او واهیات هم

---

* دلته دپوروړی نه مقصد یوازی مادی پور نه دی بلکی مقصد یی مادی او معنوی دواړه پورو دی. (ژباړونکی).

منی. دوی په فال لیدلو او پښتنه ستوږ وبا ندی دبخت او طالــــع
معلو مولو عقیده لــــری .هغوی دملایا نواوبزرګانو ډیر درناوی نوی
او څه چی ووایی دوی منی دوی په زیارتو نو او خانقاوو با ندی ټینګه
عقیده لری . ښځی او نارینــــــــه هلته ځی، شکرانی ورکوی اود عا
ګانی کوی او ددوی دغه عقیده دزړه له کومی عقیده ده نه په ظاهری ډول،
همداوجه ده چی دوی علما وو او خانقـــا وته ډیر خیرا تو نه ورکوی.
دوی د دومره آزادی طبعی خاوندا ن دی که هغوی ورته داسی امر هـــم
وکړی چی دمذهبی احکا مو ســــــــره مغا یرت و لری نو هغوی یــــــــی
سمدلاسه سر ته رسوی. په دوی نی دنفس پیروان هم ډیر دی.

# مذهب

په اصل کی دوی ټول سنی مسلمانان دی او ځانته چار یاری* وایی . دوی په شرعی فرایضو بنه پوهیږی . لمونځ ، روژه ، حج او ذکات فرض گڼی . په دوی کی دهغو کسانو شمیر چی لمونځ نه کوی لږ دی . په همدی ډول دهغو کسانو شمیر هم ډیر نه دی چی څنګه وخته لمونځ اداء او دکوم وخت لمونځ قضاء نکړی .
دوی هغو کسانو ته چی لمونځ نه کوی په بده ستر گه گوری . دوی ډیر خیراتونه ورکوی اوډخپلی وس په اندازه دجومات ملا نورو ملا یانو ، کونډو ، یتیمانو ، ړندو ، شل اوشوتو ضعیفو او مفلسانو ته په دوه ډوله خیرات ورکوی ، لومړی د ذکات په ډول چی په دوی باندی فرض دی . دویم خیرات چی یو اختیاری کار دی . دوی کله کله په خیرات کی نو موړو خلکو ته نغدی روپی

* اوس دکوتهه داوسیدو نکی ملاسید میر پیروا نوته نور خلک وها بیا نوا یی او دسوات صاحب پیروان چی اهل سنت او جماعت دی دهغوی سره سخته دښمنی لری . دملا سید میر پیروان اکثراً داتمانزی قبیلی او دنصر الله خان گهری د اسمعیل زی کورنی ده ، پاتی نور ټول خلک د سوات صاحب پیروان دی . (مؤلف)

هم ورکوي، خو اکثرا غله ورکول کیږي، په یوسفزیو هیڅوك د پیداوار وعشر (لسمه برخه) نه ورکوي.

دوی د روژې په مبارکه میاشت کی په ښه دول سحر روژه نیسي. په دوی کی روژه خوار ه لږ دی، خو مسافرانو او هغو لسانو ته چي بالغ نه وي د روژي خوړ لو اجازه شته. د حج مبادله په دوی کی زیاتره په دی دول تر سره کیږی. که څوك پخپله حج د اداء کولو لپاره مکي معظمې ته لاړ نه شي نو دځان لخوا استازی هلته لیږي او کله داسی وي نو شول نو شاو خوا خا نقاء ووته ځی، په تیره بیا د جمعی په ورځ اکثرا زیارتونو ته ځی. دپیربابا خانقا په بونیر کې ده او دوی دختکو کاکا صاحب ته هم دیر اعتقاد لري.

دځان ستاینه :

په یوسفزیو کی د ځان ستاینه او غرور زښت دیر دی. دوی تل دخپلو لویانو او دخپلې خوا نمرد ی ستاینه کوي او بیا تر نورو وروسته وایی چی ولی زه پښتون نه یم؟ له دی کبله چی دغه قبیله په هغه ملك او دهغو خلکو په مینځ کی استوگنه لری چی دهغو ی د پلرونو له خوا په تیرو وختو نو لی فتحه شوی ده، نو ځکه دوی نورو ته په تیټه او خواره ستر گه گوری او د تکبر او غرور له مخی په خپله قبیله کی هم بل څوك له ځا نه سره سیال او برابر نه بولی او هر یو خپل ځان له نورونه غوره گنی. په دوی کی کینه هم دیره ده او دیوه کتنه د بل دستر کو اغزی وی. که څه هم دقبیلو دمعتبرو خلکو سره دیره ښه گوزاره کوی، خو تر لاس لاندی غریبو خلکو پا ندی تر څو چی یی وسه رسیږی ظلم او تیری کوی. کله چی ابدالی احمد شاه پیښور ته راغی نو هغه دملك دانتظام او دخلکو دخو شحا لولو له پاره یوسف زیو، خلیلو، مومندو، ختکو او نورو قبیلو ته د برو درانیو خطاب ورکړ، دوی په دغه خطاب او لقب باندی فخر کوی. دیو سفز یو دگاونډ یو سیمو خلك وایی چی یوسفز ی بی رحمه او بی مروته دی که څوك له دوی سره نیکی و ړی نو دغی ښیگڼی بدل ضرور اولاز می نه گنی.

میلمستیا :

په دوی کی میلمستیا چی دوی پخپله ژبه کي ورته میلمستیه

وایی ډیر رواج لري .میلمتو ته په حجره کی دوډی او کټو نه ورکول کیږی یو محل پخپله مؤلف دیوسفزیودمرغوز په سیمه کی میلمه شوی دقدر وړ میلمه ته د چرګ ښوروا، حلوا او غلمینه دوډی ورکوی، دوی دمیلمه ډیرعزت او درنا وی کوی .دکور خاوند اکثره پخپله یا دهغه زوی یا ورور میلمه ته دعزت لپاره دوډی راوړی اولاسو نه یی پر یمینځی .دوډی تل دکوردښځو تر نظر لاندی پخیږی .هغه، مساپر چی مفلس وی هغه جو مات ته ځی او دهر کور نه غو ښتل شوی دوډی (وظیفه) خوری که څه هم دوی میلمه پال خلك دی خو که په دی پوه شی چی دکوم میلمه په لو تو لو کی ددوی کته ده او په وا تلو نکی کی دده سره ددو ستی او اړیکو کوم امید نشته ،نو کله چی میلمه رخصت او ددوی له سیمی نه بهر شی نو هغه لوټوی ، په تیره بیا امازی، له همدی کبله که دکوم مساپر سره څه وی نو دهغه سره بدرګه ضروری ده. بدرګه دپیسو او اجوری په مقا بل کی سر ته رسیږی.

دغه بدرګه دهغی سیمی دخان یا سردار نه غوښتله کیږی. هر خان دخپلی قبیلی تر حدود و پوری واك او اختیار لری او تر هغی وروسته له دویم خان څخه بدرګه غو ښتله کیږی خو په اوسنی وخت کی په دوی کی د بدرګی روا ج نشته .

**دغلا مبا د له:**

---

که دیو ښا خ یا قبیلی کوم یو تن د بلی قبیلی کوم څاروی او یا بل څه غلاکړی نو دمال خاوندان اختیار لری چی د هغی قبیلی نه چی غلا یی کړی ده مال او نور شیان دخپلی غلا شوی مال په بدل کی واخلی او هغه څه چی لومړی غلا شوی دی هغه ته دا ړه یا دو په ویله کیږی او کله چی دویمه قبیله هغلا شوی مال په بدل کی مال یانور شیان تر لاسه کړی هغه ته بوته یا برمته وایی .که دیوی قبیلی کوم سړی دبلی قبیلی کوم سړی ته پور ورکړی او لومړی سړی پور ادا نکړی نو پورور کوونکی دداسی دول برمتی حق لری .

## پښتني ننګ (غیرت):

په دوی کې پښتني یا افغانـــی ننګ ډیر دی. اودایو عجیب رواج او دود دی . پښتني ننګ له ننواتي ، بدل او میلمستیا څخه عبارت دی. ننواتي هغه دود ته وائي چې کـــه کوم سړی دچا کورته پناه وروړي نو دکور خاوند باید هغه ته پناه ورکړي، که څه هم دهغه دښمن وي . دغـــه پناه ورکول یوازې دکور ترحدود و پورې وي. که له دغه څخه بهر او یادکور نه ووزي نو بیا دکور پـــه خاوند باندې دپښتني ننګ څه ذمه واري نشته اوبیا دپناه ورکوو نکي او نورو اختیار دی چې په هر ډول یې زړه غواړي هماغسې چلند وکړي . دغه کورته دننو تلو ننګ (ننواتي) په دوی کې تر دی حده مراعات کیږي چې په دغه باب داسې ویل کیږي چې که چیرته خوګ چې تربل هرشـــي پلید او مردار دی ددوی کورته پناه یوسي نو هغه ته هم پناه ورکول ضرور دي .

د بدل له مقصد معاوضه ده یعنې دهر یوه زیان بدل دزیان رسوونکي نـــه اخلـــــي . د وی د ا ډول بـــد ل ا خیستل ضرو ر ګڼـــي کله چې یوا نسان ووژل شي نود هغه په بدل کې باید هغه بل سړی ووژل شي. چې دغه عمل دقصاص په نامه یادیږي .

ملمستیا په دې ډول ده چې میلمنو اومسا پرانو ته ډوډې ورکول کیـږي . که کوم پښتون په پښتني ننګ باندې عمل ونکړي نو هغه نالایق شمیرل کیږي، په تیره بیا دبدل اخیستلو دود په دوی کې ترد ی اندازې چې تر ډیرو نسلو نو پورې یې سلسله جاري وي او که چیرې بدل وانه خیستل شي نو خپلې اولادې ته وایي چې هغه دی هرومرو باید بدل واخلي .

## ولیدنو، کتنو دود :

کله چې ډوی په خپل منځ کـــې سره وکوري ، نولکه څرنګه چې د تولو مسلما نا نو دستور دی ډوی هـــم وایي السلام علیکم او ددې ځوا ب دادې چې وعلیکم السلام .که دسلام ځواب ور نکړل شي پرته له دې چې

شرعي حکم يې ترک کړې دی خلک هم ورته په بده سترګه ګوري.
که کوم دوست يا ملګری تر ډېر ې مودې وروسته يو بل وګوري نو اکثراً يو بل ته غاړه ووزي او حپل سرونه د يو بل په اوږو بودي چې دا عمل دری ځله تکراريږي ،دوی په دغه وخت کې يو بل ته وايي چې جوړ يې ،ښه جوړ يې، تکړه يې، خوشحال يې، تازه يې،ښه تکړه يې،روغ يې که څه د بلې خوا د ځواب انتظار نکوي خو دو يم تن هم همدا رنګه الفاظ اداکوي . تر دې ورو سته په کټ با ندې کښيني او د يو بل سره د کور ونو اوډ و ستاو د حال او احوال په باب پو ښتنې کوي او چلم غواړي. کله چې پرلاره با ندې څوک تيريږي او ياکوم تن په يوې کوښو او يا بل کوم کار با نـد ې بوخت ووينې نو هغه ته وايي چې ستړي مه شې او يا وا يې چې (په ښه چار) او هغه ځواب و رکوي چې لوی شې يا مه خواريږې . کـه څوک د دوی کليو ته لاړ شي نو هغو ی ورته وا يې هر کله راشي نو هغـه په ځواب کې ورته وا يې نيکي درشه ياهر کله اوسې اوياداچې خدای دې وبخښه ، خـدای دې لوی که يا خدای دې وسا ته . کلـه چې څوک رخصتيږي او يا چير تـه ځي نو هغه ته وايي چې خدای پـه امان او د هغـې ځواب دی چې خدای دې در سره نيکـي وکا او داټول دعا ئيه الفاظ دي .

**د ښځو ننګ :**

په دوی کې د ښځو ننګ ډېـر اود پرده داري دود او رواج هم پـه دوی کې عام دی . هغه ښځې چې په لو يو کورنيو پورې اړه لري د پردې نه پرته بهر نه وځي اودعا مـو خلکو ښځې که څه هم داو بـو د راوړلو او نورو ضروري کارو نـو له کبله بهر ته ځي خود پر د يو خلکو نه خپل مخونه پټوي .دوی اکثـراً اوبه ما ښام اويا دسهار په تياره کې راوړي. دوی په خپلو ښځو با نـد ې ډېره پا ملرنه کوي که د دوی ښځې د کوم پردي سړي سره وغږيږي نو هغه وهي اود بد کاري په سبـب يې وژ نې.
دوی د ښځې ،مو راو خور لـه ښکنځلو څخه ډېره بده منې او هغـه څوک چې داسې ښکنځل وکړي هغـه ته د مرګ سزاور کوي.
خو په دوی کې احمقې او متيـز ې ښځې هم شته او په پرده کـې د سـړي سره آشنا يې او مينـه کوي .

## داستو ګنی دځایونو ځرنګوالی:

ددې قبیلې اکثره خلك په خاور ینواوغریبا نه کورونو کې ژوند کوي دمغوداوسیدلو خونې وړې اودحیوانانو دکثافت په سبب بوینې دي، په هر کورکې له یو څخه زیاته کوټه نه وي ځینې هغه خلك چې دغرونو په باندو کې اوسیږي هغه په څپرو کې خپله ګوزاره کوي.

## خواړه:

ددوی خواړه کوم داسې ښه شی نه وي، په دغه برخه کې دخپلو ځمکواو حیوانا تو دحاصلا تو څخه ګټه اخلی، دسوات خلك جوار او وریجې ډیرې خوري. دیوسفزیو په علاقه کې دغنمو، اوریشو دوډۍ اوباجره ډیره خوړل کیږي، بوره، کوره، شات اوزیږغوړي هم ډیر استعما لیږي.

یو سفزی ډیر تمباکو مصرفوي او ددوی د اکثره خلکو نیلی رنګه دستما لونه دتمبا کو نه خالی نه وي، اوزیاتره دغه ماده په چلم او نصوارو کې استعما لیږي، په لږ اندازه اپین هم په دوی کې خوړل کیږي خو بنګ او چرس دځینو بدکارو او بد عمله خلکو له خوا څکول کیږي، نوېی تورنی دمیلمستیا په وخت کې دښې دوډۍ دپخولو کوښښ کوي.

## پوښاك:

دوی اکثره سپینی پګړې په ګردډول سره تړي، اوږده او پراخ کمیسونه اغوندی چې پند یوتـــه یې رسیږي اوهمداراز لوی پرتوګونه اغوندی دا ددوی تول کالی دي، دوی یو نیلی رنګه لونګی او تور دستمال په خپلواوږوا چوي، دغه تول شیان دوطني ډیلو تو کرانو څخه جوړوي، خو د خیبرودنه ښکاریدو له کبله دغه توکر ته تور یا نیلی رنګ ورکوي، ملکان اوخانان هم همدا ډول جامې اغوندي، خو دمغوی جامې د ښو توکرانو څخـه جوړی شوې وي، دوی دلته (سان) توکر هم استعمالوی، ښځې اکثرا چار خانه ټکرې په سروی چې عموماً د یــــو ټکـــر او یوه جنس څخـــه وی دوی او ږده کمیسونه چې پراخ لستو نی اوتور نګ لرې اغوندی پرتګوته یې چین داره او د یوه ډول نیلی رنګه ډېسل څخه جوړ شوي وي.

دا خلك د بدن پا کوالی ته زیاته پا ملرنه نه کوي اودلاس وینځلو، اودس او نورو مذهبی احکا موپر تــه چې وا جب دی نور خپل ځانو نه کم وینځی، نارینه خپل سرو نه خریـی اونوی ځوانان تریوی موډی پورې خپلی ویری خریی دښځو وینبتـــه اوږده او دواړه زلفی چوټی کوي لوپوښی او کینه خوا یې په سینـه با ندې راځوړ ندوي.

## شوق او طبیعی عادتو نه :

د دغه قبیلی شتمـــــن خـــــلك بـــــا ز ، اوعوام خلك یی دښکاری سپی او تو پك لـه ښکار سره ډیره مینه لری. دوی لا ر وهنی او دحیوانا تو غلاوی هم کوی اولمبو رونه هم وهی اوځینی یی په دغی حرام خوری با ندی خپله گوزاره نوی دو ی دبی ړیرو هلکا نو سره مینه او دهغوی سره دوستی اویارانه کوی تر دی چی ددوی دغـــه خصلت تربچه بازی پوری رسیږی، هغوی دښاسیت سره ډیره میـــنه لری. اوځینی خلك دسر دار ی کارونو سره هم مینه لری، دانگریزی سر کار په پلی پوځ کی دیو سفزیو زیـا تشمیر خلك لیدل کیږی اوځینی یـــی ډیر ښه سپا هیان دی ، دوی پـه مطلق ډول لاسی کارونه نه کوی، که څه هم تجارت ته په بده ستر گه نه گوری خو اکثراً دوی په تجار تـــی مسا یلو نه پو هیږی.

یوسفزی له خوښی او ساعت تیری سره مینه لری، ساز ، ســـرود ، شعر او غزلی خو ښوی ،

ددوی ساز غږوونکـــی یو ډو ل مخصوص خلك دی چی د نا یانو یادمانو په نامه یادیږی اوهغوی باجه ،نغاره، سورنی، ډول، سارنـــک او ربا بو نه وهی، خو پښتانه په خپلـه هم رباب غږولی شی اودهغه سره یو ځای غزلی هم وا یی ،پښتا نـــه درباب وهل شرم نه گنی ،یوسفزی دیوی نو نو په حال او همدارازپـــه حجرو او دسفر په حال کی هم غز لی اولندی وایی چی دالندی اوغز لـــی په پښتو ژبه دسوزنه په ډك او نوږ اوازویل کیږی ، دمان یا مظر بـــا ن کیسی او نکلونه هم کوی او په خپله هم سندری جوړوی، دهغوی په سندرواکثر آدبهادر انو او نامتو کســـا نو اوهم دجنگونو ذکراوصفتونه را غلی وی، مگر په دوی کی عاشقا نه سندری اوهغه چار بیتی چی د تو کو اوساعت تیری له پاره ویل شوی دی هم ډیر ی دی. ددوی پرځینو سندرو کی دشرم او بی حیا یی کلمات هم شته دی ،

## دښځو عادتونه :

ښځی په نڅا او سندرو ویلو کی دنارینه وونه بیلی وی، اوځانتـــه جلا مجلسو نه جوړوی ،خود غـــه مجلسو نه داختر ونو په ورځو او په ودونو کی وی، له دی نه پر ته دوی عموماً دکور په معمو لی چارو بوختی

وی اوله یوه کورنه بل کور تــــه ځی‌او خبری کوی،همدا راز دوی‌پــه خپلو منځو نو لی جنګونه هم کــــوی‌او تقریباً تولی بی ســواده دی ا و ښایی ددوی نر منځ یوه یا دوه باسواده وی کله چی دوی د با نــدی وځی نو غلی‌وی او له پردیو او غیـرمحرم سړیو شخه مخونه پټوی.

دیوسفز یو ښځی زړه وری دی‌اوخپل‌میړونه د شخړو او جنګونو پــه وخت کی تشویقوی او هغوی ته‌دا دګیر نه ورکوی. دښځو معمو لی ا و ورځنی چاری په دی ډول دی .

داوبو راوړل ، دغوا ګا نولو شل،دډوډ ی‌پخول په میچنه با نــد ی دخوراکی داواوړه کول اودتارو نووریشل .

دشتمنو کورنیو ښځی هم دخپلــی‌خوښی سره سم دکور کارو نه تــر سره کوی خو هغوی زیا تره خپــــل وخت په سینګار دګاڼو په استعمال،

دکالیو په اغوستلو او دزلفو پــه جوړولو تیروی . په دوی کی پـــه نکریزو باندی دلاسو نو او پښی‌سره‌کول اوپه رنجو با ندی دستر کـــو

تورول ډیررواج‌لری ،دوی‌خانقا وو ،اودخپلو نږدی خپلوانو قبرو نــه ته ځی په تیره بیا د جمعو په ورځوپه حد یره کی زړی او ځوا نی ښځـی

ډیری لیدل‌کیږی،چی ځینی غلی ا و ارامه اوپه قبرونو باندی ګلان،تیږی او ټیکری ږدی او ځینی یی‌په قبرونو باندی ژاړی‌اووير کوی او دسوز نه په ډك غږ یی یادوی ،دا سی‌ښکار ی‌چی‌د مړو په، باب افسوس‌اوویــر

یوازی دښځوکار دی . ددوی دغــم اوویر رواج داسی دی کله چی‌څوك مړشی نو دکندی تولی‌ښځی او نوروګاونډیان دمړی په کور کی راټو –

لیږی اوهلته ژړاګانی کوی، دسرونوویښتان شکوی او ویر کوی په دغــه وخت کی پښی په ځمکه و هی حتـی‌چی د ډیرغم په وخت کی دغمجنـــی ښځی‌خوله او سینه دډیرو وهلوپه‌اثروپړسیږی اوشنه شی .

ددغو ویر جنو ښځو په سر کــی‌یوه با تجربه ښځه دمشر ی پــه ډول دویر ږغونه اوچتوی اوددی پــه غږ پسی تولی ښځی‌چی‌ددی ترشاوی دا آواز اوباسی ها ی‌های ،هو ای،دویرنه وروسته مړی‌ته غسل ور کوی‌او

ددغه مړی‌داغوستلو جامی مړی‌پریولو نکی‌ته ورکول‌کیږی چی بیامړی‌ته خپله وروستی جامعه (کفن) ور اغو ند ی‌او پرکټ باندی یی ځملو ی‌اوبیا یی ابدی کوریعنی ګورته وړی‌او هلته په ابدی خوب ویده کیږی. دمــړی

تر ښخولو وړاندی یی دوستان‌هدیری‌ته وړی اودکندی امام د جنازی‌لمونځ اداکوی ورپسی‌جنازه په لحد کــی‌ایښودل کیږی اومخ یی دقبلی خواته

ګرځول کیږي اوپه لخد با ندي‌د تیږ و یالرګیو ترایښودلو ورو سته خاورې
ور باندې اچوي او قبر د کب‌د شا په شان جوړوي او ورپسې اسقاط* ویشي
او بیا خلک بیرته راستیږي اود مړ ي‌وارثین کورته ځي او د فاتحې‌اوتعزیت
له پاره هلته کښیني ، ښځې تردریوورځو پورې ویر کوي او سړي‌دفاتحې
له پاره چې لاس نیول هم ور ته ویل‌کیږي هلته ورځي او ملایانو ،علماوو
او فقیرانو ته دخیرات ډوډۍ ور کو ل‌کیږي ،په څلورمه ورځ ټول ښځې
راټو لیږي‌اوقبرته ځي‌تر هغه وروسته دمړي خپلوان‌اودوستان‌ترڅلو ښېښتو
ورځو پورې دمړي جمعې په ورځ‌دهغه قبرته د فاتحې له پاره ځي‌اوپه
څلویښتمه ورځ د څلویښتي خیر ات‌کوي، سره له دې‌چې په یوسفز یو
کې ډیر خلک مړي‌اودا خلک‌د مړو سره عادي دي خو بیاهم د مړي‌د ویراو
غم په دوی کې ډیر دی .

**د واده دستور :**

اکثره خلک‌یوه ښځه نکاح کو ي‌خو ځینې دوې او .شتمن او خانان پوره
څلور ښځې نکاح کوي اوهم هغه شمیروینځې چې په وس کې‌یې دي ساتي .
دجلۍ لوږده عموما دهغه کورنۍ‌سره ترسره کیږي چې ددغې کورنۍ
سره ددوستۍ اراده او نیت و لري‌اود کوږدې خبرې ددم په ذریعه چې
ریبار‌یا دلال هم ورته وایي تر سر ه کیږي .دا ځکه چې په کلیو کې‌دنرواو
ښځو حال ددم ته پوره ښه کندو ی .کله چې‌مور اوپلار چاته د خپلې لو ر
ور کول ومني نوهماغه (زوم) د ډ م په ملګرتیاد نجلۍ‌د مور اوپلار کورته
ځي له چیرې په دغه وخت کې‌دنجلۍ‌موراو پلار داکوږده ومني نو کلـه
چې‌دغه سړي بیرته کورته ولاړ شـي‌نو دکلي دوه یا څو تنه معتبرا ن او
سپین ږیري دهلک‌دپلار یا ورورسره‌دنجلۍ کورته ځي اوهلته دشپې لـه
خوا دواده دټولو مسایلو اومصارفـو لکه پایوازي ، مهراو نورو په بـا ب
غږیږي‌او هم په دغه شپه مهر ټاکـل کیږي .

نکاح عموما دوکیلا نوپه ذ ریعـه اویا په‌خپـه دزوم په حضور کې‌ترړل
کیږي له چیرې دمهر ټا ټرشو ي‌پیسې‌موجودې نه وي نودهغو ي‌تر رسیدلو
پورې دنکاح میعاد ټاکل کیږي . ا وورپسې دنجلۍ پلار او زوم له یو ې
پیالې څخه شربت څښي .له زوم نه وي نودهغه پلار یا ورور چې دغـه

---

* په پښتني سیمو کې اسقاط‌عموماً‌تردې ورانده‌چې مړي ښخ کـړ ي
شي اودجنازې لمونځ ترادا نو ســو وړاندې ویشل کیږي. (ژباړونکی)

مجلس ته راغلي وي دغه شربت‌خبني تردغو مراسمو وروسته د کوژ د ی
ترون مضبوط کیږی او بیا ددغه ترون ماتول دو مره گران کار دی لکـــه
دنکاح دماتولو اونه منلو تړ ون. کله چی کوژده وشی نو ددوا ړوخو اوو
دوستان دوی ته مبارکی ور کـو ی اودغه دود ته کوژدن ویل کیږی .

د نجلی مهرته ولور وایی ، زوم تـه ځلمی یا چنغول او نجلی ته چنغله،
او یا چنغاله وایی ، لنده داچی دکوژدی‌تر مرا سمو ورو سته زوم اکثراد
خپل خسر کورته، (تگ راتگ کوی) په ځینو کورنیو کی نجلی خپل میره نه،
شی لیدلای او له هغه شخه پټیـږی‌خوپه سوات او ځینو یو سفز یو کی
چنغول بازی (چغلبازی) ډیره مروجه ده‌چنغولبازی ذاده‌چی زو م له وا ـ
ده نه وړاندی کله چی د خسر کـورته ځی نود خپلی ما ندینی سره مینه،
ا و عشق کوی اود هغوی له پاره په یوه بیل ځای کی کټ اچول کیږی او
په خپلو منځو کی سره خبری اتـری‌کوی ، خو کله کله د چغل بـــاز ی
نتیجه دلسی شی چی دوادہ شخه وړاندی ښځه امید واره(حامله) شی ، نو
په دغه وخت کی د نجلی مور او پلار ډیر زردواده‌بندوبست کوی اونجلی
ژر و دوی دغه ډول مور او پلار پـه‌اخپل کور کی د خپل اولاد زیږ یدنه،
عیب نه گنبی خو کله چی د واده نه‌ ډمخه دغه راز ښکاره شـی نو زوم او
نجلی دواړو ته د دوی ملگری او دوستان پیغور ور کوی او ملنډی وربا
ندی‌وهی، دواده‌مذهبی‌طریقه نکاح‌ده نکاح مجلس‌ته واده او هغه ځوک‌چی
په‌واده کی گډون‌کوی هغه ته جینج (ورأ) ٠وایی او دورا گډون کوونکی
ددواړو خوا وو د وستان وی ، په تا کلی ورځ د خپلو ملگرو سره چی یوه
پله نارینه ا وښځی هم ور سره وی‌د خسر کورته ځی او ښځی دسړ یو نه،
بیلی روانی وی ، هغه ځوك چـــی‌واده ته روان وی هغو ته جنجیا ن
وایی ، جنجیان د ټو پکو ډزی کوی،اسو نه ځغلوی‌د نجلی په کور کی‌هم
دهوی نږدی خپلوان او دوستان راټولیږی او هغوی ته منجیان وایی کله،
چی جنجیان ، د نجلی‌کورته ورسیږی‌نو جنجیان‌او منجیان سره یو ځای‌شی

او په هغه شپه او ورځ ساز کوي، ستړي وايي، ډوډۍ خوري او خوشحالي کوي، په هغه شپه د ملاله خوا نکاح تړل کيږي او دهغې ورځ په سبا ميره دخپلې ناوې اوجنجيانو سره بير ته کورته را ستنيږي او منجي د نجلی په کورکي تر هغې وخته پاتې کيږي چه ميلمانه رخصت شي ميره عموماً په دريمه ورځ د لومړي ځل له پاره د خپلې ناوې له مخ نه تکری پورته کوي او هغه کوري په دغه وخت کي دهغه ټولي ستونزې اوارې شوې وي، دواده ټول مصرف د زوم په کورني باندي وي، خپلوان او دوستان هغه ته يوڅه نغدي روپۍ د سوغات په ډول ورکوي او هغه دپور شکل لري چي متقابلاً د هغوی د ودونو په وخت کي يې هغوی ته ور کوي، ګاڼې (زيورات) اکثراً په اما نتي ډول را وړل کيږي، په واده باندې ډير مصرف کيږي او لږتر لږه يې مصرف (۵۰) روپۍ دی او د منځنيو طبقو خلکو په وادو نو دوه سوه روپۍ او د شتمنو کورنيو دواده مصرف دوه زره روپيو ته هم رسيږي.

دوی د هلك په زيږيدو ډير خوشاليږي خو په دغه خوشحالی کي د هلك مور ګډون نه کوي د دې له پاره چي هغه تر څلويښتو ورځو له کور نه بهر نه ځي او په دغه وخت کي يولږ روا جونو باندي بوخته وي او کله چي دغه دودونه تر سره شي، هغه په څلويښتمه ورځ د شفا غسل کوي. که چيرې نجلی وزيږي نوهيڅ خوشالي نه وي بلکی هغې ته ديوه افت په ستر که کوري.

کله چي هلك اته کلن شي يا له هغه څخه د مخه ختنه (سنت) کيږي او دوی دغه عمل له خوشحالي سره يوځای وي، دوستان او خپلوا ن سره رانږ ليږي، ډول او سور نی غږيږي او ميلمستيا جوړ يږي. بيا وروسته ډوډۍ خوري او په پای کي د سوغات په ډول ميلمانه

هغوی ته نغدی روپی ورکوی، که چیری د هلك کورنۍ شتمنه وی دغه میلمستیا نه یوه اندازه کنه تر لاسه کوی او که غریب وی نو زیان .

تر دغو دودو نو وروسته کوچنی ته لمونځ او نور مذهبی احکام ور ښودل کیږی او کله چی دولس یا څوارلس کلن شی نو هغه د خپل پلار سره دکورنه دباندی کارو نوکی مرسته کوی اوله دغه وخت نه وروسته باید په حجره ،درمند ، ارهټ یاځاه باندی ویده شی ،کله چی شل کلن شی دپلار دشتو یوه برخه بیلوی او هلك یا واده کوی او په کورکی اوسیږی یا بل ملك ته دنوکری له پاره ځی او ځینی یی داوری په موسم کی کله چی دیوی او کار له امله ستړی اوددغه ربړنه په تنګ شی او عایدیی دګذاری له پاره کافی نه وی نو هندوستان ته ځی او کله چی هیواد نه ووځی هغه وخت چی زوړ شی بیرته خپل ملك ته راستنیږی او خپله برخه اخلی او دژوند پاتی موده دا نخرونی تر سیوری لاندی تیروی او کوښښ کوی چی دډیر لمونځ او عبادت په واسطه دځوانی ددوران ګناوی جبران کړی . دده وروستی خوشحالی داوی چی دخپل کلی او خپلوپخوانیو نیکو نو په هدیره کی ښخ شی ، له همدی کبله دوی د خپلوانو جسدونه او هدو کی له نورو هیوادو څخه راوړی او په خپلو پلرنیو هدیرو کی یی خاوروته سپاری ،دوی دزړه له کومی په خپل هیواد کی له ښخیدو سره مینه لری .او هغه شمیر خلك چی په خپلو کورونو کی اوسیږی دهغوی د ژوند دخرنګوالی په باب پورته یوڅه بیان وشو، دوی عموماً په کرنه بوخت وی او کله کله په جګړو هم لاس پوری کوی په هر یوه کلی کی نغاری یا ډولونه موجود وی چی دوی دهغوی په ذریعه نورخلك

دمخالفینو له یرغل اوحملی څخه خبر و ئ همدا راز دد ښمن سره مقا بلی او تعقیب له پاره هم کلی په کلیدولو نه اونفاری غړول کیږی اودهغه دغړ داوریدو لو سره سم لښکر را ټولیږی او ټولو کلیو ته خبر رسول کیږی* داود یو سفزیو دقبیلیدود اودستورچی اوس په کی لږ څه بدلونو نه راغلی دی. دانگریزی سرکار دفعالیت په وجه دیو ښفز یو سیمو ته ډیره کته ورپه برخی شوی دهدامن، آرامی او سوکالی نه پرته ددو ئ په ښتو کی هم زیاتوالی راغلیدی، خو سره له دی هم دوی دپخوا په شان له آزادی سره مینه لری .سرکار د دوی دکتمی له پاره ډیره هڅه کړی ده هغوی ته یی پلونه سړکونه او نور عام المنفعه کارو نه کړی او کوی یی.

**دخانقا وواو میلو بیان :**

په دغه ملك کی دغه لاندینی دری خانقا گانی ډیر شهرت لری او خلك هلته ځی .دپیربابا خانقا چی په بونیز کیموقعیت لری .په پیښبنور کی دجهندا زیارت او دختکو په سیمه کی دکاکا صاحب خانقاه چیپه دغو وروستیو دوو کیپه کال کی یو ځل ددرو شلورو ورځو له پار ه میلی جوړیږی او ډیر خلك ورته راځی .له روژی نه دمخه په پیښبنور کی دجهندا میله او له روژی ور وسته دکاکا صاحب په زیارت کی میله جوړیږی ،دلته هندوان او سوداگران را ټولیږی اوپه یواوار میدان کی کښینی او دبیلو بیلوشیانو په خر څو لو بو خت وی .

*اوس دانگریزی سرکار تر لاس لاندی سیمو کی دغه ډول جگړو ته هیڅ ضرورت نه پیدا کیږی . (مولف)

پرته له دی دلته د غیرو نیـول ، مداری توب ، ټیزه بازئ او نور ئ ډول ډول ساعت تیری هم تر ســره کیږی . همدا راز قمار (جواری ) او ډمی (کنجری ) مو جــود ی وی اودلته دښمنان هم سره مخا مخ ليږ ی او خپلی دښمنی دتور ی په ذر یعه فیصله کوی .

دانګریزی سر کار ترراتګ وړاند ی په دغه میلو کی ډیری جګړی کیدلی اومرګ ژوبله هم زیاته وه خو اوس دښه انتظام او تدبیر په وجه پــه هغه اندازه فسادونه نشته ، خــو سره له دی هم ځینی شخړی اوپيښی رامنځ ته کیږی .دپیر باباخانقاه پــه یوه خرابه ځای کی مو قعیت لــری له همد ی کبله هلته دکو ځی عا مــی میلی لپاره ځای نشته خوډیر خلــک دغه متبرك او پا ك زیـارت تـــــه ورځی او دجوګیا نو سربـاندی چـــی دایلم غره په یوه څوکه اودطور تابا په سر کی موقعیت لری هندوا ناو مسلما نان را ټو لیږی او در ی ور ځی هلته په خوشحالی تیروی هنـد وان دغه میله درام تخت په نامه یادوی اوهغه هندوان چی نوموړی میلـــی ته ځی په خپلو مینځو کـی سره دوه دری سوه روپی ټولوی اوددغه ځای خان ته یی ورکوی که نه نو د دغــه ځای ورتګ ته یی نه پریږدي پرته له دی داخترو نو په ور ځو کی هــم خلك په خپلو کلیو کی میلی او خو- شحا لی کوی ښځی هم سره را ټولیږی په خپلو منځو کی میلی کوی ،سندری وایی او ټالونه اچوی .

## «د سوات اخوند صا حب»

څرنګه چی دیو سفزیو په ملــك سوات کی دغه مشهور اخوند صا حب اوسیږی نو ځکه یی دلته په لنډول ذکر ضرور ی دی . دا ښکاره خبره ده چی اخوند صاحب عبدالغفور نومیږی اود (۱۲۱۱) هجری کال په شاو خــوا کی چی له هغه وخته تقریباء (۷۳) کاله تیریږی د بر سوات په سیمه کی زیږیدلی ، دهغه دمور او پــلار په با ب صحیح معلو مــا ت نشته خــو غر یب خلــك ا و پـــه شپونتوب ډول یی ژوند کاوه دی د

سافي قبيلې دي چې نوموړي قبيله له پخوا څخه د سر بڼي پښتنو سره يوه اوستانه كښل كيږي ، ځينې خلك ساپيانو ته دسيدا نو نسبت ور كوي او ځيني يې دسړبنيو پښتنو يو ښاخ بولي ، خو تر اوسه دداد ور كومه نتيجه لاس ته نده راغلې خو غالب گومان دادي چې دغه ښاخ په وصلي ډول سره نه ، بلکې په نسبي ډول دسړبن ښاخ سره تړلي دي .

هغه وخت چې عبدالغفور صاحب لاكوچني و دمور او پلار په غوښتنه دمالونو په څرولو بوخت و او له هماغه وخته پاك خداى (ج) ده ته پرهيز گاري ورپه برخه كړې و ،چې دهغه گاوميښي څخه به يې چې شيدې خوړلې نو هغه به يې درسي نه نيولې او څروله به يې تر څو دنورو خلكو په پټيو كې و نه څرېږي چې هغه وانښه دده په نظرحرام وو ، كله چې اتلس كلن شو نو ددنيا يې چارو څخه يې لاس واخيست اودبرن گوله سيمې ته لاړ او هلته يې لوستل او ليكل زده كړل او تر يوې مودې پورې د علم په حاصلولو بوخت وپه پاى كې ديو سفر يو دگوجر گهري سيمې ته راغى اودعبدالحكيم اخوند زاده په جومات كې ديره شو ، تر څه مودې وروسته تور دهيرې ته لاړ او په دغه ځاى كې د صاحبزاده محمد شعيب سره چې يو مشهور روحاني ومريد شو او محمد شعيب دعمر زيو دحافظ جي صاحب مريد و او حافظ جي صاحب هم دبشتوني صاحب مريد و نو موړى دبونير يو فقير سړى اود طريقت خاوند واو دده شهرت په دى كى وچې هغه خپلو مريدا نو ته څلور طريقې يعنې نقشبنديه ، سهروردیه ،چشتيه او قادريه ورښو دلې وې .

اخوند صاحب عبدالغفور لومړ نى يعنې نقشبند يه طريقه غوره او هند ته نږدې دسند رود په غاړه يې استو گنه غوره او نو موړى طريقه يې جا ري كړه هلته يې بوه كوډ له جوړه او د

خدای په عبادت بوخت شواو دولس کاله یې د حقیقي معبود عبادت وکړ
او په دغه دولسو کالو کې ده په لږه اندازه خوړو او لږو اوبو حپله
گوزاره کوله ، نوموړی په بیکې کې دحپل عبادت اودخدای دفضل له امله
ډیر شهرت و موندا وخلك به ده ته راتلل ، خو په دغه وخت کې دسید
احمد بریلوی او ښادی خان په چاروکې د د خالت په سبب خلکو له ده
نه لاس واخیست او له یوې مودې وروسته د خدر زیود نیې د غلامانو
زیارت ته ولاړاو هلته یې بیادپخوا په شان شهرت و موند ، ددغه ځای د
سلیم خان سیمې ته ورغی او هلته میشته شو او خلکو له ده نه لاس
نیوی وکړ او مریدان یې شول اونوم یې ترلیری لیری ځایو نوپوری مشهور
شو . په ۱۸۳۵ ع کله چې دسکانواو افغانانو (پښتنو) ترمنځ جگړې
منځ ته راغلې نوامیر دوست محمدخان دده نوم واوریده اودی یې د جهاد له
پاره خیبر ته راو غوښت ، هغه هم ډیر غازیان اوطالبان خیبر ته راوستل.
مگر هلته دسلطان محمد خان دپلان په اثر دغه معامله له ماتې سره
مخامخ شوه او کله چې د امیر لښکری تر جگړې دمخه بیرته کابل ته وگرځیدی نواخوند صاحب باجوړ ته فراری شو او ملکری یې یوازی پر ینبودل
څه موده وروسته په گلدره کې درانې زیوغره ته لاړ چې هلته یې نوم
لاپسې مشهور شو ، ترڅه مودې وروسته ده ته دسوات په سیدو نومي ځای
کې یوه اندازه ځمکه ورکړل شوه چې تر اوسه موجوده ده کله چې ده ی
د سیدو سیمې ته ور سیده نود نیك پی خیلو په قبیله کې یې واده وکړ
او له دغې میرمنې څخه یې دوه زامن وزیږیدل. په (۱۸۶۳ ع) کال دانبیلې
په دره کې چې د انگریزی سرکارله پوځ سره دبونیر اوسیدونکواونورو غر نیو خلکو مقابله وکړه په هغه کې ده هم گډون وکړ. له څه هم
دانگریز سرکار پلویانو په دغې جگړه کې دده دگډون تمه نه لرله داځکه
چې ده وړاندې تر دغې جگړې د انگریز سرکار په خلاف کومه اراده او
نیت څرگند کړی نه و ، او په دغه باب خلك داسې وایي چې ده دغه دراتلو وجه داوه چې د مولوی عبدالله وهابی * دورځ په ورځ زیاتیدونکې
پیاوړتیا له کبله ده ته حسد پیداشوی وه .

اخوند صاحب ډیر مریدان لرل او خلك ده ته په زیاته اندازه درناوی
او احترام کوي . نه یوازی د یوسفزیو په قبیله کې چې دی هلته اوسیږی،
بلکې د ختیځ افغانستان پرټولو برخو کې ، د سند ساگرپه دوابه کې
اوحتی د لویدیځ افغانستان په هغو ځایونو کې چې چا دده نوم اورید لی

* دمولوی عبدالله په باب د تعلیقاتو برخه وگوری .

وی احترام یی کوی اوهغه ته په درنه ستر که گوري له لیري لیري ځایونو نه خلك دده زیارت ته ور ځي اودی دخاصو او عامو مرجع دی ، او هر څوك چی ده ته ورځی دهغه لـه لنگر څخه ډوډی ورکول کیږی اود اخوند صاحب مـــریدان اوخادمان د میلمنو د رنبنت او پالنه کوی .

د مذهب په چارو کی هم ده ځیني احکام جاری کړی او اهل سنت اوجماعت د طریقی ټولو مسلمانانو منلی دی او ډیر د قدر په سترگه ورته گوری ، دده مریدان په دغو ټولو ځایونو کی په زیات شمیر شته دی ، اواخوند صاحب ټول وخت په نیکو اوښو چارو بوخت او دورځی له خـــوا تل ر وژه نیسی او د منهیا تواو مکرو هاتــو څخه په ډیره زیاته اندازه پر هیز کوی .

**د ادم خان اودر خانی لنډه کیسه : .**

---

څرنگه چی دغه کیسه نه یوازی په دغه قبیله بلکی په ټولو افغانی (پښتنی) قبیلوکی مشهوره ده اویــو سفزی یی په خپلو حجرو او مجلسو نوکی د رباب سره په ډیر سوزسره وایی . ویل کیږی دغه کیسه پـــه پښتو ژبه کی په نظم ویل شوی ده او ډیره اوږده اود واقعیت په خلاف ډیرشیان لری . خو دلته دویلو وړ خبره یوازی داده چی د حسن خان زوی آدم خان دیوسفزیو د قبیلـــــی دمیته خیلو د ښاغ یو شو قی اوښایسته ځوان و اوپه ر باب وهلوکی یی ساری نه لاره ، همداراز نوموړی له ښکار سره هم ډیره مینه لر له اوډیر ربا ب وهو نکی بـــه دده په مجلسونوکـــی حاضرو و . دده داستوگنی دځای په باب مختلف روایتونه مو جود دی ځینی وایی چی هغه د بونیر او سیدو نکی و ، او غالباً به دده کور د سوات د سیمی په بری کوټ کی و . او څرنگه چی یـــوسفزیو په دغه وخت کی دکوچیانـــو په ډول ژوند کاوه او کله چی دآدم خان دتبر داو سیدو له پاره ملا کند ته ور سیده نو په دغه ځای کـــی د درخانی په نوم د یوی نجلی دپلار کورنی هم هلته میشته شوی وه ، د درخانی دپلار نوم پیر جوکـــی خان اوپه ختته حاجی خیل و — یوه ورځ ادم خان دخپل آس دنالو لوله پاره د یو ه پښی دکان ته چی باتور نو میـــده ورغی اوهلته درخانی هم ددوك د جوړولو له پاره راغلی وه او کله چی

دوی دوو سره و لیدل نو پـــــــــــــــه یو بل باندی مینان شول ، او ویـل کیږی چی په کوم ځای لی چی دپښی با تور دکان و هلته د پلوشی وته راشنه شوی وه . د دوکان ښښـــــی ښښانی تراوسه دملکند کوتل دسوـ ات لاری ترځنګ مو جودی دی اوویل کیږی ددغی و لی ختیځی خو اته چی کو می زړی کنډ والی مو قعیت لری هغه د درخانی د باندی ښښی دی .

هلته یوه لویه ډبره هم شته چی د هغی په باب خلك داسی عقیـده لری چی درخانی به په هغی باندی کښینا ستله ، څرخه به یی نو ـــه او نار به یی وریشه ، همدا رازادم خان دباندی ښښی هم ددغیو نی لو یدیځی خواته لیدل کیږی .

لنډه داچی څه موده د دوی مینه پټه وه تر څود بسی په واده کـی چی نوموړی په باز دره کی اوسیده او د درخانی ملګری وه او درخانی هلته تللی وه اودخپل بی حده حسن له کبله هغی له نورو ښځو څخه په مخ پټولو پیل وکړ په پای کـی ډپیر صالح په کونښ او د ادم خان درباب غږو لو او مینی له امله یی مخ پټونه پریښوده اود باندی را و و ته چی له دغه وخته د هغـــوی مینه رسواء شوه اوځرنګه چی ددرـ خانی کوژده د پایو سره کیدونکی وه له دی امله یی لـــه غم او کړاو څخه دوصل امکان موجود نه و ، د پیاو ی دواده په ورځ ادمخا ن درحاـ نی د هغوی له کوره وایستله او دخپلی پخوانی میرمن طو طیاد پـلار میر بابی کورته یی ورسوله اوهلته ور ننو تل ، خومیربابی په پښتنـی ننګ داغ ولګاوه ، ادمخان یی ونیوه او درخانی یی په قیدی ډول پایـــو ته ولیږله .، تر دغی پیښی وروسته ادم خان له ډ ری ستر کی پټی کړی اودرخانی به تل په قید کی د خپل مین آدم خان په انتظار اوښکی تــو یـو لی چی یوه ورځ د ادم خان د ر باب غږیی تر غوږشواو کله چی د باغچی خواته یی وکتل نو میرو قوال د ادم خان هماغه رباب غږاوه . کله چـی دی دمیرونه دآدم خان دمر یــــــــنی خبروا وریده نو غم وربا ندی داسی زور وکړ چی د ضعف ، قید ، کم خوری اودجدائی له غم یی له فانی جهاـ نه ستر کی پټی کړی . په دغـــه قبیله کی د دوی دواړو پاکه مینه تر هغه اندازی شهرت لری چی خلك وایی چی دوی دواړه په قبر کی سره یو ځای شوی دی. که څه هـــم داخبره دمنلو وړ نه ده ، خوددی امکان شته . دوی دواړه د هغوی کومهمراز په یوه قبر کی ښخ کـړی وی ، همدا ډول یو بل روایت هم موجود دی چی د ادم خان په قبر چی کومه و نه ولاړه ده که دهغی له لرګی څخـه کوم سړی شهباز جوړ کړی او پـه هغه باندی درباب دزده کو لو تمـرین وکړی نود یرزر به یی زده کړی.

# دخوګیانی قبیله

لکه ښنګه چې وړاندې ذکر شول د ګګیانی قبیله هم دخښبی سره تړلی ده خواخوند درویزه په خپل کتاب کی ددغه ښاخ داصلیت بیان داسې لیکلی دی. دخښبی زوی مک نارینه اولادنه لاره‌یوازې یوه‌لوریې درلوده چې کانې نومید له پلار یې‌هغه خپل شپانه ته چې بزرګی یا زیرکی نو میده په نکاح کړه چې دهغوی‌له پښنت څخه ګګیا نی دنیاته راغلی اودمورله خواد مك په اولاد کی وشمیرل شو. ګګیانی تر کابل پورې دخښبی قبیلی له مختلفوښاخو سره یو ځای اوسیده ، کله چې د میرزا الغ بیګ‌په زما نه کې‌د کابل په شاوخوا کې میشته‌شو نو دیوسف زیو سره دګګیانیو دښمنې پیل شوه . دښمنی په‌دغه سبب مینځ ته راغله چې یوه ښځه چې دګګیا نی قبیلی‌خان په نکاح کړې وه هغه د یوسفزیو د قبیلې د یوسړی له خوا و تښتو ل شوه،له دې‌امله ګګیانی په قهرشول او یو سفز یوسره یې سخته دښمنی پیل کړه د یوسفزیو یو ملك چې جنګانو میده دګګیانیو دقبیلی په لمسون‌ګګیانی

د کابل حاکم په حکم د‌ده په حضور کې ووژل شو، د کابل نه وروسته ګګیانی دلغمان دباسول *سیمې ته‌راغلل او بیا د بابر پاچا دحکم سره سم له دغه ځای نه‌وایستل شول اودننګر هار خواته راغلل وروسته بیا ملك احمد د لازاکو سره دمقابلې‌په منظور او د دوابی سیمې دورکو لو په وعده ګګیانی له ځان سره یوکړل‌او تربری وروسته ګګیا نیو ته ددوا بی سیمه چې دکابل‌او سوات‌سیندونو تر منځ موقعیت لرې‌ورکړل شوه او هم د باجوړ یوه برخه یې ترلاسه کړه، خوتر کلانیو د دوی نه واك تر لاسه کړ اوس دغه قبیله اکثراً په دوا بې‌کی میشته د ه او د دوی شمیر پنځه زره کوره‌ښو دل‌شوی دی، د دوی دود او دستور یو څه یوسفزیو او لږ څه د باجوړ له خلکو سره ورته والی‌لری، هغوی اکثراً د کرنې په چارو بوخت د ی.

---

*د باسول سیمه په لغمان کی نه‌بلکی دننګرهار په ولایت پورې‌مربوطه ده .(ژباړونکی)

## دتر کلانی قبیله

دغی قبیلی ته افغانان (پښتانه) په خپلوورځنی محاورو کی ترکانی هم وایی. د دغه قبیلی لوی نیکه ترك نومیده چی د خښبی زوی او د بسوله بطن څخه پیدا شوی وچی بیان یی لږ څه وړاندی لیکل شوی دی، د دیرو څیرنو سره سره بیا هم د تر کلا نیلو د نسب د شجری په باب د اطیمنان وړ معلومات لاس ته نه دی راغلی او څرنگه چی د دغه قبیلی خلك د لته نه را څی نوله دی کبله د دوی د پوره حال تر لاسه کول کرا نکاردی. خو ما د دغی قبیلی له دووپوهو کسانو سره چی یو یی د خاص با جوړ او سیدو نکی و ملاقات وکړ د هغو د واړ وله. بیان څخه داسی ښکاری چی د تر کلانی قبیله په لومړی سر کی په څلورو ښاخونو ویشل شوی ده لومړی سالار زی چی په چار منگ او بر اول کی اوسیږی د دغه ښاخ شمیر (۱۲) زره کسه ښودل شوی دی دویم مموند (ماموند) چی په دوو څانگو ویشل شوی ککازی او وړ مموند (واړه ماموند) چی د دوی شمیر هم دولس زره کسه ښودل شوی دی. دریم یو سوزی چی د وسله والو کسانو شمیر یی شپږ زره تنه دی، څلورم اسمعیل زی چی شمیر یی شپږ زره کسانو ته رسیږی. د دوی نه پر ته د براولیانو شمیر لس زره کسه ښودل شوی دی.

# دباجړ سیمه

په کومه سیمه کی چی دغه قبیله اوسیږئ یوه غر نی او ښکلـــــی ښنه سیمه ده چی ډیره په زړه پوری آب و هوا لری؛ د باجړ لویدیځ تــه دهندوکش غر، ختیځ ته یی داتمانخیلو غرنی سیمه، اوقطب ته یی هــم هندوکش موقعیت لری چی هلته سیاه پوش کافر اوسیږی او سهیل ته یی دهمندان غر پروت دی. د با جــو ړوادی یوه میدانی او اواره سیمه ده چی تقریباً پنځه ویشت میله او ږد والی لری او د شمال ختیځ نـــه جنوب لویدیځ خواته غزیدلی ده او پلن والی یی له شمال څخه جنو ب خواته د ولس میله دی په دغـــه سیمه کی دغمنو پیدا وار د نورونخلو دانو په نسبت زیات دی.

په دغه سیمه کی دوی لویی عـلاقی موقعیت لری لومړئ خاص بـا ـ جوړ چی ښار هم ورته وایی . دویمه ناوکی چی په دغو دواړو علاقو کـی تقریباً زن زدکوړو نه میشته دی. د جندول لویاکلی سیمی هم پــه

باجوړ کی مشهوری دی . دپنجکوړ ی‌ډ میدان تر څنګ یوه دره موجوده ده چی دوادی شکل لری او بـراول نو میږی ، دبر اول یوه بر خـه ښه آباده او پا تی بر خه یـــــی په ځنګلو نو پټه ده په دغـــــو ځنګلونو کی‌ډول ډول ځناور شتـــه او حتی په ځینو سیمو کی چـــی ځنګلونه ډیر دی نو هلته ځمکـــی ته دلمر رو ښنا ئی نه رسیـــږی په اصل کی براول هم په باجوړپوری مربوطه سیمه ده چی ددغه ځای او سیدو نکو ته بر او لی وایی خو یوازی تو پیر په دی کی‌دی چی براول ځانته بیل خان لری . د څوار لسمی عیسوی سدی په نیمایی کی، ترکلانی چی دخښی قبیلی یو ښاخ دی‌دغـــه ملك ونیوه او داسی ګومان کیږی چی دغه سیمه ددیګانا نو نه تــــر کلانیو نیولی‌وی .اوس باجوړ دپښتنو تر کلانیو په لاس کی دی خود نورو قبیلو خلك په دی ډول په کـــی مشته دی .په شمالی لوړو غرو کی‌هغه کا فران چی مسلما نان شوی دی اوسیږی او دهغوی شمال ته دسیاه‌پو ش کا فرانو سیمه ده دښا پیـــو دقبیلی څلور زره او ددیګان قـــوم‌دیرش زره تنه، دبا جوړ سیـــــن په دواړو غاړو کی دشینوارو قبیلی‌څلور زره تنه ،او همدا راز یوشمیر هند کی هم دباجوړ په میدان کی‌سره په ګډ ډول ژوند کوی .دمیدان‌سیمی او سیدو نکو ته رود باری هم وایی، که څه هم ښاغلی الفنستن په خپل کتاب کی دتر کلانی قبیلی دخلکـــو شمیر نه دی لیکلی خو تخمینــــــاً لس یا دولس زره تنه اټکل کیدلای‌شی . د دغه اټکل له مخی د دغـــه قبیلی شمیر چی پورته ذکر شـــــو تقریباً صحیح بریښی د تر کلا نیود قبیلی خان په خپل ملك کـــی دډیرواك او اختیار خاوند دی دوی پـــه خپله اصطلاح او ژبه کی ځانتـــه باچا یا باز وایی. اوس د ناو کـــی غلام حیدر خان او د چندول فیـــض طلب خان د دغو سیمو مشهور اونامتو مشران دی . دبر اول په سیمه کـــی‌فیروز خان د اسمعیل زی د ښاخ‌ملك ګل محمد خان، او د ناوګی دسیمـــی‌او سیدونکی حیدر خان لوی خا نان دی، همدا راز دباجوړ د ښار اوسیدونکی میرامان خان هم مشهور خان‌دی چی دډیر واك او اختیار خاوند دی‌دغه خانان دافغانانو (پښتنو) قبیلو نه پرته درعا یاونه دبارانی ځمکو دمحصولاتو پنځمه برخه او له هغه ځمکی نه چی د نهرو نو اوویالو پـــه ذریعه خړو بیږی نیمایی برخـــــه اخلی . همدا راز داوسپنو لــــــه کانو څخه څلور مه برخه احلی چی

د دغه عاید اندازه له یو لـــــک روپیو څخه لږه نه ده، هغـــــه افغانان یا پښتانه چی ځمکی لری که څه هم دوی د پیداوار وتا کلی برخه خان ته نه ورکوی خو دلښکرو او جګړو په وخت کی دوی د خان لښکری جوړوی او هم خان تـــــه دا اختیار ورکړی شوی چی دجرمونو په بدل کی په خپلی خوښی سره د جلا وطنی ، قید ، وژلو ، جرم او تاراج سزاګانی ورکړی خو له خلکو نه اکثراً جریمه اخستل کیږی اودعدالت په چارو کی د جګړو د احتمال نـــه پر ته دخان دخالت لږوی او داسی فیصلی دملکانو او دکلی سپین ږیرو له خوا تر سره کیږی د باجوړ خلک کله کله دلوټ او مریانو د تــــر لاسه کولو لپاره دکافرانو په سیمی باندی یرغلونه او د هغوی ســـره جګړی کوی .

ددغی سیمی د اوسیدو نکو زیاته برخه د کرنی په چارو بوخــــت دی خو دبراول سیمی زیاتره خلک داوسپنی مصنوعات جوړوی اود خر ـ ښلاو له پاره یی بهر ته وړی او له بهر څخه تو کران او قند دلتـــه را وړل کیږی . د اوسپنی د جوړ و لـــو طریقه داسی ده چی ښځی په سختـــی سره توره شګه را ټولوی او په یوه ورځ کی هره ښځه تقریباً شپږ سیره شګه غونډوی او دپښانو (آهنګـــرانو) په دکانو کی یی اچوی، د غـــه شګی ته دقوی اور په واسطه زیات حرارت ورکول کیږی په دغه وخـــت کی نوموړی ریګ په یو ډول خټه بدلیږی او ښکته بهیږی او لو مـــړ ی دچکی په ډول خامـــه اوسپنه ورڅخه لاس ته راځی او وروسی بیـــا حرارت او تاو ورکوی او بیا کښبی ورنه جوړوی .

دباجوړ او سپنه که څه هـــم ناپا که وی خو تر تصفیه کولو وروسته ښه او سپنه ورڅخه لاس ته راځـی او پیښور ،دیوسفزیو سیمی او هم تر حضرو پوری دخرڅلاوله پـاره وړل کیږی .

# دساپيو قبيله

د دغې قبيلې د ښېړو ښاخو نو تفصيل په دې ډول دی :
کندهار ی، مسود، مرېز ، وديسر ، کاکی زی او ښادی خيل . دغه قبيله ځانونه سړبنی پښتانه بولي او کله خپل لوی نيکه يعنې سا پـی د غلجي و رور يا زوی معرفي کو ی ،خودخپل نو په نتيجه کې دسړ بن او غلجي ترمنځ دنسب په شجره کـې د دوی يو ځای والی تر لاسه نه شو ، خو په دې کې شك نشته چې دخپلې قبيله دسړبن په اولا ده کې شامله او دساپيو قبيله هم پـه اصلي ډول له دوی سره يو ځا ی کيږي نو ځکه د دوی بيان دخپلو ښاخو نو په لړ کی راغلی دی اوس زمونږ په زمانه کې د دغه قبيلـې زياتره خلك د باجوړ د سور کمر په سيمه کې دتر کلانيو ،مومندو او اتمان خيلو د سيمو تر مينځ ميشتـه دی . ځينې يې په تگاب ( تگاو) کې چې دکابل شمال ته موقعيت لـري، او ځينې يې په کونړ کې او سيبړ ی دسوات په اکثرو کلو کې هم ددغه قبيلې يو دوه کوره شته ، دسوات اخوند صاحب (رح) هم ددغه قبيلې له کندهاري ښاخ څخه دی . ساپي اکثراً د ځمکې او کرنې په چار وبوخت دی ، دوی بې ازاره خلك دي، پـه ټول افغا نستان کې د دغـه قبيلې هولسې زره کوره شته خو خوارهواره دي او چندان شهرت نه لري .

# دغوریاخیلوقبیله

**دغور یا خ̣ږ ر ُبیله**

ددغې قبیلې شجره وړاندې کښل شوې ده چې له هغې څخه ښکاریږي چې دغه قبیله هم د سړبن د ز وی خرشبون له نسل څخه ده . د دوی لوی نیکه غرې یا غوریا نومیده لـه دې کبله ددوی نسل ته غور یـا ـ خیل هم وایي . غوریا څلور زامن درلودل یو یې دولت یارچې دهغه لـه اولادې څخه د مومندو او داو دزیو دوه ښاخونه مینځ ته راغلي دي . دویم خلیل، دریم څمکنی او څلـو رم زیړان ، چې د دریو ورونو اولا ده تریوې مودې پورې په یوه ځای کې او سیدل ، خو څلورم وروړ څمکنـی په خپل ژوند کې له هغـو څخـه بیل شو ، دهغه د بیلتون سبـب په تاریخ مرصع کې چې په پښتـو ژبه لیکل شوی دی داسې را غلـی دی : یوه ورځ څلور واړو ورو نـو یو پسه حلال کړي و، هغه یې پخپل منځ کې سره و ویشه خود و یشلو په وخت کې یې څمکنی هیر کـړ . او د ښـــــــــو ر و ا برخه یې ورنه کړه ، دغـه خبـره دڅمکني د خپګان سبب شوه نو ځکه له خپلو ورونو نه جلاو ترنن ورځې پورې هم دده اولاده په جـلا ډول اوسیږي .

دغوریا خیلو قبیله په لو مړ ی سر کې دکندهار په شاو خوا کـې میشته وه .لکه څنګه چې دیو سفزیو او خښیو په برخه کې هم د د و ی لـړوښه بیان راغلی دی، خود د ی علت ښکارګند نه دی چې هغوی و لـې او په څه ډول له هغه ځایه دغز نی لویدیځې خواته د ترنګ پړ غـا ړ ه

# د غوریاخیل د نسب شجره



## د کوکو ابن مومند د نسب شجره




## د موسی زی ابن مومند د نسب شجره









یادښت : د داودزیو او خلیلو د ښاخونو د ډېرو مشتیو ځانګو مفصله شجره تر لاسه نشوه

## د ځلکني د نسب شجره



میشته شول .د(۱٤۰۰) او (۱۵۰۰) عیسوی کلونو تر منځ دغه خلک د غزني په شاو خواکې میشته وو. د بابر باچا کمنی په لومړي سر پاه (۹۱۰) هجری کال په شاو خوا کی د غزني په سهیل او لویدیځه برخه کې اوسیدل، او په هغه وخت کې د دغه قبیلې تقریباً ټولو خلکو په پرونده ډول ژوند کاوه .او دمالداری په چارو بوخت وو. د غزني نه د دوی دمهاجرت له پاره دوه دلیله موجودی دی . لومړی دا چې دهزاره وو له قوم سره یې بدی نشو ا ی کولای دویم دا چې د مغلو له سلطنت څخه په تنګ شوي وو او ډلې ډلې له دغه ملك نه ووتل او څه موده دکابل او ننګر هاردسیمو په شاوخوا کې میشته وو خو کله چې یې شمیر ډیر شو نو په خانه کوچ ډول پیښبور ته و لیږ دیدل او ددلازاکو له قبیلې سره چې لادمخه یې پرپیښبور باندی قبضه ټینګه کړی وه د سلطان پوری په سیمه کې چې خلك ورته جنګ پوری هم وایی مخامخ او د د و ی تر منځ سخته جګړه پیښه شوه او ویل کیږی چې په دغه جګړه کې د بابر زوی شهزا د ه کامران هم له دغې قبیلې سره یو ځه مرسته کړی وه په دغه خونړی جګړه کې د لاز ا کو ته ماته ور په برخه شوه ځینې دجنګ په ډګر کې ووژل شول او ځینې یې هم د هزاره خانی په ویاله کې ډوب شول که څه هم دغه ویاله به معمولاً دومره او به نلر لی چې خوك دی ډوب کړای شی خوپه دغه ورځ د خدای په امر ددغې ویالې په سر یا پورتنی برخه باند ی په دومره زیا ته اندازه باران اوریدلی وچې د دلازاکو ډوبو لو له پاره یې دیوه واړه طوفان شکل غوره کړ. تر دغې سوبې وروسته نوموړ ی سیمه د مومندو داو دزیو او خلیلو لاس ته ورغله او دپیښبور پراخه لواره او میدانی سیمه یې ونیو له او د لازاك د لنډی سین څخه پورې وتل او دلنګر کوټ په میره او نورو ځایونو کې میشته شول، بیا وروسته هغه وخت چې د یوسفز یو مشر خان کچو ونو د دغه قبیلې او یوسف زیو ترمنځ دشیخ تپور په سیمه کې ډیره سخته جګړه وشو ه او غوریا خیلو ته ډیر زیان ورسیده په تیره بیا دخلیلو له ښاخ نه چې خلك یې ډیر جنګیالی و وزیا ت شمیر کسان و وژل شول، خود ماتې

څره سره یوسفزیو ددې جرائت ونکړچی د دوی مقبوضه سیمی ونیسی ،
د قبیلی لوی ملك یا خان نه پـــه پیښور کی غوریا خیل ارباب وایـی
خود څوی د اختیار اتو په منځ کـی توپیر شته ، ددغه قبیلی په ځینو
ځایونو کــی ملك د ډیر زیات واك څښتن وی خو په ځینی ځایونو کــی
بی اختیاره لږ.وی . د پیښور د قبیلو کورونه دود او د ستورو نه ،خوراك
او پوښاك تر یوی اندازی پــور ی یوسفزیو ته ورته والی لری، دو ی
په ژمی کی اکثره دښتر پتو لو لـــه پاره یو رنګه جاکټ استعما لوی او
کله چی اوړی شی نو هغه او باســی او یو اوږد او پراخه کمیس اغوندی
او سپینه یا نیلی پګړی په سر وی. همدا راز یوه پیښوری لنګی یـــاد
ملانه تړی اویایی پراوږو اچوی . د برو درانیوپه منځ کی د پیـــښو ر
غوریاخیل دحرام خوری نه ډډه کوی او دښه چلند خاوندان دی . خـــود
نورو اکثره افغانانو ( پښتنو ) پــه نسبت زیات چالاکه ،هوښیار اودوکه
باز دی. دوی ډیر کینه کښ اوکندی بازی ته متمایل دی او دښمنی پـــه
پټه او پرده کی تر سره کوی، دوی ښایسته او لوړی ځوانی لری .

# مومند

مومند چی د پیښور د سر کـــا ر تر لاس لاندی سیمه کی آو سیږی شمیر یــی دو لــس زره کـــــو ره دی ددوی ددود او د ستـــــور له مخی د برو مومندو سره پرته لـــه دی چی دیوی قبیلی دی بل هیڅ راز اړیکی نه لری .

## « بر مومنـــد »

د دوی حال زیاتره دلیکلو وړ دی.دوی ته دغره مومند هم وایی یعنی د غره او سیدونکی مومند. د د و ی غرنی سیمه په دی ډول ده چـــی د اتمان خیلو دقبیلی لویدیځ غر دکابل تر سینده اود قاشقار (کاشغر) دروړه هغی خواته یعنی دکونړ درود ختیځ غره ترنږدی ځایونو پوری سیمـــی د هغو غرونو میدانونه پرته چـــی د دوی د غرونو او دکابل سین ترمنځ موقعیت لری نور ټول غرونه دبـــرو مومند و په قبضه کی دی، همدارازا ځینی هغه غرونه چی دکابل سین په سهیلی غاړوکی پراته دی هغه هم دبرو مو مندو په لاس کی دی.دبرو مو مندوسهیلی برخه دخیبر سره نښتی ده له همدی کبله دغه خلك ځینی وخـــت په خیبر پانوکی هم شمیرل کیږی. د « کابل سفر » د غره نه پرته چـــی د کابل سیند په شمالی غاړه کـــی

واقع دي د دوی نور غرونه اکثر آسخت دي .په دغه سیمه کی ونی هم لږ دي او واوره یوازی دخوورځوله پاره وریږی ، پر غرونو کی یـــی اکثره سیمی آبادی نه دي چی پـه هغه کی دمزری خو دوبه ونی پیدا کیږی او یوا ځی دخلور و میا شتــو له پاره هواسړه وی ،خو په اوړی کی ډیره سخته گرمی لری او ددغــــه موسم د گرم باد له کبله کله کله خلك مری مسافران له دغی هوانه و یر یــږ ی ا و و ا یی چـــی داهواد غره مارنه چی د کا بـــــل سیند په سهیلی برخه کی مو قعیت لری را وځی .

دبرو موندو دوگرو شمیر لسوزره کوره بیان شوی دی ،په داسی حال کی چی یوه مو ندیی مؤلف ته شمیردیرش زره تنه ښودلی دی . خــو په دواړو شمیروباندی اعتماد نشی کیدای ،ځینی همسا یه یعنی د بلـی قبیلی خلک او هند کی هم د لتــه شته دی ،داپه غرو نو کی زیا تــره دمو مندو دمو سی زی ځانګه استــوګنه لری چی د هغه نه دتارك زی دڅا نګی دمرچا خیلو دپښی شخه دلعل پوری سعا دت خان مشهو ر او دوا ك او اختیار ښنبتن دخپلی قـــبیلی خان دی . دتارکز یو دوی وړی ځاـ نګی بران خیل او عیسی خیل پـــه پندیالی کی استوګنه لری.

په عثمان خیلو کــی سید امیر او تا ج محـــمد ملکا ن د ی . د و ی یو اداری عجیب سیستم لری د جګړی دوخت نه پرته په دوی کی د خان واك او اختیار لږدی خودده واك پر ملکانو باندی ډیر دی او همدا راز دملکا نو واك په خپلو ځانګو او ښاخو نــو باند ی زیات دی ، خان دعدا لت په چاروکی ډیره مداخله او غر ض نه کوی . ملکان دجرګو په ذریعــــه دخلکو شخړی فیصله کوی . د لعل پوری خان دکابل له امیر نه دلاری وصاتلو له درکه یو څه انعــام ا وبخششونه هم اخلی همدا راز دی ، د هغو کار وانونو او مسا پرا نـــو نه چی د پیښور نه دکریواو تا تری له لاری دکا بل آبخا نی او نور ځایونو ته ځی یوه اندازه محصول اخلی . ودغه خلکو خوراك او پو ښاك دبــا جوړ خلکوته ورته والی لری خــو

کورونه یې اکثراً د څپرو او جـــونګړی شکل لري چې هلته بوا زی داوړی په موسم کې او سېږی ددوی لوی ګلې لعل پوره ، لامه او بوسه دی اوپه دغو لویو سیمو کې دوی خپل کورونه جوړ کړی ، غرنی مومند اکثراء دکرنی په چارو بوخت دی او څینې د حیواناتو د پالنې په مقصد په غرونو کې او سېږی ، د دوی یوشمیر په غلاو لاروهنی هم لګیادی، دوی دژمی په موسم کې نور کارو نه پرېږدي اوپوزی ، پکی ، څپلی اونور مزرین شیان جوړوی ، او دخرخـلاو له پاره یې پیښور ته راوړی . دوی دخپل ملك پیدا وار او غلې دا سی لویو سیمو ته وړی او هلته یـــی خر څوی او په بدل کې یې ما لګه ، سپین دبل او ور ښمین ټو کران ، لونګی او نور شیان خپلو سیموتـــه وړی دبر مومندو دوه خیلونه پـــه کیږدیو کی دکو چیا نو په ډول ژوند کوی او اوښان ساتی د پسرلی پــه موسم کې دوی خپل مالونه اودحیواناتو رمې ګلې له ځان سره دهلمند درياب پورتني برخې یعنې دهزاره و شـاوخوا سیموته بیایی، دبرودر انیا بونه یوازی دغه دوه خیلو نه کوچیان‌دی.

# د داودزيو قبيله

داود زی دپیښور ضلعی په میدن او دکابل سیند په سهیلی برخه کی میشته دی ، دغه قبیله تخمیناً لس‌زره کوره ده لکه څرنګه چی د نسب په شجره کی راغلی دی دغه قبیله هم په لومړی سرکی په دریو ښاخونو ویشل شوی ده خووروسته د د غـو ښاخو نو څخه ډیری څانګی بیلی‌شوی دی . داسی روایت مـــــو جـــو د دی چی دمند لومړی زوی داود دوی میرمنی لرلی چی لومړی میرمنی نه یی حسین او له دویمی میرمنی یــی د نیکو او بابو په نامه زامن لرل‌کله چی مندله جهانه سترګی پټی کړی نو دهغه میراث دحسین لاس تـــــه ورغی ،له همدی کبله نیکو اوبابو د خپل ورور حسین د وژ لو نیت وکړاو دشپی له خواد هغه د خوب ځا ی ته ورغلل او دحسین په بستـــــر ه باندی یــی دتوری څو ګوزارونــــه وکړل خو حسین د هغوی دغدا ر ی‌او خیانت نه خبر شوی او په هغه شپه په کوم بل‌ځای کی‌ویده شوی‌و له همدی‌کبله ده ته کومه صدمه ونه رسیده سبا سهار کله چی دواړو سخـــــت‌زړو ورونو حسین ژوندی ولیـــــد نو دویری او شـــرم پـــــــه سبـــب یی وطن پر یښود په پای کی دنیکو

اولاده په هندوستان کی ځای په ځای شوه او دبابو دا ولاد ی څو
کورونه دتیرا په شاو خوا کی په خواره واره ډول ژوند کوی اوحسین
په خیل ملك کی ځای په ځای پا تی شو .

## دخلیلو قبیله :

ددغه قبیلی شمیر شپږ زره کوره اود وسله والو کسانو شمیر یی دولس
زره تنه ښودل شوی دی .

دا قبیله هم د پیښور په میدا ن کی استوګنه لری که څه هم ددوی
د نسب شجره وړاندی ذکر شوی ده خو دښاخونو په باب یی معلومات د
نسب په شجره کی ترلاسه نشو ل د دغی قبیلی څو کوره د مومندو د
قبیلی او همدا راز د برو درانیو له نورو څو کورو نو سره یو ځای په
کندهار کی اوسیږی او دلته د و ی یوازی د برود رانیو په نامه یا
د و ی ا و غا لباً به د و ی د احمد شاه درانی له وخت نه
هلته میشته شوی وی . د کندها ر په ښار کی یوه بیله محله دبرو
درانیو له پاره موجوده ده* اوددوی مشرد شینوارو دقبیلی له کورنی
څخه دی.

## دځمکنیو قبیله :

دغو ریا خیلو قبیلی دحالاتودبیان په برخه کی چی ځمکنی هم د تومړی
قبیلی یو ښاخ دی، د دغه قبیلی نه دبیل والی په سبب له پاتی غوریا
خیلو نه په جلا ډول ولیکل شو.ددغه ښاخ خلك په متفرق او خواره واره
ډول ژوند ند کوی ، اوس دپیښور په علاقه کی په دغه نوم
یو کلی شته اود ځمکنیو پاتی برخه دسپین غره د کورمی په شما لی
برخه کی میشته دی. که څه هم د سپین غره ځمکنی ښکته خوا نه
لږ راغلی خوددغه ښاخ یوهوښیاراویوه سړی ماته له سپین غره څخه را غی
او د ځمکنیو د ښاخ په باب دمغه دبیان له مخی دا بدا لی
احمد شاه دسر شمیرنی په وخت کی ددغه ښاخ شمیر نه زره تنه ښودل
شوی و چی اوس ددوی د وسله والو کسانو شمیر شپږ زرو ته
رسیږی ،خو دمولف په عقیده به د دوی شمیر تر دغه سر شمیرنی
یو څه لږوی ، د دوی دسیمی ځمکی اکثراً بارانی او للمی دی خو دموسم
د سوړ والی له کبله په کی د غنمو او ر بشو او جوارو ډیر ښه زراعت
اوکرنه کیږی ،په دغه ځای کی پنبه او وریجی نه کرل کیږی دلته دکرمی

---

* دکندهار په احمد شاهی ښارکی یی یو بازاراو یوه دروازه دبرو په نامه
نومولی ده. برود برودر انو مخففّ دی.(رشاد)

له سیمی نه وریجی او له بنـــو ، بنگښنو او پیښنو ر نه پنبه بـــــی
تو کر ان راوړل کیږی .ددوی پوښاك عموماً دخپل ملك محصول دی چـــی
دسپینو وړیو نه جوړیږی . داپریدیو د قبیلی خلك له دوی نه پښو ـــه
اخلی .دوی شات او زړ غوری هـم دحر شلاو له پاره دبنگښنو او کر می
سیمی ته وړی او په بـــــدل کی مالگه او تو کران او کله غله دا نه
اخلی په دغه ښاخ کی د ملکانـــــواك او اختیار ډیر زیات دی، او س
د ازی خیلو په څانگه کی ادیـــن او اکبر ملکان دی .همدا راز دخانی
خیلو په څانگه کی عمر خان، مست خان، دمبارك خیل او فتح خان بلاجوا،
دخوجه خیلو په څانگه کی محمد دین میرباش دری خیل ، لنگر خـــان
اوحسن خان میرزا خیل مشهور ملکان او هزیو په چپله څانگه نی د ډیـر
واك خاو ندان دی. که څه هم دملکانو نه پاره دکوم تاکلی محصول ورکـو ل
مقرر شوی نه دی خود میلمنو دخرڅ اومصرف له پاره دوسی په انـدازه
دمشترکو ځمکو نه یوه ټوټه ځمکــه د مربوطو څانگو له خوا ورکول کیږی.
دخلکو ترمنځ دشخړی اکثراً د کلــی دسپین ږیرو له خوا دجرگی پـــه
ډول او دملك په ذ ر یعه فیصلـــه کیږی . دغه خلك په خپلو منځـــو
کی زیاتی شخړی نه کوی او ډیرډیواو نورو خلکو سره هم جنگ جگـره
نه خوښوی . خود منگلوله قبیلـی سره یو څه دښمنی لری .
د دی قبیلی خلك دکرنی په چارو بوخت دی ، خوله دی کبله چـــی
ځمکی یی لږی او دټولو د گوزار ی نه پاره کفایت نه کوی ، نو لـــه
دی کبله دوی دحیواناتو په تیـــره بیا دپسونو داوزو په ساتلو هـــم
بوخت دی. که څه هم دوی دا هـــل سنت او جماعت د طریقی پیروان دی،
خود مذهب د اصولو په باب زیات معلومات نه لری او اکثره خلك یی
بیسواده او جاهل دی، هغوی خپلـــی جونی دنغدو پیسو په بدل کــــی
ورکوی چی د دغو پیسو اندازه لـــه (۴۰) نه تر سلو روپیو پوری ده.

**دزیړانیو ښاخ :**

دغور یا څلورم زوی زیړان نـومیده چی دهغه اولادی ته زیړانـــی
وایی، له بده مرغه د ډیرو مخوسره سره بیا هم دزیړ انی ښاخ دڅا نگو
دسبب شجره لاس ته رانغله ،خودومره معلومات ترلاسه شو چـــی
ددغه ښاخ دوگړو شمیر لږ او پـــه متفرق ډول د ننگرهار په شاو خواکی
له تاجیکو سره یو ځای اوسیږی .او اکثره خلك چی د دوی د نسب له

شنجری سره آشنا نه دی هغوی تاجیک بولی لکه څرنګه چې اخوند
د رویزه بابا هم په خپل کتاب کښې لیکلي دي چې زیرانی د خپلو نو رو
غوریا خیلو ورونو نه بیل او د ننګرهار د سیمې له تاجیکانو سره
اوسیږي .

## د ملا ګوري ښاخ:

دغه ښاخ په څلورو څانګو ویشل شوی دی ، لومړی پهاړ خیل، دویم تار خیل، دریم احمد خیل او څلورم دولت خیل، چې د دوی د قبیلې په باب اختلافونه موجود دي ځینې وایي چې د دغه ښاخ لوی نیکه په وصلي توګه د مومندو په قبیله ورګډیږی او دویم روایت دادی چې د دې ښاخ اصلي مورث (نیکه) هم د مومندو له قبیلې څخه و ، یوه ورځ څو تنه مومند د لاروهلو له پاره یو ځای ته ولاړل او کله چې یې دغه عمل ترسره کړ نو یوتن ملا هم چې د دوی سره ملګری شو جلا ودرېده او دوی ته یې په کتلو پیل وکړ ،دغلو له ډلې نه یوه سړی په پښتو ژبه وویل چې ملاګوری چې د هغې ورځې نه وروسته یې په هغه باندې د ملاګوري نوم کیښود او دغه اصطلاح د نوموړي ښاخ د تسمیې وجه شوه، که څه هم د دغه روایت په رښتین والي کې شک موجود دی .

اوس دغه خلک د غرنیو مومندو سره یو ځای او د هغو سره په غم او ښادۍ کې شریک دي . د دغه ښاخ اکثرا خلک د تاترې په دره کې اوسیږي اود لاروپه وهلو او د کرنې په چارو بوخت دي.د دې ښاخ ټول شمیر پنځه سوه تنه ښودل شوی دی .اوس د پهاړ خیلو څانګې ملکان شنکي خان او دادګل ،د تار خیلو د څانګې ، خدري او خیر وخاندا حمد خیلو د څانګې د سکندر زوی میر علم او په دولت خیلو کې عصمت الله خان ملکان دي .

# دخښبون ابن سرين دوهم

# زوی زمندبيان

## ددغه قبیلی بیان :

دا ښکاره خبره ده چی د جمنـــدقبيله په لومړی سر کی د کند هار په شاو خوا ارغستان ته نږدی میشته وه او د (۸۰۰ ـ ۹۰۰) هجری کالو نو ترمنځ د پښين سيمه چی پشنګ هـم بلل کيږی د دغه قبيلی په لاس کی وه او د ترين قبيلی دغه ځای دزور په ذريعه له دوی څخه و نيـــوه او زمند او يا جمند چی لوی ښاخ يی خو يشکی (خو يشکی ) دی اکثـــرآ په دغه ځای کی له اوسيدو نه تنګ او مجبور وچی د غه ځای خو شـــی او دزمند قبيلی ځينی خلك ملتان ته لاړل او هلته ميشته شول او دخو ـ يشکی بل ښاخ د غز نی له لاری کابل ته او دکابل له لاری د غور بنددری ته لاړل او هغه ځای يی داوسيدو له پاره غوره کړ چی تراوسه هم يـــو شمير زمند او خو يشکی هلته ميشته دی.دغور بندپه سيمه کی بادام ډير پيدا کيږی او ښه شنه سيمه ده. په هغه وخت کی چی بابر کابل ونيو ه او څه موده وروسته يی په هنـــد باندی دير غل تکل وکړ نودخو يشکی ښاخ او همدا راز ځينو زمندو چـــی په غوربند کی ورته اوسيدل گرا ن ښکاره شو ل خو د خپل پير پـــه لارښوونه د هندوستان خوا ته روان شول ، دا سی روايت شته چـــی د دوی پير دغی قبيلی ته د اوسپنی يو ميخ ورکړ او ورته يی وويـــل په هغه ځمکه کی چی دغه ميـــخ ننوزی هغه به ستا سی وطـــــن وی. اکثره خو يشکی او ځينی زمند په خانه کوچ ډول له کابل نــــه د پيښور له لاری هندوستان تــــه روان شول او په دغه وخت کی سليم خان زمند د دغه قبيلی سردار و او په هغه ځای کی چی نن د قصـــورښار پروت اودلا هور ښار ختـــيځ ته موقعيت لری ميشته شول،ددغه قبيلی اکثره نار ينه د سليم خا ن زمند تر سرداری لاندی د بابر پــــه لښکرو کی په خدمت بوخت وو ا و

په هغه جگړه کي چي د سلطـــا ن ابراهيم لودي او بابر تر منځ پيښه شوه په هغه کي ددغي قبيلي اوه سوه تنه چي د بابر په لښکرو کي شامل وو وژل شول له همدي امله بـابر او هما يون په دوی زيات مهربا ني کو له او هغه وخت چي خو يشکي اوزمند په قصور کي ميشته شول نوده

سپره په نوم يوه بلوڅ دخپل قـوم له يوی ډلی سره دو چي لــــه لاری راته او په لوټ او تا لا باندی به يي لاس پوری کاوه ددغه لوټ بندو-لو په منظور بټك زی، حسين زی،عارف زی،شا بن زی. کرلانی اوسلمهاك لويد يځ خواته په برکلي کي ميشته شول اوځرنگه چي سپره به له دغي لاری يرغلونه کول نو دغه لاريي بنــده کړه او بيا يي له دغه لاری دلو ټ دبندو لو په منظور بټك زی، حسين زی، عارف زی، شا بن زی، کر لانی او سلمهاك لو يځ خوا ته په بر کلـــي کي ميشته شول او ځرنگه چي سپره به له دغي لاری يرغلونه کول نــــودغه لار يي بنده کړه او او بيا يي له دغه لاری لو ټ نشو کولای همدا راز عز يز زی، جنوزی، او ابرا هيم زی، ختيځ خو اته پــــه لر کلي کـــــي ميشته شول او پاتي زمند چي په مطلق ډول دزا مند يا جمند په نا مـــــه بلل کيږی د شمال خواته پريو تـــل تر هغه وروسته ابراهيم زی دجنوزی ښاخ سره د ډښمنی په سبب لـــه دغه ځايه وخو ځيدل او دخورجه *په سيمه کي ميشته شول په همدی ډول اکثره سلمهاکو چي دامچوزيو او حسين زيو سره يي دمقا بلي توان نه لاره نو دټانده سيمی ته لاړل او يو شميريي هم په قصور کي پاتي شول او د بټك زيو يو شمير هم د کورنيو شخړو په سبب په هيرو وال کي ميشتــــه شول .

ځرنگه چي په اوس وخت کــــی ددغي قبيلي زيات شمير په افغانستان کي نشته نو ځکه په دغه ملك کـي ډير خلك ددغه قبيلي له نوم سره هم آشنا ئی نه. لری ،دزمند يا جمند قبيلي خو کوره په کند هار پشين او نورو سيمو کي مغلو بانه ډول ژوندکوی دخو يشکو يوه ډله دغور بنــد په دره کي اوسيږی او هم يو کلــی دپيښو ر ضلعی په هشنغر کي دخو-يشکي په نامه ياد يږی چي هغـــه دشجا عت خان شمو زی په ذريعه جوړ شوی دی** همدارازدکابل سيندشمال خواته دمو مندو په غرنی سيمی کي

شو کوره خو يشکي او همـــــدا رازدخيبر دری تر منځ کي هم شته دی . اودلاهور ضلعی په قصور کـــی هم پښتنا نه خو يشکي او سيړی چي دهغه ځای خلك يي يوازی دقصورپه پټان په نامه ياد وی .

---

*خور جه دډهلي او علي کړه ترمنځ واقع ده ــ اوس هم په خورجه کي خيشکي اوس مسجد جامع او کتب خانه يي ماليدلی ده .(رشاد)

** دکندهار دارغند او په مدخل کي هم دخيشکو په نامه يو کلی شته .(رشاد)

# د محمدزی یاممن زی ښاخ

په افغانستان کی د میشته زمند یا جمند قبیلی د محمدزی یاممن زی ښاخ شمیر زیات او هم ارام دی ،دغه ښاخ دجمند پاتی نسل تروتلو وړاندی د یوسف زی قبیلی سره یو ځــای دار غستان ته راوشړل شول اوورپسی دیو سفزیو سره یو ځای ځر نګه چی د یوسفزیو په برخه کی راغلل دکابل او په نورو پیښو کی د یوسفز یــو سره یوځای وو تر هغه چی د دوی سره یو ځای ننګرهار ته ورسیدل نو ددوی تر منځ دیوی لانجی پــه سبب جګړه پیښه شوه چی پــــه دغه جګړه کی یوسفزی بریا لی شول خو دوی په دغه ځای کی و نـــه اوسیدل ، محمد زیان یوه موده پـه ننګر هار کی او سید ل.

او کله چی د یوسفزیو مشهور مشر ملك احمد غوښتل د دلازاکو لــــه قبیلی سره وجنګیږی نوهغه دنبوانی په دول محمد زی د خپلی مرستـی له پاره ر اوغوښتل او محمدزی په دغه شرط ورسره یو ځای شول چی د(هشنغــــر) سیمه دوی ته ورکړل شی، لکه څنګه چی تر سو بـــی ورو سته دغه شرط ترســـره او( هشنغر ) محمد زیو ته ورکړل شو چی تر اوسه هم د هغوی په قبــضه کی دی او دلته د دوی مشهور کلـی چار سده، تنګی، نوښار ،پړا نــګ او نور دی ،د دوی دود او دستــور خوراك ا وپو ښاك اکثرا دیو سفر یو په شان دی ، دوی اوس د کرنی په چارو بوخت دی ،ویل کیږی چی ددوی شمیر اته زره کوره دی، خو غالب کومان دادی چی په دغه شمیر کی به د نورو قبیلو یو شمیر خلــــك هم شمیرل شوی وی ،

دخرشبون بن سړبن دویم زوی کانسی د نسب شجره



# دخرشبون ابن سربن زوی کاغیسی بیان

**ددغی قبیلی حال :**

د کاسی (کاسسی) له قبیلــــی‌شخه د شینوارو له ښاخ نه پرته چی د ننګرهار د سیمی په شاو خوا کسی‌اوسیږی د نورو ښانو نو په بـــاب صحیح معلومات ترلاسه نه شــو ،او د شینوارو په باب هم معلوما ت لا ترلاسه شوی‌دی، دمولف ډیر کوښښ سره‌سره په دی بر یـــالی نشو چی‌ددغی‌قبیلی له کوم غری‌سره‌لیدنه کتنه وکړه ، خو د لو یدیــځ افغانستان داو سیدو نکو دبـــاور ی‌اشخاصو د وینااله مخی داسی‌ښکاری چی دکانسی قبیله په کوم خاص ځای کی‌په. مجتمع ډول نه اوسیږی* .او خواره واره په متفرقو ځایو نو کی‌میشته دی . په هندوستان اودکـــن کی هم ددغه قبیلی خلك میشته دی .لنډه دا چی په افغا نستان کـــــی دشینوارو له ښاخ‌نه پرته دکانسی‌نور ښاخونه دور کیدو په حال کی دی .

شینواری د دی امله چی د خیبر د دری په شاو خواکی میشته دی . نو ځکه د خیبر یانو په نامه هم بلل کیږی .

---

*په کوټه کی‌د کا سیا نو په نامه یوه سیمه شهرت لری اوپه دغه سیمه کی اوسی هم‌کاسیان اوسی. (رشاد)

دبرو مومندو نه پر ته اپریدی،اورکزی او شینواری هم د خیبریانو
په نوم یادیږی ، چی په دغـــــو دریو قبیلو کی شینواری لـښ ځـه
دبه چلند خاوندان دی خو سـره له دی هم حرام خواره دی او لوټ
کوی ، د شینوارو د شمیر په باب ویل کیږی چی لس زره کـو ره دی
او د باجوړ او کونړ د شیګل د زی شینو اری‌هم په دغه شمیرکی‌را ځی،
ددغه قبیلی خلکو په وادی ګانو اوهوارو سیمو کـــی داو سیدلو له
لپاره مستقل کو رنه جوړ کړی دی‌خوپه غرنیو سیموکی چی عمو مـاً
دوی داوړی موسم‌تیروی‌دبرومومندوپه شان څپری جوړوی او په هغوکی
ژوند کوی له دوی نه ځینی خلـک‌په ځمی کی په وړو غرونو کـــی
دسوړی په ډول ځمکه ژوروی اوهلته دا وسید لو له پا ره ځان تـه
ځایونه جوړوی ،د وی دګرمی طاقت نه لری .

شینوار ی عموماً دکرنی په چا رو بوخت‌دی، خود ننګرهار شینـو اری
د انارو، بادا مو او نورو میووسوداګری کوی اوځینی یی‌په لار وهلـو
او لو ټ ګذاره کوی . د پوزیواوبدل‌جګړاو دمز رینو څپلیو جـوړو لـد
ا سرو حلکو لسب دی اودغه شیان‌پیښور او جلال آبادته په زیا تـــه
اندازه دخرڅلاو له پاره استـو ی، اوس دشینوارو داووه ښاخونو پـه
نوم اووه تپی مشوری دی.دشیخ‌مل‌خیل په تپه کی‌ملک اکرم اوآدم خان
مشران دی، همدا راز دخو ګاخیلوپه تپه کی پوسی او پاینـــده خا ن
ملکان دی اود میرداد خیلوپه تپه کی‌نصرالدین اوپه پیروخیلو ګنجوجـان
ملکان دی ،دشینو ارود قبیلی تقر یباًهر سړی توره لری او دریم برخه خلک
یی د توپکو خاوندان او ښه نښـــه ویشتونکی دی . دوی د غرنیوسیمو
نه پرته په اواره‌کی ښه نشـــــی‌جنګیدلی ، د شینوارو په سیمه کی
هزار ناو مشهور ځای دی . دشینواروقبیلی د سنګو خیلو ښا غ چـی
شمیر یـی تقـر یبــــــاً دری زره وسله والو کسانو تـــه
رسیږی مشهور غله اولارو هونکـی‌دی . سنګوخیل دخو ګیا نیو سره
نږدی دسپین غره په لوید یځه کی‌اوسیږی اوددو ی زړه ورتیااو میړانه
د متلونو په ډول یادیږی .دوی په ونه ټیټ او پیاو ړی خلـــک دی.د
توری او توپك داستعمال نه پر تـه دو ی د تیرو په و یشتلو کی هـم
پوره مهارت لری او ویل کیږی چـی‌ددوی وار په آسانی نه خطا کیږی.

## د ناغر ابن داني دنسب شجره




## د پیني ابن داني دنسب شجره

ساهنګ ختاني مرغزاني مرغشتن قاسم بابکزي خوژک ایسوټ شکون لهون

اتمان خیل شدي خیل سپین زمري مزري وهپال سامي معود خیل ودير کرير خیل

نصرزي پک خیل اکرزي مولي زي حسین زي ملهي زي عمر خیل ممي زي مردو خیل

حمزه خیل احمند موسی خیل علي خیل بابرزي اعزز خیل هیبت خیل دري پلاري

سپین زي مغدود زي حسن خیل بلیل لهرزي

هرزان خیل ګلي زي خان زي خویداد خیل زرو خیل بلال زي ګهداز زي ادین زي ملي زي

کمال زي جلال زي خدوزي احمد زي خاتوزي کانوزي خواجک زي باب زي مرسین زي کابل زي

حلال زي بهرزي یائي زي بهدین زي شهالم زي عمرګټ زي کرموزي شادي زي تولا زي

شیروزي داروزي ادینه زي

کرم زي طوطي زي

| مخ | کرښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ۱۰ | ۳ | مدمی | مدجی |
| ۱۰ | ۳ | سید الا برابر | سیدالا برار |
| ۳۸ | ۸ | نورنهار | نونهار |
| ۵۰ | ۷ | د ځدرانو ښځه | د ځدرانو دغرو نوښځه |
| ۵۴ | ٦ | شیکل | شلګر |
| ۵۵ | ۲۸ | ستری | شتری |
| ۸۳ | ۲۸ | له خلکو ته یی | له خلکو نه یی |
| ۸۵ | ۲۲ | راچپو تو ته ماته ورکړه | راچپو ماته ورکړه |
| ۸٦ | ۱۱ | دارا سلطنت | دارالسلطنت |
| ۸۷ | ۲۷ | دیر غل په توګه | دیر غمل په توګه |
| ۸۹ | ۵ | لسنړ | لړ |
| ۹٤ | لسم یولسم کرښې لاندې باندې شوې دي | | |
| ۱۰۱ | ۲۰ | لګرتیا | ملګرتیا |
| ۱۰٦ | ۲٦ | ارغوان خان | ارغون خان |
| ۱۰۷ | ۲٦ | جکمران | حکمرانان |
| ۱۰۹ | اتم ، نهم‌او لسم کرښې لاندې باندې‌شوې دي | | |

| مخ | کرښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ١١٥ | ٤ | دشاه جهان په تخت | دشاه جهان په لقب |
| ١٢٠ | لومړی ،دویم اودریم کرښی لانـدی باندی شوی دی | | |
| ١٢٠ | لمن لیك | دریم او څلورم کرښی لاندی باندی شوی دي | |
| ١٢١ | ٢١ | ارالحکومت | دارا لحکومت |
| ١٢٥ | ٣ | اوهم کومی مقابلی فتح کړ | اوهم یی کابل بی له کومی مقابلی فتح کړ |
| ١٢٧ | ٢٦ | لری | لرل |
| ١٢٧ | ٢٢ | دیر زامن لری چی | وروسته تر دیرش |
| ١٣٣ | ١١ | دکوه نور الماس واخست | دکوه نور الماس له ده څخه واخیست |
| ١٤١ | ١٧ | دروسی پاچاهم خپل نماینده راوغو | دستمبر دمیاشتی په نهمه دغه |
| ١٤٤ | ٢٠ | ١٨٧٢ عیسوی | ١٨٤٢ عیسوی |
| ١٧٧ | ٢١ | کوم دی | کوم سړی |
| ١٧٩ | ٢ | داوه | دنوه |
| ١٩٧ | ٨ | اول | اودل |
| ١٩٨ | ١ | واکمن | واکمنی |
| ١٩٩ | ٢٧ | دوه | دده |
| ٢٠٠ | ٢ | ایرانی زمان | ایرانی زومان |

| مخ | کربنه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ۲۰۹ | ۱۹ | خوتنه | خوتنه باغی |
| ۲۴۰ | ۱۹ | شین | غر شین |
| ۲۴۱ | ۴ | پاتی سیمه | پاتی سیمی |
| ۲۴۱ | ۱۴ | کته ایلی | کته اخلی |
| ۲۴۴ | ۲۰ | ډیر خلك خپل | ډیر خلك خپل پیروان کړل |
| ۲۴۶ | ۳۱ | زره وره | زړوره |
| ۲۴۷ | دولسم دیارلسم څوارلسم پنځه لسم کربنی لاندی باندی شوی دی | | |
| ۲۴۸ | ۱۹ | مرغه | مرغز |
| ۳۰۶ | عنوان | دخوگیانی | گگیانی |
| ۳۲۵ | رر | کانیسی | کانسی |